# کندهار

ترتاجار سمه وطنه — ستا په زړه کي خومي کور ؤ
ستا په غېږ کي ارغنداو دی — چي پر شاړو باندي سپور ؤ
ستر احمد دي ننګيالی دی — د ميرويس دي څومره زور ؤ
د ملالي لوړ غيرت دي — د نازو همت لا نور ؤ
زما ستره کندهاره — زړه مي تل په تا بکور ؤ

ارواښاده کريمه فيض زاده رسولي

د کندهار اطلاعات، کلتور او ګرځندوی رياست دوې مياشتنۍ خپرونه

څلورم کال دوهمه ګڼه غبرګولی - چنګاښ درېيمه دوره پرله پسې درويشتمه ګڼه ۱۳۸۴ ل کال



- مياخېله ناهيده
- په افغانستان کي پښتو لنډه کيسه (ضميمه)
- د ډيورنډ کرښه
- امير عبدالرحمان خان او د هغه اندونه
- شين سترګي مستخدمين په افغانستان کي

# قرآني مرغلري



وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَيَخْشَ ٱللَّهَ
وَيَتَّقْهِ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَآئِزُونَ ﴿٥٢﴾



**(ترجمه) او هر څوک چه اطاعت وکړي حکم ومني د الله او د رسول د دغه (الله) او و ویریږي له الله او ځان وساتي (له غضبه د ده) پس دغه (فرمان منونکی ویرېدونکی) هم دوی دي بری موندونکي.**

**(تفسیر) یعني هغه چي في الحال مطیع وي او پر خپلو تېرو تقصیراتو نادم وي او له الله تعالی څخه و ویریږي او توبه وکړي او په مستقبل کښي له بدو چارو او لیارو څخه خپل ځان وساتي نو د دوی دپاره په دنیا او آخرت کي بری او کامیابي ده.**

---

**د پښتي شرح:**

د کندهار احمد شاهي ښار چي د هغه د بنسټ ایښوونکي لوړ درشل، لوی احمد شاه بابا د ډوری د پاسه د ښکلي او زړه وړونکي شنې گنبدي په پراخه لمن کښي د نوو مار کیټونو او وسنیو ښویو ختو د چټکو او ناځوانمردانه یرغلونو سره سره بیا هم د زمانې راتلونکو ناخوالو ته په دریدني سره په هسک سر او لا ځانگړي برم سره ښکاري. هیله ده د لوی بابا دغه لوی یادگار همداسي لوی او په هم هغه اولنی ځېره سره د یوه ارزښتمن لرغونتون په توگه د ټولو له لوري تر ډېره د ټولو له پاره خوندي سي.

# کندهار

علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله


مؤسس : محمد ولي خلمی
سرپرست چلونکی : عبدالمجید بابی

**کتنپلاوی :**
ډاکټر عبدالرازق پالوال، حیات الله رفیقي، عبدالکریم طالب رحیمي، فضل محمد پنهان، عبدالمجید بابی

**کمپیوټر چاري**
مطیع الله روهیال

**بیه :**
هیواد : ۲۰ _ افغانۍ
پاکستان : ۲۵ _ کلداري
نور دباندني هیوادونه : ۱۰ امریکایي ډالره

**کلنۍ ګډون :**
هیواد : ۱۲۰ _ افغانۍ
پاکستان : ۲۰۰ _ کلداري
نور دباندني هیوادونه : ۸۰ _ امریکایي ډالره



**پته**
د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست
علامه حبیبي ... واټ
د کندهار مجلې دفتر
تلیفون ۳۰۰۱۳۴۰
ګرځنده ۰۷۰۳۰۰۰۲۴





د امتیاز څښتن : د اطلاعاتو، کلتور او ګرځندوی ریاست

دریمه دوره
څلورم کال ، دوهمه ګڼه _ پرله پسې در ویشتمه ګڼه
غبرګولی _ چنګاښ (جوزا _ سرطان)






## په دې ګڼه کښې




Kandahar_Majala@hotmail.com

بسم الله الرحمن الرحیم

سرلیکنه

# نوی پارلمان به له چا جوړیږي؟

په هیواد کښې د پارلماني ټولټاکنو د خبرونو او څرګندونو د تودېدو سره خلکو ته هم دا ور په زړه کیږي چي پارلمان ته به څوک ځي او د دې هیواد پارلمان به له چا څخه جوړیږي؟

هو ! پارلمان ته به ټولټاکني د روان کال د وږي د میاشتي پر اووه ویشتمه ورځ تر سره کیږي، او د ولس له لوري به د پارلمان او ولایتي جرګو کاندیدانو ته د خپل داړ پر بنسټ رایي ورکول کیږي او د رایو په ډګر کښې وړاندي کسان به بریالي راڅرګندیږي.

پوښتنه همدلته پیدا کیږي چي څوک به د غوراوي وړتیا ولري او ولس باید څوک غوره کړي او څوک په پارلمان کښې د ګډون له پاره رامخته کړي؟ که ولس سپېڅلي پاک او داسي کسان چي د ټولنیز ژوندانه ټوله اړخونه یې د تقوی په نور ځلېدونکي وي وېږني او د هغوی سره ملګرتیا وکړي، پر هغوی داړ وکړي او هغوی ته رایه ورکړي او د پارلمان تر انګړه یې پخپل ملاتړ سره ورسوي نو به د پنځو کلونو له پاره د ولس د ستونزو د هواري له پاره څه ناڅه ګامونه اوچت سوي وي او که بیا د سیاست مداریانو او د سیاست بازاري معامله چیانو ته رایه ورکړه سي نو دي لوی څښتن ﷺ د دې بېوزلي ولس پرده کوي، ځکه بیا به هم ولس د دوو لسیزو کړاوونو او ستونزو په اورونو او لمبو کښې سوځي او ویلیږي.

اوس چي د ټولټاکنو له پاره ګوته په شمېر ورځي پاته دي د همدا اوس څخه دي خلک په هوښیارتیا سره ګړي شمار کړي او د پاکو او سپېڅلو خلکو د لټي له پاره دي ژور فکر وکړي. د کاندیدانو د تېر مهال، پرون، نن او سبا په اړه دي غور وکړي، که چا په تېرو مهالونو کښې سپېڅلی نوم او وړ چلند درلود پرون هم د ولس په خوږ خوږمن او د ولس په رنځونو کښې د هغوی تر څنګ وه او نن یې هم د پرون غوندي د خلکو د ګرومونو د پاللو سره د هغوی سره یو ځای سر پر زنګون و او سبا ته هم د داړ او باور وړ وو هغوی ته دي رایه ورکړي، او هغه دي د پارلمان او ولایتي جرګو د استازو په توګه غوره کړي. ځکه همداسي کسان به وکولای سي د ولس چغي واوري د ولس رنځونه پټی، او خوږ یې درمل کړي او که خدای مکړه د سپېڅلو کسانو څخه بیا ناسپېڅلي سړي ډګر یوسي نو د دولت او خلکو تر منځ همدا را پیدا سوی واټن به نور هم پراخیږي، اوبه به خړیږي او بیا به هر څوک وریکښې د خپلي ګټي او وټي کبان نیسي او اولس به د ترټلو پر ډګر د ترټني څپیړي او سوکان خوري.

نو د همدې اوسه څخه دي د داسي کاندیدانو لټه پیل سي چي هغوی دا درایت او دا وړتیا ولري چي د دولت او خلکو تر منځ واټن را لږ کړي او د دولت چارواکي او مشرتابه په هغه لاره سم کړي چي د ولس غوښتنه وي او په راتلونکي پارلمان کښې د یوه خوځنده ځواک پتوګه د هیواد د بیا رغوني او د رنځور ولس د بیا درملني له پاره په ډېره لوړه هوښیارتیا سره وځلیږي.

دا مهال به مو پارلمان، پارلمان او د پارلمان استازي به د ولس د ارمانونو او هیلو پر لاره روان وي!!!

په همدې هیله

اداره

# د رشوت ضررونه

ارو اښاد مولانا محمدشاه ارشاد

هغه کسان چي د اسلام په تعليماتو کښي مطالعه لري او د اسلام له اقتصادي نظام څخه خبر وي په دې پوهيږي چي د اسلام په نظر کښي اقتصادي توازن خاص اهميت لري او د همدغه تعادل د قايمولو په غرض يې هر راز ناوړي استفادې حرامي کړي او مرتکب يې د لعنت او نفرين وړ بللی دی. د اسلام مقدس دين د دې لپاره چي ثروت او سرمايې په څو خاصو او محدودو لاسونو کښي جمع او نور خلک ترې محروم پاته نسي سود، غلا، غبن، فاحش، فريب، احتکار او هره نامشروع استفاده حرامه کړې او مرتکب يې د اسلامه له جادې خارج ګڼلی دی، لکه چي حضرت پيغمبر ﷺ فرمايي: "من غشی امتي فليس مني" يعني چا چي زما امت وغولاوه په فريب يې استفاده ترې وکړه هغه زما د امت څخه نه دی. د اسلام له تعليماتو نه په صراحت معلوميږي چي مسلمانان بايد يو د بل مال ته په داسي درنه سترګه وګوري لکه چي يو د بل ناموس او سر ته په درنه سترګه ګوري. اسلام هر چا ته د تملک حق ورکوي او حقوق يې مصئون ګڼي تر څه چي هر څوک په کامل حريت او پوره اطمينان د ژوند له منافعو برخوردار وي او د نورو له اتلاف نه پرته په هوسا ينه خپل ژوند ته ادامه ورکړي، که موږ په دقت سره اسلامي تعليمات تر څېړني لاندي ونيسو په دې به وپوهېږو چي د اسلام په نظام کښي مال مهم مقام لري او هغه د ژوند زينت بولي او تل د خدای په فضل تعبير ترې کيږي. تر مال پوري دنيوي ژوند تړلی او ژوند د ټولو انساني فضايلو او ملکي ملکاتو د محصول مايه او منشاء ده. د نړۍ په مختلفو دورو کښي چي څومره جنګونه او جګړې پيښي سوي په هغو ټولو کښي اقتصادي مسايل بې دخله نه وه او په يوه رنګ له رنګونو دغه ماده د دغسي جنګونو او شخړو د پيښېدو باعث سوې ده، دا په وارو وارو ليدل سوي ده چي په کومه ټولنه کښي چي د خلکو اموال مصئونيت ونلري او لا يې اقتصادي نظام په متينو او عادلانه اساساتو طرح سوي او ولاړ نه وي د هغه محيط امنيت او ارامي د حوادثو او ناوړو پيښو دستخوش او هر وخت له هرج او مرج سره مخامخ وي، همدغه وجه ده چي په اسلام کښي د مال د حصول لپاره معلومي او معيني لاري ټاکل

سوي او له دغو حدودو څخه تېرى كول د سختو عقوباتو او عذابونو وړ بللي دى، د غله لاس په همدې پرې كوي چې د خلكو د اموالو د ضيائت پرده څيروي او بې حرمتي يې كوي، فرېب كار هم ځكه د اسلام له دائرې او حضرت محمد ﷺ له امتيت څخه يې بېرون گڼي چې د خلكو اقتصادي موازنه خرابوي، له محتكر نه هم ځكه خداى بېزار گڼي چې هغوى په خلكو باندي روزي دروي او تنگسه پر راولي، سود خور هم ځكه د خداى او رسول سره په جنگ كولو او محاربه ملزم بولي چې له خلكو بې عوضه مال اخلي او د سرمايې د تضخيم او غونډېدو سبب گرځي د خلكو او ثروتونو تر منځ توپير راولي او اقتصادي توازن او تعادل له منځه وړي .

كله چي په يو ټولنه كښي اقتصادي تعادل، توازن او تقارب موجود نه وي هغه ټولنه هيڅكله د نېكمرغى مخه ليداى نسي او تل له هرج او مرج او بې انتظامى سر مخامخ وي، همدغه وجه ده چي اسلام ناوړي استفادې حرامي كړي او هيڅوك حق نلري چي د بل مال په ناروا وخوري بلكي قرآن كريم فرمايي :

ولا تأكلوا اموالكم بينكم بالباطل و تدلوا بها الى الحكام لتأكلوا فريقاً من اموال الناس بالاثم و انتم تعلمون .

يعني او تاسي خپل مالونه په خپلو منځو كښي په باطله او ناروا توگه مه سره خورئ او مه هغه حكامو ته د رشوت په توگه وركوئ تر څو چي په دې وسيله د نورو يو څه مالونه وخورئ . په دغه آيت كښي يو وار په عمومي توگه له حرام خورى او سوء استفادې څخه نهي سوې ده او بيا په خصوصي ډول سره د رشوت حرمت بيان سوى او صريحاً نهي سوې ده چي مسلمان ته نه ښايي چي خپل مالونه د رشوت په توگه حاكمانو او د نفوذ او سلطې خاوندانو ته وركړي او د نورو د حقوقو د اتلاف سبب وگرځي، يعني څنگه چي د رشوت او بډو اخيستل حرام دي همدارنگه د رشوت او بډو وركول هم حرام دي او حتى هغه څوک چي د رشوت واسطه كيږي هغه ته هم ملعون ويل سوي او د لعينانو په ډله كښي گڼل سوى دى، لكه چي حضرت پيغمبر ﷺ فرمايي :

لعنه الله على الراشي والمرتشي والرائش .

يعني لعنت دي وي پر رشوت وركوونكي، رشوت خوړونكي او پر هغه چا چي د رشوت واسطه وي .

دا چي په وړاندني آيت كښي رشوت نسبت نورو محروماتو ته په خاص ډول بيان سوى دى دا دې خبري ثبوت وركوي چي رشوت نسبت محروماتو ته خاص اهميت لري ځكه په هغه ملک او هغه محيط كښي چي رشوت موجود وي او وگړي يې د رشوت په وركړه او اخيستلو عادي او سي، په هغه ملک كښي د نورو ټولو محروماتو مخنيوى ناممكن وي او زنا، قمار او بله ناروا ضرور رواج مومي . هر غل د هري ناروا خاوند كولاى سي چي د رشوت په واسطه ځان خلاص كړاى سي او خپلي بداخلاقى ته دوام وركړي نو په دې حساب زما په عقيده رشوت خور نسبت غلو او رهزنانو ته بدتر او گنهكار دى، ځكه چي غله پر ځان زحمت گاللي، بې خوبى پر ځان اخلي او هري مخاطرې ته ځان غورځوي مگر رشوت خور له كف او كالر سره پر چوكى ناست خلک لوټوي او په ناحقه يې مالونه خوري، حتى نه يوازي په ناحقه د خلكو مالونه خوري بلكي نورو ته جرئت وركوي چي سوء استفاده وكړي او د خلكو د اذيت سبب وگرځي .

دا وه د اسلام رويه چي د رشوت خور په مقابل كښي به يې كوله او په شدت او حذف سره به يې په ماموريت كښي گټلي مالونه ردول دغه جريانات دا ښيي چي د ماموريت او قدرت په وسيله گټلي مال د سړي ملک نه گرځي او دولت حق لري چي هغه ترې واخلي او د مملكت په عمومي مصالحو كښي يې ولگوي .

## شرافت او وياړ

زه هيڅكله نه غواړم چي خلک دي زما څخه وډار سي، بلكي غواړم چي د رښتينوالي له مخي د ټولو د درناوي وړ وگرځم.

موږ ټول د زېږېدني له ورځي برابر پيدا سوي يو، خو د امتياز توپير مو په صداقت او سپېڅلتيا كي دى.

د لوړ نوم او وياړ گټونكي خلک هيڅكله نه مري، ځكه چي د دوى مړيستون د راتلونكي نسل په زړونو كي وي.

هغه ماته چي شرافت پكښي خوندي وساتل سي، د بې گټي بريالېتوب څخه ښه ده او زموږ معنويات لوړيږي.

# میاخیله

# ناهیده

اکاډیمیسین پوهاند علامه رشاد

د ۱۳۷۱ هـ ش کال د دلوي نولسمه د دوشنبې ورځ وه[۱] کوچنۍ ځلې خپل زور ښکاره کړی و، تر پښو لاندي به د یخنو (کنګلو) د ماتېدو خرچې اورېده کېده، زه د سهار پر نهو بجو د دریم مکروریان شپاړسم بلاک ته نژدې تېرېدم[۲]، د دغه بلاک د لومړۍ دروازې مخي ته که څه هم خورا یخ سیوری و ډېر خلک راټول سوي وو، زه د دوی خوا ته ور وګرځېدم که مي کتل ټولو خلکو سرونه ځړولي دي، هیڅوک له هیچا سره نه رږغیږي، هر سړی د غم په ټال کي زانګي او د چا و چا له سترګو اوښکي هم راځي.

زه پوه سوم چي دلته د یوه درانه مصیبت ټکه لوېدلې ده او پر دې فضا که هما هم تېرېږي وزرونه یې سوځي، زړه مي له شنوختنه ډک سو، کرار کرار د یوه ویرجن څنګ ته ورنژدې سوم او په ډېره تلوسه مي ورو پوښتنه ځني وکړله:

"دلته څه بده پېښه ده؟" دغه سړي یو سوړ آه وکیښ او په ډېر حسرت یې دومره راته وویل: "فاجعه است فاجعه". د دغو لفظونو تر ویلو وروسته یې ستوني له غریبه ډک سو او نور یې نو هیڅ ونه ویلای سوه.

بل سړي ته ور نژدې سوم له هغه څخه مي په خورا نرمه لهجه د فاجعې څرنګوالی وپوښتېده، دغه ځوان چي په سترګو کي یې اوښکي رغړېدلې د بلاک شپږم پوړ ته یې لاس ونیوه، په خورا افسوس او ژړه غوني ږغ سره یې راته وویل:

"برایې پر شپږو بجو او پنځو څلویښتو دقیقو له دغه شپږم پوړ څخه یوې غیرتمني اتلي پېغلي ځان راواچاوه، مرګ یې ومانه، خو د څو بې ناموسو وسله والو غلو څخه یې خپل ناموس وساته، دا خلک ځکه راټول دي چي اوس د دغي قهرماني ویاړلی تابوت راباسي".

بل سړی چي یې څنګ ته ولاړ و، هغه پر زیاته کړه:

(۱) دغه خبر چي په کابل نومې جریده کي (دریمه ګڼه ـ ۲۹ دلو ۱۳۷۱) خپور سوی دی د پیښي نېټه سهي نه ده کښل سوې او دا فاجعه یې د چهارشنبې د دلوي د ۲۱/۲۰ تر منځ ماښام راوړې ده.

(۲) په کابل کي څو پوړیزه عمارتونه چي د خلکو د استوګي له پاره ودان سوي دي مکروریان بلل کیږي دا مکروه نوم د روسانو له خوا څخه د کابل د خلکو په خولو کي لوېدلی دی.

"دا ورځ سبا موږ ته هم ګوري، په کابل کې زموږ مالونه، سرونه او حتی ناموسونه په خطر کې دي".

د څنګ سړي یې د ابوالقاسم فردوسي لېسې ته لاس ونیوه او ویې ویل:

"دغه ده دلته پر سلو ګامو وسله واله امنیتي پیره میشته ده، هغوی یې ننګو او وظیفه ناپېژندونکو هم د دغې مظلومې ننګه ونه کړله د کور والو چیغې نارې یې اروېدلې خو د هغوی د مرستې هڅه یې ونه کړله او پر ځانو یې د خلکو شکونه پیدا کړل".

په دې وخت کې یو دروند سپین ږیری پښتون د غم ځپلي بلاک د لومړي دروازې په خوله کې ښکاره سو، چا راته وویل:

"دا سپین ږیری د دغې قهرماني شهیدې نیکه دی، زه په ډېر ادب ورغلم او په خورا درناوي مې په داسې حال کې چې ستوني مې له غریبه ډک ډک کېده له ده څخه پوښتنه وکړله:

"دا پاکه شهیده څه نومېدله؟ او ستا څه کېدله؟"

ده په ډېر ویاړ راته وویل:

"زه حاجي عبدالرؤف نومېږم، زما زوی عبدالحمید خان دی دا ځورلس کلنه شهیده چې ناهیده نومېدله د ده لور وه".

نور نو د ده ستوني هم له غریبه ډک سو او په ډېر تکلیف یې دومره زیاته کړله:

"موږ د سهاک میاخېل پښتانه یو[۳] اوس دلته د دغه بلاک په اتلسم اپارتمان کې اوسو".

د سیمې مخورو خلکو زیار یوست په افغانستان کې د ملګرو ملتو د اداري کوم مسئول او د بي . بي . سي د اژانس نماینده د دغې ویرجنې صحنې لیدلو ته راوبولي، خو هغوی یا پیدا نه سول یا وځنډېدل، که نه د دې زړه دردونکې پیښې خپروني به د نړۍ د ډېرو انسانانو پر کوګلو داغونه ایښي وای.

د قهرماني ناهیدې د کورنۍ د مشرانو د جنازې اخیستلو ته تلوار و، ځکه چې د دې نامرادې ځوانیمرګې مړی یې په سهاکو کې خاورو ته سپاره او د ملګرو ملتو او بي . بي . سي د نمایندګانو راتګ په شک کې و.

څو دقیقې وروسته د اتلې ځوانیمرګې شهیدې جنازه را وایستله سوه، ځوانانو چې جنازه اوږو ته پورته کړله د خلکو له خولو څخه په یوه سلا د دولت پر اداري فساد د لعنتونو ږغونه جګ سول او د دولت د اراکینو د مرګ ګډې نارې فضا ته پورته سولې، د دغو قهرجنو شعارونو په منځ کې دا شعار هم ډېر اروېدل کېده:

"افتخار بر دختر افغان"

دا ویاړلې جنازه د دوستۍ د ښوونځي له لارې هغه لوی سړک ته ورل کېده چې کابل او جلال آباد سره نښلوي، د شعارونو ازانګو خلک وبوګنول له هره بلاکه څخه دردېدلي خلک راکښته کېدل او په ډېر ویاړ سره یې د جنازې ملګري کوله او په قهرجنو شعارونو کې یې په شوق برخه اخیستله.

د قهرماني ناهیدې جنازه چې د کابل جلال آباد لویې لارې ته ورسېدله د دغه ځای وسله والې امنیتي پیرې باړونه وچلول او هوایي ډزې یې وکړلې، تر دې وروسته یې له جنازې سره پر ملو خلکو راوځغستل او په ډېره بېرحمۍ یې د ټوپکو په کونداغونو سره د خلکو په وهلو کوټلو پیل وکړ، ښه و د جنازې موټر دلته نژدې ولاړ و، په دغو ډزو او وهلو کوټلو کې د قهرماني ناهیدې جنازه په موټر کې کښېښوولہ سوه او موټر د شیوه کۍ لور ته وخوځېده، خو دلته د جنازې پر ملګرو د وسله والو سپاهیانو وهل و کوټل، کشول و ښکول په خورا بې رحمۍ جاري وو.

وایي: د اتلې پاک لمنې ناهیدې ویاړلې جنازې ته د شیوه کۍ په لاره کې هر ځای د دړځاوي سرونه کږېدل او له سترګو اوښکې راڅڅېدلې، دا ویاړلی تابوت د ورځې پر یوه بجه د ژړا، اوښکو او اسوېلیو په توپان کې د سهاکو د هدیرې خاورو ته وسپارل سو او په فضا کې د دې شعارونو ازانګې تر ډېرو سیمو پورې تللې:

پاته په (۲۳) مخ کې

[۳] سهاک د کابل ښار جنوب شرقي خوا ته د یوه کلي نوم دی، دا کلی د لوګر د رود ښي خوا ته پروت دی.

# د ډیورنډ کرښه

ډاکټر عبدالرازق پالوال

پرون ۲۳ جوزا ۱۳۸۴، و ما ته له کسي غرونو څخه پوريخوا يو کتاب راورسېدئ چي له خپله کتابه څخه يې وايستم. دغه دوهم کتاب دی چي و ماته له هم هغه ځايه څخه رارسيږي. لومړی کتاب "د پښتون/افغان قامي جرگه" نوميږي او دوهم کتاب، دا چي اوس را رسېدلئ دئ، "د ډيورنډ کرښه" نوميږي.

لومړی په زه د لومړنۍ پوهنتيا (سيمينار) په اړوند څه وکاږم. زه په ۲۰۰۰ع کال په کوټه کښي وم. هورې ځينو دوستانو يو شمېر پاڼي راکړې چي په پېښور کښي ئې پر پښتو او پښتنو باندي د يوې پوهنتيا په اړوند معلومات او پروگرام لارء. ما ورته وويل چي د پوهنتيا په وخت کښي به زه دلې نه، خو په کندهار کښي به يم. دوی راته وويل چي موږ هورې درپسي درځو او راسره بيايو دي. ما ورته وويل چي زه د پټي خزانې په دفاعي ليکنه بوخت يم چي نه يوازي به له کاره وتلئ يم، بل مي لا موضوعات هم له ذهنه څخه وزي. نو ښه به دا وي چي زه درسره تللئ نه يم.

کله چي د پوهنتيا وخت راورسېدئ او ما ئې بيان له راديو څخه واورېدئ، دغه دوې پوهنتياوي وې، چي يوه د نوومبر په سر کښي او بله يې په منځ کښي وه. په لومړنۍ پوهنتيا کښي درېيمه ورځ "د ډيورنډ کرښه" سل کلنه او لغوه وبلله سوه. دوهمي پوهنتيا تر دغي لا ډېر د ډيورنډ د کرښي پر ايسته کولو باندي ټينگار کاوء. تر دغو دوې مياشتي وروسته په اکوړه کښي د طالبانو پوهنتيا وه چي

هورې هم دا ږغ پورته سو چي "د ډيورنډ کرښه" بايد نه وي. ما داسي وانگېرله لکه په پاکستان کښي چي به د هغه وخت د حکومت پاليسي هم داسي وه. ای د ډيورنډ کرښه يې ايسته کوله.

ما چي د ډيورنډ د کرښي ايسته کولو ږغ واورېدئ، نو پښېمان سوم چي زه ولي نه ورسره ولاړم. که ورسره تللئ وای، نو به مي داسي ورته ويلي وای، يا وړانديز ورته کړی وای:

موږ او تاسي دواړء و يوء مهلت ته اړتيا لرو څو په دغه موده کښي مو هم بايد يو شمېر شرايط پوره کړي وي. دغه مده به دېرش کاله وټاکو چي په دغه مده کښي به موږ هم بايد يو شمېر شرايط پوره کړي وي، او تاسي هم لا. هغه چي پر موږ دي هغه زموږ د پسې نسل رسوءنه ده. په تېرو شلو کالو کښي افغاني هلکانو ښوونه او روزنه ليدلې نه ده. دوی يوازي د جنگ په وسايلو سره ښه پوهيږي، او بل څه يې زده نه دي. موږ به خپل راتلونکئ نسل هلکان او نجوني وروزو، د ژوندانه چاري به مو سمبال کو، يو نظم و نظام به را پيدا کو، او بيا به نو و يوه گډ ژوندانه ته تيار سوي يو.

تاسي به هم په دغه مده کښي يوه سلسله چاري تر سره کوئ: خپل تعليمات به په سکول او په پوهنتون کښي، په سل کښي اتيا په پښتو کوئ، دغسي به هم مطبوعات (ورځپاڼي، جرايد او مجلې)، د راډيوگانو او تلويزون

خپروني به مو هم په سل کښي اتيا په پښتو کوئ، او چي دا مو وکړل، بيا به نو موږ سره ساري يو . هغه وخت و زمان تېر سو، خو غوښتني يې سته .

په اوس کښي د افغانستان ملت او مملکت تر درويشت کلن جنګ وروسته ادو - بدو دئ، او نو ځکه هم، څنګه چي زه داسي پوهېږم لکه د افغاني حکومت پاليسي چي دي په دې اړوند "بيده" وي، او نور ليکوالان چي هم له دغي مسئلې سره سروکار نه لري، هم دلالت پر دې باندي کوي چي بايد دغه پاليسي "ويښه" نه کړه سي . زه چي هم د افغانستان کورني حالات او شرايط وينم، دا ورسره منم چي افغان ملت او حکومت په دغه اضطراري حالت کښي له هر چا سره و ښو دوستانه مناسباتو ته اړتيا لري، او بالخصوص له خپلو ګاونډو هيوادونو سره . نو آزاد افغاني حکومت کله هم دوې متضادي پاليسي چلولې نه دي .

سياسيان او ليکوالان چي د خپل مملکت او ملت په تاريخي رسالت کښي لار ټاکونئ اغېز لري، بايد له حکومته سره په دغي خوا کښي داسي مرسته وکي چي ملت ئې د مسايلو درک کړئ او فهم ئې لرلئ وي . ما تر مخه له کورنۍ زاويې څخه و موضوع ته کتلي ول داسي چي ټولنه مو پاره - پاره او پيته - پينه ده . نو په دغسي يوه حساس وخت کښي بايد و ځان ته مسايل او مشکلات په لوی لاس سره خلق نه کو .

څنګه چي دا پلا له دباندنۍ زاويې څخه و مسئلې ته ګورم او د دې په حل کښي د اوسني ناتار پای وينم، ځکه مي نو په دغسي ليکني سره لاس پوري کړ . بل دا چي د دغي ليکني ډېر ټکي د نورو هغو کسانو له ويناوو او مقالو څخه را اخلم چي د ۱۵ - ۱۶، اکتوبر ۲۰۰۴ ع کال د پېښور پريس کلب Press Club (مطبوعاتي تالار) په "ډيورنډ کرښه" پوهنتيا (سيمينار) کښي وړاندي کړل سوي او د کتاب په توګه چاپ سوي دي . ځکه به نو زموږ حکومت له ما څخه ګيله او مانه، نه کوي چي تا ولي دغه مسايل کښلي او څېړلي دي . دغه کار پخپله دوی پښتونخوا والاوو کړئ دئ، او زه ئې تش سرغوړ ځني در وړاندي کوم . د څرګندوﺉني په توګه، خان لالا محمدافضل خان، چي د پوهنتيا کوربه، حامي او هڅاند دئ، داسي کښلي دي : "نن حقيقتونو ژبه موندلې ده او موږ وينو چي هره ورځ په اخبارونو، رسالو او محفلونو کښي د ډيورنډ (کرښي) په باب تبصري کيږي او کالمونه (ستونونه) چاپ کيږي". (۲۰۰۴ : ۱۳ مخ) .

نو چي پښنه هلته داسي ده، ولي دلته بايد داسي نه وي؟ اوس چي هورې هم پښنه له دغه رازه څخه ده، نو موږ ولي بيخي منده خوله پاته سو؟ بيا هم که راته وايي چي زموږ پاليسي "بيده" ده، ښه دئ نه به ئې ويښوو، ولي د دوی پر ليکنو باندي خو بايد شخوند ووهو . په داسي حال کښي چي ښايي غوټه مو هم په وسپېله سي . څوانان مو له تاريخي او حاليه ساتلو څخه داسي وپوهول سي چي د دغو ناخوالو ريښې او عوامل چيري او څنګه دي؟ څه راز چاره يې کله څنګه په کار ده؟

"د ډيورنډ کرښه : په پېښور کښي د سوي سمينار د مقالو او نياوو ټولګه"، خان لالا محمدافضل خان، جنوري ۲۰۰۴، به د لوستونکو و ډېرو پوښتنو ته جوابونه ووايي .

زه چي اوس د مسئلې و کورنۍ او دباندنۍ دواړو خواوو ته ګورم، نو دغه ليکنه کوم څو ګوندي موضوع په بېطرفانه توګه سره و لوستونکو ته ور پر ښووله سي څو ګوندي د دوی له فهم سره ئې مرسته کړې وي او بالخصوص د دوی د شعور او ذهنيت په جوړښت کښي ګټوره ثابته سوې وي .

ډاکټر عبدالرازق پالوال

**پاکستانيت** :

د ښاغلي سليم راز مقاله په کتاب کښي پنځم ځای لري، خو زه ئې له دغه ځايه څخه و سر ته بيايم . دا ځکه چي دﺉ زښته انتقادي مقاله کښلې ده، او په نورو وړاندنيو کښي ئې هم جوابونه سته . ځکه نو بايد اعتراض تر جواب دمخه وي . دغه دا مانا نه لري چي کتاب اوډونکي غلطي کړې ده . دوی د مشرتابه، په پوهنتيا کښي د ويناوو د پرله پسېوالي اصل په نظر کښي ساتلئ دئ او زه ورسره موافق يم .

ښاغلي سليم راز د ښاغلي زلمي هيوادمل يو پير ګراف د خپلي ليکني اساس ګرځولئ دئ . زه به دا حدس نه وهم چي ښاغلي زلمي هيوادمل به په پېښور کښي د چا له مخالفت او ممانعت سره مخامخ وُ چي داسي عکس العمل ئې ښوولئ دئ . ښاغلي راز بايد له دﺉ سره غمشريکي کړې وای چي چا په پېښور کښي دی آزار کړئ، غمولئ او سنخ کړئ دئ . راز صاحب به د خواخوږی او مېلمه پالني له مخي څخه د دﺉ مشکلات ور حل کړي وای، او که ئې داسي کولای نه سوای، زړه ئې ور پوړه کولای نه سوای، لږ تر لږه خو دي ئې د دﺉ له حاله څخه خبر کړئ وای .

دا ځکه چې له خپلو ځخه ځان ګوښی ساتنه هرومرو یو عامل لري او هغه په عمومي توګه سره بدحالي ده . نو راز صاحب بې رازه رغبدلئ دئ . دء باید ځان د هغه په راز پوهولئ وای، یا لږ تر لږه ئې په راز پخپله پوهېدلئ وای .

د ښاغلي هیواد دا کرښې دا ځر ګندوي چې موصوف د دې ځای د پښتون په نسبت د افغانستان د نورو قومونو (لکه) ازبک، تاجک، ترکمن او هزاره و غیره نزد بکت او یووالئ غوره او ضروري ګڼي . دا بالکل داسې خبره ده چې د دې ځای یو پښتون لیکوال (لکه راز) د افغانستان د پښتون په نسبت د پاکستان د نورو قومونو لکه سندهي، بلوچي او پنجابي سره د خپل ترون او رشتې وکالت وکړي یا په دې بله صوبه کښې سرائیکي، چترالي، کوهستاني او ګوجر قومیتونو ته د افغانستان پر پښتون باندي فوقیت او اهمیت ورکړي . نو که د لر او بر دواړو دا سوچ، ذهنیت، رویه او عمل وي او د خپلو ملکونو له نورو قومونو سره ځان یو ګڼي، د پښتو او پښتونیت نفي کوي او نور ترې غوره او افضل ګڼي نو بیا د لر او بر یو پښتون نعرې او ضرورت څه دئ او د یو قومي وحدت د نظریې حیثیت او اهمیت څه پاې سو (؟)، چې دواړه پر خپل ځای مطئمن او خوشحاله دي، او د لر او بر پښتون یو و بل ته څه حاجت نه لري، دواړه په خپلو خپلو دایرو کښې ځان محفوظ ګڼي نو د ډیورنډ کرښه چاته څه وایي او د قومي وحدت سیاست دي د چا دپاره اوشي(؟)". (سلیم راز ۲۰۰۴ : ۳۱مخ) .

۱ . راز صاحب باید د نکتې درک لرلئ وای . په هغه تالار کښې چې دء خپله مقاله لوستله، سوونه کسان ورته ناست ول، خو له دوی سره په مخامختیا کښې دء یوازې د یوء هیوادمل په لیکنې سره استناد کړئ دئ، او هغه هم بې درکه . دغه کوم منطقي اصل دئ چې جزء دي د کل په مقابل کښې استعمال سي؟

۲ . هیوادمل به د خپل ګوند پالیسي بیان کړې وي، او سلیم راز هم داسې کړې دي .

۳ . ما تر مخه وویل چې هیوادمل به په پېښور کښې چاآزار کړئ وي، او که داسې نه وي، دی به ښایي له پاکستان څخه وتلئ هم نه وای . آیا په دء خوک پسې ول که نه؟ دء او ولسمل غوندي نورو هم پېښور او پاکستان پرې ایښئ دئ او یو شمېر بیا ووژل سول لکه پوهاند ډاکټر بهاء الدین مجروح، جنرال کټوازی، عزیز الفت، د ملي شورا وکیل شینواري، لودین، او ډېری نور . ښاغلي راز باید د یوه ژورنالست په حیث د دء په راز ځان پوهولئ وای .

۴ . زړئ ټکئ داسې دئ چې پښتانه په تاریخي توګه سره ټول افغانستان د ځان بولي . ځیني نور قومونه چې اوس په ځینو سیمو کښې برلاسي دي، و افغانستان ته له نورو هیوادونو څخه تر اسلامیت وروسته راغلي دي . ځکه نو پښتانه د افغانستان ارضي تمامیت غواړي او و دې ته نه حاضریږي چې خپله مځکه دي و نورو راغلو ته ور وویښي، خو ژوند ورسره کوي .

راز صاحب ! که به دا نه راسره مني چې پښتانه د هندوکش له شمال څخه څه، بل لا د آمو له شمال څخه د هندوکش و سهېل ته شړل سوي دي، نو دي لیکنه پر وکي یا دي لطفاً اړونده تاریخونه ولولي .

ښاغلي راز کښلي دي : "اوس به راشو سیاسي عواملو او تاریخي پیښو ته چې د ډیورنډ لاین د سیاسي او زمیني حقایقو په رڼا کښې جایزه واخیستای شو . د تاریخ شهادت دا دئ چې دا قسم کرښې د یوء قوم پر وجود باندي هاله راښکلي شي چې کله هغه قوم په فکري، تهذیبي او سماجي طور سره د انحطاط په مرحله کښې وي . په اخلاقي او ذهني لحاظ مفلوج وي، او د معاشرتي ژوند زوال پذیر قدرتونو سره کلک (ټینګ) نښتئ او د ژوندي اوسېدو رڼه (رڼا؟) او قوت بخښونکې فلسفه او اجتماعي نظریه ورسره نه وي . د ځان ځانۍ په تفریقي فضا کښې ساه اخلي او د ملي افتخار، قومي ګټې او اجتماعي بري پر ځای په قبیلوي شعور او سیاسي قوت ارادي ئې پس، پست او پسپا شوي وي . نتیجه د غیرو د یرغل د مقابلې څخه خاص فکري پس منظر او تجوس مادي بنیاد نه لري . ځکه شکست او غلامي ئې مقدر وګرځي او د ډیورنډ د کرښې په شان سامراجي کرښې ئې وجود نیم او تقسیم کړي"، (راز ۲۰۰۴ : ۳۲مخ) .

نو څوک چې ئې په اوس کښې تائید کوي، دوی هم په همغو شرایطو کښې دي او هم هغه ذهنیت لري؟

بل دا چې وړاندني استدلال د اوسنۍ زمانې فکر او بیان دئ، ځیني ټکي به یې د سامانیانو، ترکانو، چنګیز، شمس الدین کرت، ګوډ تېمور، او بابر د تهاجماتو په وخت کښې ومنم خو د انګلیسانو د تهاجم په صورت کښې پېښه کورټ داسې نه وه . د دء بیان دلالت پر دې کوي لکه

ښاغلی راز چې د تاریخ په راز پوهېدلئ نه وي یا به لا آشنايي هم نه ورسره لري. انګلیسانو ډېرې پیسې وشندلې، ډېر جاسوسان ئې لرل، ډېر پښتانه مشران او جنګیان ئې و پیرودل او له افغان نظام او ملت سره ئې وجنګول. انګلیسانو دغه اشغال سوې سیمه په سیکانو او پښتنو سره نیولې ده. البته قومندانان ئې انګلیسان ول. سایې د ښاغلي راز له پاره به دغسې وینا تابو وي چې پر وړغېږي. دا ځکه چې دی یوازې له سامراج څخه ږغیږي، او انګلیسان په نامه سره نه یادوي. د ښاغلي راز نور اغماز داسې دي:

"عجبه ده په دومره نژدې وختونو د پښتون قوم د سماجي، معاشي او تهذیبي خډ و خال او د دې تقسیم خلاف د پښتني*مزاحمت صحیح صورت حال پحقله څه داسې تاریخي شواهد او تجزیاتي حقایق مخې ته نه دي راغلي چې د هغه نه دا معلومه شي چې دی مارشل ریس Marshal Race پر خپل وجود باندې د تقسیم کرښه څنګه ومنله او زنجیر ته ئې سر کښته کړ. تر دې چه موږ فولکلور، ادب او اولسي سندرو نه علاوه په قومي ادب کښي یې هم څه د غم کړیکه او د مزاحمت څړیکه د دې قومي المئی ګواهي او نشان دهي نه کوي. تاریخ هم د دې سامراجي کرښي خلاف د څه قسم قومي او اولسي مدافعت حال نه وایي". (راز ۲۰۰۴: ۳۲_۳۳).

دغه پسې لیکني به ښاغلي راز ته ښه پانیاتې درسونه ورکې. راز صیب که نور تاریخونه لوستلای نه سي، دغه د دې کتاب لیکني خو به هرو مرو ولولي!

انګلیسان چې په افغانستان کښي له سختو ماتو سره مخامخ سول، نو تر خپل پرمختیایي Farward پالیسی تېر سول. دوی غوښتل چې ټول افغانستان ئې تر ستوني تې کړ ئ وي. خو نه پوهېدل چې په منځ کښي ئې خورا لوی هډوکئ، هندوکش دی. ځکه نو دوی اړ وتل چې یوازې په هندوستان سره قناعت کړئ وي. دا چې لا بیا ئې هم له پښتنو څخه خطر لیدئ، نو پښتانه ئې باید نیمې کړي وای. دغه کار کول دوی له دوست محمد خان څخه پیل کړ. برنز، مکناټن، کیوناګري، او شپاړس زره لښکر ئې بایلاوه. دغه د انفرادي وژنو شمېر او بیان ئې ډېر کله کښل سوئ نه دئ. پښتون جاهل قوم دئ چې خپلې خوالي او ناخوالي ئې ثبت کړې نه دي او که کله چا کښلي هم وي، هغه د زمانې په اوږدو کښي شوږېدلي، یا باد او باران وړي دي. یا به ئې کړوسیانو د پېلوځي په څېر اور په بل کړئ وي.

راز صاحب به خود په دې پوهیږي چې د خلکو شفاهي پوهنه او ادب د زمانې په اوږدو کښي له اجتماعي شرایطو سره سم سکولیږي او تباه کیږي. مانا هر نسل چې مري، یوه برخه ژبني لغاتونه او ادبیات ورسره وړي. ښاغلي ګوهر رحمن ګوهر ئې ځیني پاته سوي آثار د بي بي سي له پاره له ځینو مهیاء کسانو څخه ثبت کړي او خپاره کړي دي. راز صیب دي پوښتنه پسي وکي.

انګلیسان تر ما او راز صیب ښه تره پوهېدل. دوی هاله پښتني سیمه لاندې کولای سوای چې د افغانستان له بادشاه څخه ئې د خان امیر جوړ کړئ وي او هم ئې په سیمه کښي قومي مشران پیرودلي وي. دوی لومړی امیر عبدالرحمن د کابل پر تخت باندې ټینګ کړ. د هغه زمان عصري وسله لکه جاغوري توپکان او پنځتکیزه توپکان ئې ورکړل. نژدې هر قوم ئې په ده سره جلا جلا وټکاوه. ځیني ئې له خپلو سیمو څخه وشړل. د میوند جنګ، او پر کندهار باندې د سرغنه ایوب جنګ له انګلیسانو او تور امیر دواړو سره د یادوءنې وړ دي. دوی یوء یا دواړه یا یوء یا بل هر قومي او یا قبیلوي مشر وپیرودئ یا ئې تباه کړ. نور نو داسې څوک پاته نه وُ چې د دء یا د انګلیسانو پر ضد ئې سرکښي کړې وای. که نه ګانه د دوی وسلې سره برابري وای، نه به انګلیسان وای او نه به ئې تور امیر وای. د انګلیسانو سره په قبیلوي جنګونو کښي خورا ډېر پښتانه تباه سوي دي. د څرګندونې په توګه د جنرال سکاټ کتاب ولولئ چې د کسې (کوړک) سلسلې غرونو د سهېلي خوا بیان ئې درکوي.

تر امیر عبدالرحمن خان دمخه هري قبیلې خپل آزاد تشکیل لاره، خپل ځاني جنګیالیان ئې لرل. نو هر قبیلوي سرغنه او یا هم هر روحاني مشر چې خلګو ئې پر ږغ باندې غوږ نیوئ، په خپلواکه توګه سره و انګلیسانو ته ور ایله ول. چا یو ځای غوټې پر وهلې چا بل ځای. ځکه نو انګلیسانو تور امیر مسلح کړ او هم ئې روزلئ او ازمویلئ اردو ور جوړ کړ. څو دء دغه قبیلوي مشران او روحانیون ئې په ټکولي وي، تر خپل اودوم ئې لاندې کړي وي، او دء هم داسې وکړل. ځکه ئې نو دء ته د اوسپنیز امیر The Iron Amir لقب ورکړ. د قبایلو له دغه تابعیت او یووالي څخه د انګلیسانو بل هدف دا وُ خو افغانان ئې د روسانو سره په مخامختیا کښي یو لاسي کړي وي.

ښاغلي راز بیا نور هم داسې تجاهل کړئ دئ، یا به رښتیا هم ناخبری وي :

"نن څه دپاسه سل کاله تېرېدو باوجود د دې کرښې د ختمولو یو طرف ته هم څه منظم او همه ګیر سیاسي یا مسلح جد و جهد په نظر نه راځي، صرف د قوم پرته تنظیمونو له خوا کله کله د ډیورنډ لاین په مذهب کښې بیانونه او د لر او بر پښتون آوازونه د دې کرښې زخمونه تازه ساتي، یا د بولانه تر چتراله یوه چیغه چر ته په جلسه او جلوس کښې پورته شي، څه داسې مربوط او مضبوط تحریک راپورته نه شو چي صرف او صرف هم دغه مرام او هدف لري"، (راز ۲۰۰۴ : ۳۳ مخ) .

د سرغنه داود په صدارت کښې دوه خلي لښکر کښې وسوې چي یوه پلا د عربستان په منځګړیتوب سره عادي روغه وسوه، او دوهمه پلا د کورني اختلاف له اسیته څخه سرغنه داود و استعفی ته اړ ایسته سو . څنګه چي انګلیسانو افغانستان په وچه بند هیواد Landlocked Country سره اړولئ دئ څو د دې ملت او حکومت اقتصادي ښارګ ئې پخپل لاس کښې نیولئ وي، او دغه موقف اوس و پاکستان ته په میراث ور رسېدلئ دئ، څکه نو افغانستان له اقتصادي مضیقې سره مخامخ سو چي سرحدات بند سوي ول . ښايي د دغو لښکر کښیو په نتیجه کښې به پاکستان هم له وهمه څخه د سینتو : CENTO Central Asian Treaty Organization په پکت کښې او هم د سیتو په پکت SETO : South-East Treaty Organization کښې شامل سوئ و . نو د افغانستان یوې خواته پاکستان او و بلې خوا ته ئې ایران واقع سول، ترکیه لا څه لیرې وه . پر هر یوء باندي حمله پر بل باندي حمله وه . دا لا څه چي په پاکستان کښې امریکایانو یو ملیون ډالره د ورځي په لښکري او اقتصادي مرستو سره لګول . په دغه صورت کښې د افغانستان خپل موجودیت له تهدید سره مخامخ سو . څکه چي افغانستان هغه د نولسمي پېړی اسلحه لرله چي د کیفیت او کمیت دواړو له مخي څخه خواره وه . دا چي امریکا هغه زمان پر افغانستان باندي اسلحه نه خرڅوله، نو حکومت مجبور سو چي له شوروي اتحاد څخه وسله وپیرودي .

دا چي د پښتونستان په خوا کښې چا څه کړي ول که نه ول، خو له خان غفار خان، خان ایوب خان، اجمل خټک، او سوونه ـ سوونه نور پښتونستانیان او بلوڅان و افغانستان ته مهاجر سول، یا د پاکستان په زندانونو کښې واچول سول، دا ولي او عامل ئې څه وُ؟

ښاغلي راز وروسته د ډیورنډ کرښې د مشکل او مسئلې په اړوند داسې هم کښلي دي :

"د قومي وحدت د علمبردارانو سره ئې که څه (حل) وي نو قوم ته دي ئې وړاندي کړي، او باید چي په دې موجوده کانفرنس کښې ئې څه حل پیش کړی شي، او قوم د دې کنفیوژن (مغشوشتیا) نه را بهر کړي او څه واضحه حکمت عملي وضع کړی شي . که داسې نه وي نو بیا پرې کاڼي ایښودل په کار دي، او په سیاسي جلسو کښې پرې واویلا او ژړا نه ده په کار . څکه چي پښتون قوم مزید د داسې قسم جذباتي نعرو متحمل کېدای نه شي، او وخت هم ډېر قیمتي دئ"، (راز ۲۰۰۴ : ۳۶) .

دغه وړاندنی عبارت دي د ده د مقالې له پایلامې سره جوخت وکته سي . دی نور هم داسې وایي :

"حقیقت دا دئ چي د ډیورنډ لاین پحقله خبري خو ډېري اساني دي، ولي عمل مشکل دئ . دا خو هر څوک وایي چي دا د سامراج د لاس راښکلې د ظلم او بېلتون کرښه ده . مګر د دې نیم او تقسیم د وجود د یووالي واضح تصور له چا سره نشته او که څوک ئې لري، نو له وړاندي کولو نه ئې ډډه کوي . تر اوسه سیاسي حل ئې چا ونه ښودلو او د عملي صورت ورکولو حکمت او قوت ئې څوک نه لري، نو دا به څنګه شي"، (راز ۲۰۰۴ : ۳۶ ـ ۳۷) .

ښاغلی راز پخپله و خپلي وړاندنی پوښتني ته په پایلامه کښې داسې جواب ویلئ دئ :

"دا هم وئیلې شي (ویل کیري) چي د امریکې په نیو ورلډ آرډر New World Order کښې د پښتونستان نقشه او منصوبه هم پرته ده، او خلقو ته باور ورکولای شي چي امریکه پخپله پښتونستان جوړول غواړي . نو چي امریکه غواړي نو بیا د ډیورنډ کرښه به ضرور له منځه ځي بغیر د څه سیاسي تحریک او جد وُ جهد نه به نقشه بدله شي . فرنګي سامراج د خپلو مفاداتو د حصول له پاره د ډیورنډ کرښه راښکله او امریکي سامراج به د خپلو مفاداتو د تحفظ له پاره د ډیورنډ کرښه ورانه کړي . ولي پښتون به بیا هم پوه نه شي چي آزادي راغله که ولاړه"، (راز ۲۰۰۴ ۳۸ مخ) .

آیا آزادي د ډیورنډ کرښي له موجودیت او یا غیر موجودیت سره اړه لري؟ پاته په (۲۳) مخ کي

# د ډاکټر بسم الله امیر

## په جواب کې

کاناډا/ محمد معصوم هوتک

ما (هوتک) ته افغاني خپروني منظمې نه رارسیږي ځکه نو په زیاترو هغو لیکنو باندي پر وخت نه خبرېږم، چې په مستقیمه یا غیرمستقیمه توګه په ما پوري اړه لري د سږکال (۲۰۰۵م) په جولای کي مي افغانستان ته د تګ نېکمرغي په برخه سوه هوري مي د کندهار مجلې د دریم کال په شپږمه ګڼه (سلواغه ـ کب ۱۳۸۳ ش) کي د ښاغلي ډاکټر بسم الله امیر لیکنه (د میرزاحنان بارکزي دېوان) ولوستله او کله چي بېرته کاناډا ته راستون سوم، د نوموړي ډاکټر صاحب امیر له خوا د (افغان ولس) مجلې دوې ګڼې د دوی له لیک سره یو ځای زما پر پته رارسېدلي وې او د دریم کال په لومړی ګڼه (وری ۱۳۸۱ ش) کي هماغه مقاله هم چاپ سوې وه، چي مخکي مې یادونه وکړه دا مقاله څه کم درې کاله وړاندي ښاغلي امیر کښلې وه او زما په ګومان کله چي یې زما عکس العمل و نه لید نو یې په کندهار مجله کي هم خپره کړه زه د مقالې له لوستلو څخه دومره پوه سوم، چي د ښاغلي امیر خپلي هغه خواری هم ارمان دي. چي د حنان بارکزي د دېوان په ترتیبولو کي یې ښه ډېر کلونه وړاندي کښلي وې انفرادي هڅي چي له فرهنګي ټولنو او اشخاصو سره شریکي نه سي، همدا شان نتیجې ترې راوزي دا کانه په ما باندي هم د لوی احمدشاه بابا د دېوان د ترتیبولو پر وخت سوې وه له ښوخطي او چاپي نسخو څخه مي د لوی احمدشاه بابا دېوان ترتیب کړ خو چي خبر دم، د پښتو ژبې یو بل خواخوږي د بابا دېوان خپور کړ او زما په لاس ترتیب سوی دېوان تر ننه پوري له ښاغلي حمدالله صحاف سره د چاپ انتظار باسي

په هر صورت ښاغلي ډاکټر امیر چي زما په لاس د میرزا حنان بارکزي د دېوان د خپاره سوي چاپ په برخه کي څه کښلي دي، یو لړ پر ځای یادوني لري او زه د زړه له کومي منندوي ترې کوم او له ښاغلي صحاف څخه به وغواړم، چي د حنان بارکزي د دېوان په نوي چاپ کي د ښاغلي امیر یادوني په پام کي ونیسي دا نوی چاپ به که د پاک خدای رضا وه. له خورا ډېرو زیاتو نوسره په نژدې راتلونکي کي خپور سي

د ډاکټر صاحب امیر په مقاله کي یو لړ داسي ټکي سته، چي په شننه او توضیح ارزي تر هر څه لومړی د دې خبري یادونه ضروري ده، چي د متن په برابرولو کي د (میرزاحنان بارکزي دېوان) زما لومړی کار و او په سریزه کي مي کښلي دي ¨ د متن د تهیه کولو په برخه کي زما تجربه لږ ده او هرومرو به ډېري نیمګړتیاوي ولري ما خپل دقت کړی دئ که بیا هم تېروتلی وم له درنو لوستونکو څخه د بخښني هیله لرم (۱)، زه د درنو لوستونکو نظریاتو ته ډېر پخوا لاسترګي پر لار وم ښاغلی سعید ګوهر یوازنی څېړونکی و، چي زما د دغه کار (د حنان د دېوان د ترتیب او لهجې) په باب یې د میرزاحنان بارکزي د دېوان د کوټې بلوچستان په چاپ (۱۹۹۲م) کي خپل نظر څرګند کړ او جواب یې ما په هغه لیکنه کي ورکړ، چي (د میرزاحنان بارکزي په شعر کي تعمیې) تر سرلیک لاندي په (هیله) مجله

دویم کال لومړی گڼه (وری - غوایی ۱۳۷۷ ش) کې خپره
سوه زما په دغه جوابیه لیکنه کې د ښاغلي ډاکټر امیر ځینو
یادونو ته جوابونه سته. چې دلته به یې ځای ځای د
مجبوریت له مخې بیا تکرار راوړم. ما ته داسي ښکاره
سوه. چې ښاغلي امیر ته نه د میرزاحنان بارکزي د دیوان
د کوټي چاپ رسیدلی دئ او نه هم زما جوابیه لیکنه

ښاغلي ډاکټر امیر پخپله لومړی یادونه کې زما پر هغو
تصرفاتو او بدلونونو باندي اعتراض کړی دئ. چې ما د دغه
دیوان د ترتیبولو په وخت کې راوړي دي. په دې برخه کې یې
اول اعتراض دا دئ. چې ما ولي د حنان هغه غزلي په
متفرقاتو کې راوړي دي. چې د بیتو شمیر یې تر اوو زیات
و. ما دا کار لکه څنگه چې ښاغلي ډاکټر امیر څرگنده کړې
ده. د میرزاحنان د یوه بیت په استناد نه. بلکې د حنان د
مولانای جام په پیروی د خپل رغبت له مخې سر ته رسولی
دئ میرزا حنان د خپل دیوان په پای کې وایي. چې ده په ډېر
رغبت سره د خپل دیوان غزلي پر اووه بیته تمامي کړي دي
او مولانا بیا خپل دیوان څکه پر دې بحر تیار کړی دئ. چې د
قرآن الحمد هم اووه آیته ده د حنان خپلي خبري داسي دي

په پښتو ژبــــه مي ووایه کتاب
هـــــر غزل یې اووه بیته په حساب
دا په دا چې مولانا مولوي جـــــام
د دیوان غزل اووه بیته تــــــمام
چې الحمـــــد د قــــــرآن اووه آیته
زیاتـــــه نـــــه ده دا ابتداء تر نهایته
ده نـــــو رخپل دیوان پر دا بحر تیار کړ
ما هم خوښ په ډېر رغبت د ده رفتار کړ
الخ
(دیوان - ۲۴۵ مخ)

د شاعرانو د دیوانو په نوو چاپونو کې معمولا غزلیات
او قصاید و قطعې و رباعیات سره بیلوي ما د میرزا حنان د
خپل رغبت له مخې د ده غزلیات یو ځای راوړل او نور اشعار
مي په متفرقاتو کې راغونډ کړل او دا خبره مي په سریزه کې
په څرگنده توگه بیان کړې ده. په دیوان کې ځیني داسي غزلي
هم سته چې د بیتو شمیر یې تر اوو کم دئ. هغو ته مي
زیاتره په لمنلیک کې اشاره کړې ده. د دغو غزلو یو شمیر
کمبوتی د کوټي چاپ په دیوان کې بشپړي سوي دي ما ته د
دیوان تر چاپ وروسته یوه بله بشپړه خطي نسخه لاس ته
راغله. چې تفصیل به یې وروسته ولولئ. په دې نسخه کې د
غزلو د بیتو دغه کمبوتی پوره سوي دي او په نوي چاپ کې
به که خدای کول ټولي غزلي اووه بیتیزي وي

ښاغلی ډاکټر امیر وایي: دغه امانت موږ ته همداسي
رارسیدلی دی. موږ باید بې ضرورته لاس په کې ونه وهو
بل ځای د متن د غزلو د ترتیب په برخه کې وایي: زما په
نظر دغسې بدلون راوستل ضروري نه دي. که سړي ته د یوې
نسخې متن اصل ښکاریږي. هغه اصل دی. تو لاس وهل نه
دي پکې پکار. دلته شخصي ذوق او ځاني فکر ته ځای نه
پاتې کیږي (۲). د ډاکټر صاحب نظر ته له درناوي سره سره
باید عرض کړم. چې لومړی خو دا کار ترما وړاندي نورو
محققینو هم کړی دئ د رحمان بابا دیوان په ټولو خطي او
ځینو چاپي نسخو کې په دوه دفتره کې ترتیب سوی او هر
دفتر جلا جلا د الفبې پر اساس اوډل سوی دئ خو د
افغانستان چاپونه یې په یوه دفتر کې راغلي دي او د دواړو
دفترو اشعار سره مخ و شا ته سوي دي د عبدالحمید مومند
دیوان په ۱۳۲۳ ش کال د ښاغلي ژلمي هیوادمل په زیار د
یوې علمي پروژې په توگه د افغانستان د علومو اکاډیمی د
ژبو او ادبیاتو د مرکز. پښتو ټولني له خوا خپور سوی دئ
په دې چاپ کې ښاغلی هیوادمل وایي. چې د ده د متن
ردیف د نورو چاپونو سره څرگند توپیر لري او ترتیب یې
هم له نورو چاپونو څخه بیل دئ (۳). د حاجي جمعه بارکزي
دیوان هم د ښاغلي هیوادمل په زیار د ارواښاد علامه
اکاډمیسن پوهاند عبدالشکور رشاد (۱۳۰۰ - ۱۳۸۳ هـ
ش) تر نظر او لارښوونې لاندي په ۱۳۶۰ ش کال چاپ سوی
دئ دا دیوان هم په اصل کې په دوو دفترونو کې اوډل سوی
و خو چاپي متن په یوه دفتر کې راغلی دئ او طبیعي خبره ده
چې د غزلو په ترتیب کې هم بدلون واقع سوی دئ د اصل
او امانت مفاهیم په دې معنا نه دي. چې گویا موږ د زړو
متونو په ترتیب او اوډلو کې د لاسوهني حق نه لرو د اصل
معنا دا ده چې موږ باید د شعر کلمات. د مضمون د ادا کولو
طرز. د کلماتو وړاندي وروسته والی او د هماغه وخت ژبني
او گرامري جوړښتونه و ترکیبونه خوندي وساتو او په
هغو کې لاس ونه وهو د مثال په توگه د رحمان بابا د دیوان
پیل په دې بیت سره دئ

گوره هسي کــــــردگار دی رب زما
چې صاحب د کل اختیار دی رب زما

که موږ د «صاحب» پر ځای «څښتن» راوړو. نو له امانت
سره مو بېباکي کړې ده له بده مرغه دغه راز بېباکي د لوی

احمد شاه بابا له دیوان (د کابل چاپ ، سره سوي دي هوري د
'دلفریبه، شکرلبه، پریرویه، نرګس چشمه، موی کمره، '
کلمات، چي په ټولو خطي نسخو کي په همدا شکل دي، په
ترتیب سره په 'زړه فریبه، خوږشونډي، پري مخه، نرګس
سترګي، ملاوېښته ' باندي اړول سوي دي. دا کار له
'اصل سره بېباکي بولي، نه دا کار چي یوه غزله له خپله ځایه
بېځایه سي ځینو اولنیو خطاطانو پښتو (پ) په عربي (ف)
اړوله د (پیدا) پر ځای یې (فیدا) کښلي موږ حق لرو چي
(ف) یې په (پ) واړوو زیاترو به (کښي) د (کښ) په شکل
لیکله او په ردیف کي یې د (ښ) پر ځای راوړله خو اوس یې
موږ د (کښې) یا (کي) په بڼه لیکو او په ردیف کي یې هم
د (ښ) پرځای (یاء) ته نقلوو په پخوانیو نسخو کي دوه
سترګي هاء په زور (فتحه) ښودله کېده اوس موږ د فتحي
پرځای (هاء) ورکوو او طبیعي ده. چي دغه سمونه غزله له
خپله ځایه بېځایه کوي دغه راز بدلونونه (اصل) ته زیان نه
رسوي او د (امانتداری) پرنسیپ هم تر پښو نه په لاندي
کېږي ډاکټر صاحب ته ځرګنده ده. چي د روښاني عصر
شاعرانو خان ته بېل لیکدود درلود او د خوشحالخاني عصر
دا بېل د روښاني عصر د شاعرانو (ارزاني، میرزاخان،
دولت لواڼی ) په پخوانیو خطي نسخو کي یې د (ځ)
ګرافیم داسي کښلی، چي تر دال لاندي به یې ټکی ایښوو د
خوشحال خاني لیکدود (ځنځیری) له مخي به یې د (ن) له
پاره نون ته پر سر باندي همزه ایښووله اوس که موږ د
امانت په حکم دا دوه توري، چي ما د مثال په توګه راوړل،
په نویو چاپونو کي په هماغه شکل ضبط کړو، آیا د خندا وړ
کار به مونه وي کړی؟ موږ د هغه وخت په لیکدود کي نوی
بدلون راوړوست دا بدلون مثبت بدلون دئ له
لوستونکوسره د اشعارو په لوستلو کي مرسته کوي او په
دي کار سره اصل ته زیان نه دئ رسېدلی که موږ دا کار د
امانتداری پرخلاف عمل وګڼو نو به د (امانت) او (اصل) د
مفهومونو په پوهېدلو کي ستونزي لرو

ښاغلی ډاکټر امیر پخپله لیکنه کي زما هغه نظر ته،
چي 'د متونو د برابرولو په وخت کي د شاعر د لهجي په پام
کي نیول یو ډېر ضروري کار دئ ' ګوته نیسي او څلور
اعتراض ډوله پوښتني کوي لومړی دا چي 'د میرزا حنان
بارکزی له لهجي نه مطلب. همدغه لهجه ده چي موږ یې د
کندهار لهجه بولو او که (مرت کلا ، ځانته لهجه لري ؟ )) (۴)
په دي طنزآمېزه پوښتنه مي، چي رښتیا سي، سر نه سو
خلاص میرزا حنان بارکزی د کندهار د مرت کلا
اوسېدونکی و او د دغه کلي اوسېدونکي په هغه لهجه
خبري کوي، چي ژبپوهان یې لویدیزه لهجه بولي که ډاکټر
صاحب خپلي پوښتني ته صراحت ورکړی وای، نو ما ته به
یې د نوري توضیح امکانات هم برابر کړي وای اوس دي په
همدومره غاړه وباسي

له دوهمي او دریمي پوښتني څخه ما داسي مطلب
واخیست، چي ډاکټر صاحب امیر زما له دي خبري سره جوړ
نه دئ، چي د کندهار په لهجه کي او په مشخصه توګه د
دغي حوزي د شاعرانوپه کلام کي د 'چي' او 'چې' او د 'کي'
او 'کې' تر منځ د معنا په لحاظ توپیر سته او دا بحث یې
'زیاتی' بللی دئ په حاشیه کي یې لا دا خبره هم زیاته کړې
ده، چي ' (چي، د (چي یې) لنډه بڼه بلل د تامل وړ ده )) (۵)

زه نه پوهېږم، چي ډاکټرصاحب به په لویدیزه لهجه کي
څومره وارد وي خو د لیکني په پای کي چي یې د 'کلوچ'
لغت په باب خپله نااشنایي ښودلې ده. د هغې له مخي یې د
دي لهجي په هکله د خپلي نابلدتیا ثبوت ورکړی دئ زه به د
خپلي لیکني د ګنجایش په اندازه په دي برخه کي یو څه
توضیحات ورکړم په اوسني مطبوعاتي معمول لیکدود کي
د پښتو ژبي له ځینو لهجوسره سم (چي، کي) په اوږده یاء
لیکل کېږي خو په لویدیزه لهجه کي په همدې مورد کي د
اوږدي یاء کارول د معنا توپیر منځ ته راوړي دا توپیر نه
یوازي د (چي، چې ـ کي، کې) په برخه کي سته بلکي په دغه
لهجه کي نور هم داسي موارد سته چي د اوږدي یاء کارول د
معنا بدلون راولي په دي ټکي باندي زموږ د نویو تنکیو
ژلمیانو، چي لیکدود یې د اوسنیو نشراتو له مخي زده کړی
دئ، سر نه خلاصېږي او یا ډېر اهمیت نه ورته لري خو په
زړو متونو کي د دغه ټکي له پامه غورځول وراني پېښوي
څکه اولنیو شاعرانو د شعر سیلابونه د خپلي لهجي له مخي
اوډلي دي لهجي ته نه پاملرنه د شعر رواني ورزیانمنه کوي
او پر شاعر باندي د شعري اصولو د نه پوهېدلو یا نه
مراعاتولو الزام پیاوړی کوي او دا کار له شاعر سره جفا
غوندي عمل ګڼل کېږي څو مثالونه به په ګډه ولولو

د ((کې - که یې)) مثالونه

۱ ـ د حنان له کلامه

دا ګوهر به دي په کار سي کې په غوږ کړې
درته وکــــــړه 'حنان' څه ویل ملیح
(دیوان ۲۲ مخ)

کې خبرې کړې دوې سترګې خودبخوده
عجب نه ده پـــــــــرته وايي تل بيمار
(دېوان ۲۷ مخ)

په دواړو بيتو کې راغلي "کې" ظرفي ادات نه دي، بلکې د "که يې" لنډ شکل (مخفف) دئ اوس که يې ځوک د "که يې" په بڼه وکاږي، د لومړيو نيم بيتيو وزن يو سيلاب زياتيږي او ميرزا حنان دومره ناپوه شاعر نه و، چې د سيلابو په ترلو کې دې يې ستونزې درلودې ده د شعر په سيلابو کې خپله لهجوي ځانګړتيا په پام کې نيولې ده

۲ ـ د حاجي جمعه بارکزي له کلامه

د "جمعه" د زړه پرهار به هلته جوړ سي
کې رفـــــو په تار د زلفو کړې جراح
(د کابل چاپ دېوان ۵۷ مخ)

زړه مې درکئ زمـــــا يارهٔ ستا په لاس
ستا رضا ده کې لوټل کړې که يې پاس
(دېوان ۲۸ مخ)

د دې ګلو تېرېده د چــــا پـــــه ياد دي
کې پرې ايښې پرځای نه وای نابيان ګل
(دېوان ۸۱ مخ)

په دې دريو مثالوکې هم "کې" د "که يې" په مفهوم کار سوی دئ په دوهم مثال کې خو شاعر د سيلابو په ترلو کې خپل مهارت او لهجوي ځانګړتيا ډېره ښه ښوولې ده لومړی (کې = که يې) يې له خپلې لهجې سره سم راوړی دئ او دوهم وار که يې خپله لهجه په پام کې نيولې وای، نيم بيتی بيوه هجا لړېدی، ځکه يې نو د "که يې" په بڼه راوړی دئ او سيلابونه يې په پوره کړي دي لکه وړاندې چې اشاره ورته وسوه، د حاجي جمعه بارکزي دغه دېوان ښاغلي زلمي هيوادمل د ارواښاد علامه رشاد بابا تر نظر لاندې تهيه کړی دئ او لارښود استاد يې په دغه باريکي سر ښه ورخلاص کړی دئ ځکه يې هر ځای و دغه راز مورد ته په لمن ليک کې د (کې = که يې) توضيح ورکړې ده

د "چې = چې يې" مثالونه

۱ ـ د ميرزا حنان له کلامه

د فلک د باغوان لاس د پرېکېدو دئ
پر جـــــهان چې د بېلتون تخم کاره
(دېوان ۱۲۱ مخ)

ګل ورقې د خپل ځان ورکړې و باد ته
چې ليدلئ ستا د مخ د خـــط رقم دئ
(دېوان، يو سل وڅلورشپېتم مخ)

په دواړو بيتو کې (چې) د (چې يې) مخفف شکل دئ که يې د (چې يې) په بڼه وکاږو، د بيت د هجاوو شمېر د بود په اندازه ورزياتوي په دې لاندې مثالو کې بيا د (چې يې) په معنا نه دئ راوړل سوی

چې د خط سبزې يې ځای په رخسار ونيو
زمـــــا د زړه آيينې ځکه زنګار ونيو
(دېوان ۱۰۱ مخ)

اوس که د پورتني بيت (چې) د مروج ليکدود له مخې (چې) وليکل سي ګويا د شاعر مراد به (چې يې) وي او دا معنا له بيته سره سر نه خوري

دا ليدلې يې غمزه ده ستا د سترګو
چې آهو له ښاره کوچ وکړ بري ولاړ
(دېوان ۳۲ مخ)

په دې بيت که (چې) د (چې) په بڼه وکښل سي، د (چې يې) معنا ښندي او په دې صورت کې به نو "آهو" له عموميته ووزي او په يو چا يا يو ځای به اړه ولري همدا سببونه دي، چې زه د "چې" کلمه په دغسې مواردو کې په اوږده يا، نه کاږم

۲ ـ د جمعه بارکزي له کلامه

چې خنداکړه په شاهی د بادشاهانو
په سپېرو ايـــــرو لړلي ملنګان ولاړ
(دېوان ۲۸ مخ)

ننګ ونام و سود و زيان د دنيا پرېږدي
چې خالص وي يې پــر ديداربانداي غرض
(دېوان ۷۲ مخ)

په دې دواړو بيتوکې (چې) د (چې يې) لنډيز دئ او په حاشيه کې ښاغلي مرتب ورته اشاره کړې ده

د حاجي جمعه بارکزي په دېوان د (چې = چې يې) لمنليکونه د ان دپاسه دي زما خيال دئ، چې ښاغلي ډاکټر صاحب امير د حاجي جمعه بارکزي دېوان نه دئ کتلی يا به يې دقت نه وي ورته کړی که يې کړی وای بيا يې نود (چې = چې يې) حکم د تامل وړ نه باله زه د دغې باريکۍ د نورې څرګندتيا له پاره نور مثالونه هم راوړم

د "مې = مې يې" مثالونه

وکتوتـــه يې د سترګو حيرانېږم
چې مې ګل هډونه کړه ريزه ريزه
(د حنان دېوان ۱۲۸ مخ)

داد به څو کړم د بې رحم یار له جوړه
پر سینه مې د تېغ کین وواهه ولاړ
(د حنان دېوان ۳۲ مخ)

په لومړي بیت کې شاعر خپلو هډونو ته اشاره لري، چې کوم بل چا وو (ریزه ریزه) کړي دي که یې دلته د (مې) پر ځای (مي) راوړی وای، نو به بیا د بیت معنا دا وای، چې حنان خپل هډونه پخپله (ریزه ریزه) کړي دي په دوهم بیت کې یې خپله سینه مطلب ده، چې بې رحم یار وربانديي د کین تېغ وواهه او ترې ولاړ که دلته هم (مې) د (مي) په بڼه وکښل سي، مطلب به دا وي، چې حنان پر پخپله سینه باندي پخپله د کین تېغ وهلی دئ او بېرحمه یار یې د ده تر دغه کار وروسته تللی دئ دغه سبب دئ، چې زه د جملو له سیاقه سره سم (مي) او (مې) دواړه کاروم خو په مروج لیکدود کې، چې کله کله کره لیکدود هم بلل کېږي، یو شکل لري او په اوږده یاء یې کاږي په دې لاندي بیت کې وګورئ، شاعر (مي) د (مې) په معنا نه دئ راوړی

صحیفه مي د زړه وګـــورئ عالمه
پکښې نقش دئ کلي احوال د ترکو
(دېوان ۹۷ مخ)

اوس به د دغه راز لنډیزونو نور مثالونه هم په ګډه سره ولولو

د (نې = نه یې) مثالونه

۱ ـ د حاجي جمعه بارکزي له کلامه

نه خبر د عشق په زیان یاست
نې خبر یاست پـــــه حاصل
(دېوان ۸۰ مخ)

نې ازل له ابتداء سته چي و کله
خاوند نه لـــــــري ابد نه انتها
(دېوان ۳۹ مخ)

۲ ـ د حنان له کلامه

چي نې خوري، نه یې نوم بنه نه د خدای پار وي
دغـــــه هسي استغنا څـــــه په کار نه ده
(دېوان ۱۱۵ مخ)

له دې خپله زړه ګیله کړم ډېره ډېره
چي د یار کـوځې ته تئ نې کړم خبر
(دېوان ۳۰ مخ)

د دواړو شاعرانو په مثالوکي (نې) د (نه یې) مخفف دئ او که یې لنډیزه بڼه ونه کښل سي، د نیم بیتي په وزن کي یود یوه هجا زیاتېږي

د (بې = به یې) مثالونه

۱ ـ د جمعه بارکزي په کلام کي

چي بهار بې پـــه راتللو شګفته سو
دغه هسي لاله رخه خوبرویان ولاړ
(دېوان ۲۷ مخ)

په هوا بې د دیدار کړې فراموشه
هم جنت هم یې زینت هم یې لذت
(دېوان ۴۸ مخ)

۲ ـ د حنان بارکزي په کلام کي

که مي سر که مال که عقل دئ که صبر
تر دیدن بې کـــــــړم قربان د شکرلب
(دېوان ۱۳ مخ)

چي شهید په تېغ د سترګو سي حنانه
پس له مرګه بې لګېږي پر مزار شمع
(دېوان ۵۳ مخ)

۳ ـ د علامه رشاد بابا ... په کلام کي

خود بې نه تولېږي مړي، خود بې ملک په وینو رنګ وي
د قـــــــــوي له جوغه غـــــــاړه چي هر چا ده غړولې
(افغان ولس مجله ـ پنځم کال، لومړی ګڼه، ۲۹ مخ)

په دې تولو مثالوکي (بې) د (به یې) په معنا راغلې ده او د نفی (بې) نه ده په دې لاندي بیت کي (بې) د نفی په حساب کارسوې ده

تمام عمر یې له وصله بې نصیب یم
لکه زخم د ناســور حاصل مي یاس
(د حنان دېوان ۴۵ مخ)

زما څخه لکه چي د مثالونو برخه لړ څه اوږده سوه پر همدې ځای یې پای ته ورسوم او لوستونکي دي د (تې = ته یې ، زې = زه یې ، سرې = سره یې) او نور په لسو مثالونه د حاجي جمعه بارکزي په دېوان کي ولولي

د دې بحث په پای کي خپله داخبره، چي د پخوانیو متونو په ترتیبولو کي دي د شاعر لهجه په پام کي ونیول سي. د حاجي جمعه بارکزي د دېوان د ښاغلي مرتب په دا لاندي نظر پیاوړې کوم دی وایي ... دا د متن څېړني یو عمده اصل دی، چي مصحح او د متن څېړونکی باید د متن په ژبه کي لاسوهنه ونه کړي او د هغه مهال په ژبه، چي شاعر

پکي ژوندکړي ـ لرغه خبروي ډېر خله اوریدلي شوي، چي مونږ باید کلاسیک متونونه په معیاري لهجه ؟ خپاره کړو دغه خبره د متن څېړني له اصولومخالفه خبره ده. مونږ نشو کولای چي د احمدشاه بابا دیوان په یوسفزي لهجه خپورکړو . یا د پیرمحمد کاکړ، شمس الدین کاکړ او حنان بارکزي دیوانونه په شرقي لهجه تهیه او چاپ کړو. دغسي عمل که له یوې خوا د متن څېړني له موازینو سره مغایرت لري، له بلي خوا د شاعرانو د کلام شعري کیفیت ته هم زیان رسوي" (۷).

ډاکټر صاحب امیر د دې بیان په ترڅ کي یوه عجیبه فتوا ورکوي او هغه دا چي "کي" ته ټکي نه دي په کار، "چي" به "له سیاقه لولو" او دا هم په دې دلیل چي "مونږ ولي په لوی لاس خپله ژبه او لیک لا پسي گرانوو " (۶) ښاغلي ډاکټر صاحب ته به په ډېراحترام عرض کړم، چي د یاګانو مراعاتول او د لیکدود بشپړتیا او پرمختیا د ژبي په لوستلوکي اساني راولي، نه گراني زه د دې بحث له تفصیله ځکه تېرېږم، چي زما په خیال ډاکټر صاحب ته خپلي فتوا پخپله هم خوند نه دئ ورکړی او څوکرښي وروسته یې په لمنلیک کي کښلي دي "دغه تش یو نظر دی، که نه په دی اوس وخت زه د پښتو لیکدود په باب له پخوانیو پرېکړو سر نه غړوم او له ځانه څه نه راباسم" خو له دې صراحت سره سره یې پخپله ټوله مقاله کي له پخوانیو پرېکړو سره سم یاګانو ته ټکي نه دي ایښي او په سلو کي نوي یې بې ټکو لیکلي دي ما د دوی نقل قولونه کټ مټ رانقل کړي دي او تاسي یې وینئ، چي یاګاني ټولي بې ټکو دي.

د ښاغلي ډاکټر صاحب څلرم اعتراض پرځای دئ او ورسره منم یې په (بایلود او بایلو ) کي باید یو شکل غوره سوی وای خو دا چي (وقت) مي په (وخت) اړولي دئ دا کار عام او زما بدعت نه دئ. ما رشتیا هم (خلق) په (خلک) اړولي دي او د غزلي ځای طبیعي ده، چي بدل سوی دئ دلته مي امانت تر پښو نه دئ لاندي کړی ځکه په لمنلیک کي مي واضح کښلي دي، چي په اصل کي (خلق) و د دغه صراحت په شته والي کي د امانتداری د نقضولو سوال هېڅ پیدا کیږي نه

د لغتنامې د ترتیب په برخه کي د ډاکټرصاحب امیر یادوني پرځای دي خو د الفبې په ترتیب د لغتنامو تهیه کول عام دود دئ او ما د دغه عام دود تر اغېزې لاندي د حنان د دیوان لغتنامه ترتیب کړې ده.

د میرزاحنان بارکزي د دیوان هغه قلمي نسخه، چي ډاکټر امیر یې په (اد) راښیي، ما ته نسبتا بشپړه نسخه وایسېدله ما ته د نوموړي دیوان تر ترتیب وروسته ښاغلي حمدالله صحاف یوه بله بشپړه نسخه هم راکړه. دا نسخه د ۱۲۹۲ ق کال استنساخ ښکاري او تر نورو ټولو خطي او چاپي نسخو بشپړه او ۳۲ غزلي، قطعات او قصیدې زیاتي لري د دغي نسخي له مخي ما ټولي هغه کمبوتی بشپړي کړې، چي په چاپي نسخه کي موجودي وې

دا لیکنه ما یوازي د ځینو ټکو د توضیح او لا ښه بیانولو په نیت وکړه بل منظور مي نسته د ښاغلي ډاکټر بسم الله امیر انتقادي سلیقه د ستایلو وړ ده هیله ده، چي په راتلونکي کي هم خپلي نقادانه لیکني د پښتو ژبي پر څېړنیز بهیر ولوروي

محمدمعصوم هوتک
اوکویل ـ کاناډا
۲۱ جولای ۲۰۰۵ ع

**لمن لیکونه**:

(۱) د میرزا حنان بارکزي دیوان ـ د سریزي (ف) مخ ـ د ۱۳۷۰ ش کال چاپ تر دې وروسته چي د میرزا حنان د دیوان کومي حوالې وینئ، مراد مي د دیوان همدا چاپ دئ

(۲) افغان ولس مجله ـ دریم کال، لومړی گڼه، ۲۱ مخ ما د ډاکټر بسم الله امیر د مقالې نقل قولونه له (افغان ولس) مجلې څخه ځکه اخیستي دي، چي هورې مقاله د دوی پخپل سلیقه یې لیکدود چاپ سوې ده او د یاګانو په ټکو یې سر نه دئ گرزولی په کندهار مجله کي د مجلې چلوونکو لیکدود وراړولی دئ

(۳) د عبدالحمید مومند دیوان ـ د سریزي ۱۱۸ ، ۱۱۹ مخونه ـ ۱۳۲۳ هـ ش کال

(۴) افغان ولس مجله، هماغه گڼه، ۲۲ مخ

(۵) هماغه مجله ـ هماغه مخ

(۶) هماغه مجله ـ ۲۳ مخ

(۷) د حاجي جمعه بارکزي دیوان ـ سریزه او لغتنامه د پوهاند عبدالشکور رشاد ـ ۳۷ مخ ـ ۱۳۲۰ ش ـ کابل

عبدالمجید بابی

## د کندهار یو پیاوړی شاعر او په جهاد کي ستړی مجاهد

# صالح محمد وطندوست



وطندوست د کندهار د هغو نوموتو شاعرانو څخه دی، چي د کندهاري شاعرانو د تذکرو پاڼي به تل تر تله د هغوی په نوم او زړونه به د هغوی د یادښت په انځورونو ښکلي وي. د یادونو همدا مجاهد او غازي شاعر د نن څخه (۷۰) کاله دمخه په ۱۳۱۴ لمریز کال د لرغوني کندهار په سهېلي څنډو د بالاکرز د تاروزو په کلي کښي د خپل پلار ښاغلي احمد پوپلزي کره چي هغوی همهلته د خپل مهال یو منځنی ډوله مځکه وال و وزېږېد. احمد پوپلزي پر همدې نوي پیدا سوي کوچني باندي د صالح محمد نوم کښېښود، صالح محمد د خپل پلار تر پېرزوین سیوري لاندي تر ډېره ونه پاڼېدی. لا یې د ژوندانه دوه کاله نه وه بشپړ کړي چي په ۱۳۱۶ لمریز کال کښي یې خپل پلار د تقدیر په حکم له دې نړۍ څخه ستر ګي پټي کړې. د صالح محمد کورنۍ لا د دې ویر تغر نه و ټول کړی چي په ۱۳۱۸ لمریز کال کښي یې د مور لوریاله څېره هم تر خرورونو خاورو لاندي څني تړۍ تم سوه.

خو دا چي ځښتن د خپلو بنده ګانو د پایښت لپاره بېلابېلي لاري او چاري پکار

اچوي د همدې کتني او پېرزوينې پر بنسټ يې د صالح
محمد روزنې او پالنې ته د دوی ترور غوره وګڼل، هغې بې
بې هم د دغه بې موره او بې پلاره کوچنې و سپې روزنې ته په
ډېر لوړ همت او پياوړو ولولو سره ملا وتړله او په ورين تندي
او پرانستې غېږه کښې يې صالح محمد د ژوندانه تر هغه
پړاوه راورساوه چې د ليک لوست د تر لاسه کېدو پر اړتيا
يې د خبرو اترو ډګرونه تاوده سول، او پر ېکړه پر دې سوه
چې صالح محمد دې د تاروزو په مزدک (مسجد) کښې د
همدې مزدک (مسجد) امام ملا عبدالاحد اخوند ته د
دوديزه ديني زده کړو لپاره ولېږل سي. په همدې توګه
په کور کښې د خپلې همهغې ترور چې ژوند يې د ده روزنې
ته وقف کړی او په دباندې په مزدک کښې د خپل ملا څخه
په روزنې پالنې او زده کړه سره د ژوندانه شپې او روځې يو
په بل پسې سبا کړې، څو دغه بې موره او بې پلاره کوچنی د
ځلميتوب تر پولې ورسېد او په دې توګه شل کلن ځلمی
سو. دا ۱۳۶۴ لمريز کال وُ او په همدې کال کښې دغه په
ستونزو او کړاوونو را روزل سوی دنګ او ښکلی ځوان د
دنيا د چارو او دنيايي کاروبار څخه مخ واړاوه او د دوی د
ترور په ويناد دنيا سره د دغه مخه ښه موده تر دوو کلونو
پوري وغځېده. هغوی دا دوه کاله د هيچا سره هيڅ ډول
اړيکي ونه پاللې، هغوی يو مخيزه ګوښه توب غوره کړی وُ،
شپه او روځ يې د سوچونو نيلی د هسک تر پولو او د مځکې
تر ځنډو ځغلاوه، يوه شپه چې دی د سوچونو پدغه يون
کښې د هسک پر مخ د خپل نيلي سره په ګښت و او د
ځورلسم سپيني او ښکلي سپوږمۍ يې لار روښول، همدې
سپوږمۍ ته تر څه ګړي هېښتيا وروسته يې خپله دوه کلنه
چپتيا ماته او تر خوله يې همدا شعر راووت:

اې د څورلسم سپوږمۍ وينم دې راخېژې ته
بيا ځنګه ځلېږې ته، بيا ځنګه ځــــلېږې ته

د دوی لخوا د چوپتيا او خاموشۍ سره دمخه ښه په
همدې ځانګړې شپه او د ژوندانه د يوه بېل خوند او رنګ
پدغو ګړيو کښې هغوی يو بل شعر هم وواية:

زړه مې يووړ د کوګله هغو دوو سترګو
صد سلام وايم د يار پر خمارو ســترګو

خدای ﷻ خبر زموږ غازي شاعر ځنګه سترګي ليدلي،
د کومې څېرې په شتون کښې به يې ښايست او ښکلا ليده،
کوم خوند او رنګ به وُ چې د هغه د کوګله يې د هغه د زړه
تاوونه کشول، او دا به څه ډول د ښايست تجلا او ځلا وه
چې په ختلي زړه يې بيا هم هغه ته لاس پر څګر په سل څله
سلامونه وړاندي کول. په هر ډول هر څه چې وه خو دا د
ده د شاعرۍ لومړی ګړی او په دې ډګرونو کښې د پيل
اېښوولو پيل وُ، د همدې شپې څخه ده شاعرۍ ته په هغه
کچه ملا وتړل چې تصور يې نه کېدی، آن په يوه شپه به يې
تر لسګونو شعرونو پوري ويله او ورو ورو شعر وينه د هغوی
ورځني بوختيا وګرځېدله. هغوی په شعر کښې د ځان
لپاره د وطندوست نوم غوره کړ او په دې نامه سره هغوی
ډېر ښکلي او په زړه پوري شعرونه وويل، په هره برخه او
هر چا د خوښۍ سره يې سم شعرونه وويل.

پر هغه که د ژوندانه شپې او روځې د بهانده اوبو په
څېر تېرېدې خو لا يې په شعرونو کښې د شاعرۍ د لومړۍ
شپې انځورونه همهغسې ځلمي پاته وه، لکه چې وايي:

شنه خالونه د آشنای پر زنخدان شــــوخ
راوختله ستوري پر آســــــمان شوخ
چې يوسف جلا کوي له قـــــبله ګاه څه
خدايه مه راولې بل داسې کاروان شـــوخ
د لـــــــيلا پر ځنګانه چې وُ خوب وړی
د مجـــــــنون تر سينه وختـه نلان شوخ
د افـــــغان په لاله زار کي شور پيدا سو
وطندوست چې پکښې وواية داستان شوخ

هلته که وطندوست د خمارو سترګو د ليدلو په بيه
کښې زړه حلالاوه دلته پر زنخدان د آسمان د سپينو او
ځلانده ستورو کښت ويني. وطندوست د همدې درنې
بوختيا او د شعر و شاعرۍ د نړۍ په مشغولا کښې د نن څخه
۳۰ کاله دمخه د خپلې مېرمنې او خپلو درو زامنو هر يوه:
مير يحيی، عبدالهادي او عبدالواجد سره د خپل پلرني
ټاټوبي بالاکرز څخه د ښار پر لور راوکوچېدی، دلته په ښار
کښې يې د کندهار - سپين بولدک دوه لاري ته نژدې د
مامور حنان په کلاچه کي پخپل ځاني کور کښې واړول،
هغوی د بالاکرز او هغه د خپل پلار څخه د ور پاته مځکې د
پاللو سره هم خپلې اړيکې وساتلې او د هغه تر ځنګ يې د
اړتيا له مخې د ښاري بوختيا لپاره په همدې ياده سوې دوه
لاره کښې د عطارۍ هټۍ پرانسته دلته د ښاري استوګنې پر
مهال هغه د درو لونو او بشير احمد په نوم د يوه زوی څښتن
هم سو. د لته د ده د ناستي ځای هم هټۍ والي او هم د
شاعرانو، سندرغاړو او شعر دوستانو د راغونډېدو يو تود
منځکی وګرځېد. د سهار د لومړيو ګړيو څخه به د ماښام
د تيارې تر څېرېدو پوري دلته د شاعرانه او هنرمندانه
څېرو څخه ژبرنده سپېڅلي باندار جوړ وُ.

یوه لوري ته که به مثلي شاعر عبدالرازق دلسوخته ناست وُ په بل اړخ کښي به ښاغلی عبدالکريم شاعر او ښاغلی محمد انو رشاعر څنگ پر څنگ ناست او د دې دوکان د شاعرانه ناستي ښکلا به يې زياته کړې وه .

د خيل مهال د همدې وتلو شاعرانو په وړاندي به د سندرغاړو شپول هم جوړ وُاو په دې شپول کښي به أعظم کندهاري، صالح محمد، استاد محمدنور، سيد جمال (نعمت الله)، عبدالباري، د لښکر گاه گلالی، فضل، پاپاوآغا او عبدالحبيب گنډونکی د نورو تر څنگ هره روځ راغونډ وه او د سندرو لپاره به يې د شعرونو د غوره کېدو او غوښتو باندارونه پالل او د دواړو اړخو لخوا به په مينه مينه د هر ډول کيني پر ته په بشپړه گرانښت سره د يوه او بل درنښت پر ځای کېدی .

همدا گرانښت او همدا درنښت وُ چي د بالاکرز عبدالله چي د خپل مهال نوموتی سندرغاړی او د سندارا (موسيقی) زده کړه يې تر يوې پولي په هندوستان کښي بشپړه کړې وه هم ځله نا کله د ځان غوندي بل نوموتي سندرغاړي عبدالحميد آغا سره د وطندوست پر مېنه د شاعرانو او سندرغاړو په تودو باندارونو کښي برخه اخيسته او د دوی د باندارونو ښکلا او ارزښ به يې څو چنده نو رهم ور زيات کړ . چي وروستي يې د نورو غوندي د وطندوست شعرونه د سندرو په ډول په خپل ښکلي بږغ کښي هم ويلي دي او د ده د بږغ د مينه والو سره د چمتوړو (کستونو) پر مخ خوندي دي .

د صالح محمد وطندوست او د ده د همکارو او همغاړو نن له سبا څخه ډېره سوکاله او له خوښي ډکه وه، خو د بده مرغه د خوښيو او د دې ناستو پاستو عمر لنډ او لکه چي بېلتون په څېپړه يې مخ د شنه کېدو انتظار کيښ .

هو ! همداسي سوله، کله چي وطندوست دلته په ښاري مېنه کښي د ملگرو، دوستانو او انډيوالانو سره پټې سو . د غوايي بدلون خپله ناولې څېره راڅرگنده کړه . تر څه مهاله لا وطندوست همدلته په ښار کښي مېشت وُاو د خپلو سلگونو او زرگونو ښاريانو او هيوادوالو په ډول يې د کمونستانو او د هغوی د پلويانو په وړاندي د سپېڅلي جهاد لاره غوره او د خپلو مجاهدينو وروڼو په درانه او سپېڅلي صف کښي ودرېد، د دې لپاره چي د جهاد او غزا چاري په ډاډمن او اغېزمن ډول تر سره کړي نو يې غوره وگڼل چي بيرته خپل پلرني ټاټوبي ته همغه خپل اولني کور او مزدک ته کډه وکړي :

چي توکل ټينگ پر سبحان نه لري
دغه مـــؤمن کامل ايمان نه لري
و هر انسان ته د انسان په حيث کتل لازم دي
چي وسيله پر مســلمان نه لري
دغه مؤمن کامل ايمان نه لري
پوړني ورکړه نو يې کښېنوه د ښځو سره
د غيرت توره چي افغان نه لري
دغه مؤمن کامل ايمان نه لري
پر يوه ځای باندي سنگين کښېنه سنگين ولاړ سه
درگنه شيخ نوم او نښان نه لري
دغه مؤمن کامل ايمان نه لري
فرض روژه وخوري دی له کسته وطندوست وايمه
چي لمونځ قضا کړي بيا هم دی په زړه خپگان نه لري
دغه مؤمن کامل ايمان نه لري

وطندوست همهلته په بالاکرز کښي د غزا په ويلاړ (نيت) د يوې خپلواکي غزاډلي د راغونډېدو په لاره کښي زياتي ستړياوي وگاللې او د غزا په تودو ډگرونو کښي يې ډېري خولې تويي کړې، د ده نور غازي ملگري شهيد نورمحمد چريک، شهيد عبدالکريم او حيات الله اخوندزاده د ده د تکړه ملگرو او غښتلو غازيانو څخه وو :

د آزادی د ناوي بيا جشن تيار دی
چي کړی يې سينگار دی پرمخ وهي خالونه
پايزېب يې شرنگ کوي د توري
خـــبري تل کـــړي زوروي
تر نقاب لاندي يې ساتلی سپين رخسار دی
چي کړی يې سينگار دی پر مخ وهي خالونه

مونږ افغانان پر ننگ مين يو
وطن ساتو پر جنـــگ مين يو
پروانه هر وخت کباب سوی په انــــگار دی
چي کړی يې سينگار دی پر مخ وهي خالونه

د هجر شپې تمامي سولې
زړې قيصې تمامي سولې
سر کړه راپورته وطندوسته جوړ ســـهار دی
چي کړی يې سينگار دی پر مخ وهي خالونه

د آزادی د نـــــــاوي بيا جشن تيار دی
چي کړی يې سينگار دی پر مخ وهي خالونه

کله چې وطندوست د غزا په ډګرونو کښې ښه وځلېد، د جهاد یوه لوی حزب د ده لپاره د ځانګړې جبهې او ځانګړو وسلو د رسمیاتو تابیا وکړه خو د بده مرغه د ده وسله د ده د شهادت په روځ راورسېده. دا هغه روځ وه چې بالاکرز ته د ۱۳۵۹ لمریز کال د کب د میاشتې پر لسمه نېټه د دوشنبې په روځ سره پوځ او د دوی کورنیو اجیرو لښکرو د بالاکرز او د هغه سره پر څنګ نورو سیمو ته مخه کړه. هغوی د پوځې وحشت په لړ کښې د دې کلیو ډېر ځوانان د پټیو او کورو څخه را وایستل او د ځانګړې زغره وال ګاډې په وړاندې یې تېرول، چې په ترڅ کښې یې صالح محمد وطندوست د نورو (۶) تنو غازیانو په ملتیا د ډلو ډلو ځوانانو د منځه را بېل او بیا یې د کلچاباد (قلیچ آباد) او بالاکرز د ژرندې تر منځ په تړلو لاسونو و ژور کاریز ته ور پورې وهلې او دې سرې خورو سرو وحشیانو د ګولیو په باران شهید کړ (انا لله و انا الیه راجعون).

بیا دې مخ ښکاره کړ د ګلزار په وږمـــو ښه راغلې
زړونه دې ژوندي کړه د بهار په وږمـــو ښه راغلې
بیا دې د ژوند هـــــــوا راوړې ده د ځان سره
ورک دې کـــــړه خارونه د بلبل په ناړو ښه راغلې
بیا دې ښه عطرونه تول جـــهان باندې پاشلي دي
شین بخمل هوار دی د ساقي په جـــامو ښه راغلې
بیا دې نوی رنګ نوی لباس ورکـــــړ ګلونو ته
قتل دې خزان کړ د خزان په خــــایو ښه راغلې
بیا دې نوی ژوند راوړی بیا دې نوی خـــوند راوړی
وصل د عاشق کړې د معشوق پر خـــیالو ښه راغلې
بیا دې "وطندوسته" ښه راغـــــلې ته ځان تیار کړ
خدای دې زموږ روزي کړه د شاعر پر وږمو ښه راغلې

کله چې وطندوست په تړلو لاسونو د سره ښکېلاک د سرو پوځونو په سرو ګولیو په شهادت ورسېد د دوی د مزدک خلکو هغوی لیدلی وُ، نوموړی د سرو سپیو تر تللو او تولېدلو وروسته د کاریزه راوایست او مزدک ته یې راووړ او بیا یې د هغه شهید ښوزلي زامن او دوستان په خبر کړه. د هغوی لخوا د غزا دې شهید ته د نورو لسګونو غوندې شهیدانو په څېر ښخېدو ته د شین غزي بابا زیارت غوره وګڼل سو.

اوس یې زیارت جوړ او د زامنو له خوا یې د پېژندنې دړه پر درول سوې ده.

د وطندوست د شهادت په روځ د ده د لویې جهادي تشې سربېره د جهاد دوه نور تکړه غازیان هر یو ملا عزیزالله او ملا نظرمحمد (ملا نظرماد) چې د شیرسرخ له لوري را رهي او بالاکرز ته پداسې حال کښې تله چې د سرو پوځونو د راوتلو څخه ناخبره وه، د زابر پر پله چې همغه مهال په خلقې پله سره یادېدی او خلقیانو جوړ کړی وُ، د شوروي پوځیانو له مورچله وویشتل سوه او دواړه همدلته شهیدان کړه سوه. دغه دوه نومیالي غازیان هم د وطندوست سره په یوه غوندی کښې د شین غزي بابا تر څنګ ښخ دي:

یوه شپه په خوب کې راغله په غاړې دُر دانه وه
چې ویښ سومه له خوبه مجنون وم لـیلا نه وه
په زلفو کې راوړې د جنت د باغ ګـــلونه
سلام ته یې راغلې نامـــــرده بورا نه وه
یوه شپه په خوب کې راغله په غاړې دُردانه وه
چې ویښ سومه له خوبه مجنون وم لـیلا نه وه

چې یې کښېناستم تر څنګ په لیدو یې شاه جهان سوم
خوشال ختک یې دوست وُ اورنــګه زېبا نه وه
یوه شپه په خوب کې راغله په غاړې دُردانه وه
چې ویښ سومه د خوبه مجنون وم لـیلا نه وه

د مخ په تصور کې یې پر ما تېره ســوه شپه
ســـهار سو بیرته ولاړه پېرزو یې بالا نه وه
یوه شپه په خوب کې راغله په غاړې دُردانه وه
چې ویښ سومه له خوبه مجنون وم لـیلا نه وه

سهار چې ما وطندوست کـــتل و هري خوا ته
په تولــه کـــندهار کې ماه رویه زېبا نه وه
یوه شپه په خوب کې راغله په غاړې دُردانه وه
چې ویښ سومه له خوبه مجنوم وم لـیلا نه وه

شهید صالح محمد وطندوست سربېره پر هغه چې هم غازي هم مجاهد هم شاعر او هم مځکه وال وُ، و لویانو او بزرګانو ته یې هم سر ټیټ کړی وُ. هغه پخپل ژوند کښې د مرد کلا د سیدمحمد جان آغا مرید وُ، چې هغه بزرګوار خپله د نقیب صاحب د خلیفه ګانو څخه شمېرل کېدی. د سیدمحمد جان اغا زامنو هر یوه حاجي ابراهیم جان آغا، جانان آغا او عبدالمالک آغا د سپېڅلي جهاد پر مهال د جهاد په تودو ډګرونو کښې لوی لاس او لویه برخه لرله او د شهید صالح محمد وطندوست سره یې اړیکې ډېرې تودې او د ورور ګلوی څخه ډکې وې:

درخم ستا تر درباره حضرت پیران پیره
حضرت پیران پیره یا غوث دستگیره
ته شاه غوث الاعظم یې
د هر بې کســه دم یې
د رب یې نـــازبرداره
حـــضرت پیران پیره
درخم په ډېر امــــیده
داغسي نا امـــیده
نه ځم ستا د درباره حضرت پیران پیره
حضرت پیران پیره یا غوث دستگیره
لقب مي وطــندوست دی
نازک مي د مخ پوست دی
بېرېږم د اغـــــیاره
حـــضرت پیران پیره

**د شهید صالح محمد وطندوست په شهادت سره نه یوازې د هغه ملګرې، اندیوالان، خپلوان، زامن او کلیوال غمجن وو، بلکې د جهاد ټول سپېڅلي برخوال یې خوږ او خوږمن کړه. د کرز او بالاکرز زیاترو خلکو هغه ته ځانګړې درنښت درلود هغه یې یو پاک او سپېڅلی شهید ګاڼه او تل یې د هغه د شهادت د ځایه روڼا او سپیني وړانګې لیدلې او د هغه په یادېدو سره به یې د زړه د مرادونو غوښتنې کولې او ښښتن ته یې د هغه د ارواح د خوښی لپاره دوعاوې وړاندې کولې.**

**دا د ځلاوو وېناوې د وطندوست مشرې خور چې اوس یې عمر تر (۹۰) کلونو رسیږې رښتینې او پر ځای بللې ده.**

**خدای ﷻ خبر وطندوست د چا په تورو زلفو کښي د خپل زړه منګولې ښخي لیدلې او د هغه تر وره پورې د رسېدو په لاره کښي لنډ ګړې ورته اوږده کلونه ښکاره سوې دي:**

زړه مي دا ستا په تورو زلفو ګرفتار دی
در به سم لیلا را رسېدلی دي ریبار دی
د دا خپل سوال ځواب دي واوره
منکره نه سې ولي کــړی دي اقرار دی
یو ساعت نه معطله کېږم
دستي به درسم چې زړګی مي ناکرار دی
د سپیني خولې به بهانه کې
دلُ جان دواړه درکوم که دي په کار دی
نوم او وطن هم درښیمه
زه وطندوست یمه وطن مي کندهار دی
زړه مي دا ستا په تورو زلفو ګرفتار دی
در به سم لیلا را رسېدلی دي ریبار دی

**شهید صالح محمد وطندوست لکه چې د اسلام د لارې د یوه وتلې مجاهد او لوی غازی شین غزې بابا څنګ ته د ابدي خوب لپاره ځان ورساوه دا د دوی هغه مینه وه چې پخپل ژوند کښې یې هم تر ډېره پاللې وه، هغوی د نېکانو او لویانو د زیارتونو د ډوریو ډېر خیال ساتې او تل به یې د هغوی څخه لیدنه او کتنه کوله.**

**همدارنګه دا چې خبره د دوی د مینې او علاقې یاده سوه نو ښه به دا وي چې د وطندوست د مینې د یوه بل اړخ یادونه هم وکړو، هغوی د مرغانو د روزنې سره ډېره مینه لرله، هغوی د مظلومانو او بېوزلو سره ځانګړی زړه سوی درلود او د هغوی یې په هر حال او هر مهال کښې ډېر قدر کاوه.**

**په خپله آریزه ورهنه یانې د شعر په برخه کښې یې د تورې او لیکنې د اتل خوشحال خان خټک د شعرونو سره ځانګړې او لېونۍ مینه درلوده.**

**د شهید وطندوست د کلونو کلونو شعري زېرمه لکه د ده غونډې هغوی هم د ظالمانو د وحشت ښکار ګرځېدلې او له منځه تللې ده.**

**کله چې د ده په مړینه او د ده په ویر او ګروم د ده کورنی د غرو لاسونه او پښې وتړل سوې او چارچاپېره ورته د ناهیلی د پوالونه ووهل سوه او ورته خپل کور او کهول سور تبخي وګرځېد نو یې د خپلو میلیونونو هیوادوالو غونډې وړ وګڼل چې د خپل کور او کلي پرېښېدو ته ملا وتړي.**

**کله چې د دغو بېوزلانو قافله تر رېګه ورسېده هلته بیا هم د سرو لښکرو سره مخ او د دغو یتیمانو او د غزا د یوه مظلوم شهید بار کړې کډه یې د اور په لمبو کښي وسوځل، چې د کورنیو توکیو تر څنګ د وطندوست د کلونو کلونو شاعرانه زېرمه چې په ځانګړو کتابونو کښي راغونډه سوې وه هم د اور خوراک وګرځېده.**

**په همدې توګه د وطندوست شاعرې د ده د روح سره مل سوه، هغه هڅه چې د خلکو په زړونو او د خلکو لخوا د سندرو په ډول پر چمتوړو ویل سوې لا څه نا څه پاته ده چې د هغوی څخه د ښاغلي وطندوست شاعرانه استعداد او په دې لاره کښ د وتلي قریحې دروندوالی د ورایه ښکاره کېږي. لوی ښښتن دې د غازي او مجاهد شاعر شهید وطندوست ارواح تل د جنتونو مېلمنه وګرځوي او یاد دې تل تر تله وي.**

د وطندوست د شعرونو په همدې يوه بېلګه سره د اروابناد وطندوست همداليکنه چې د دوی د درېيم زوی عبدالواجد وطندوست څخه د معلوماتو په لاس ته راوړنه سره ترتيب سوې ده پای ته رسوم. او ورسره جوخت زياتوم چې د اروابناد وطندوست مېرمن چې د بالاکرز د عبدالله خان لور ده د پولي څخه ها خوا ته تر کډې کولو وروسته په ۱۳۷۱ لمريز کال او د دوی هغه ترور چې د دوی پالنه او روزنه يې کوله په ۱۳۷۵ لمريز کال کښې د هيواده ليرې په کډوالۍ کښې د نړۍ سره مخه ښه کړې او همهلته وربانندې خاورې اړول سوي دي. خښتن دې وبخښي.

زما د يار په لاس کې گل دی پر څنګو يې چارګلان دي
حاجت نه لري و زاغ ته ورسره ټول بلبلان دي

غوړېدلی هر چمن دی
باور وکه هر ګلشن دی
باغ و بڼ ټوله د ده دي
چې پکښې کې ښه توتيان دي
چې ښکاره سو و ګلباغ ته
رقيب ووتی په تاخته



زړونې وړي په منګول دي اوس اکثره بېدلان دي
حاجت نه لري و زاغ ته ورسره ټول بلبلان دي

توري زلفي لکه مشک
مشک يې کړه د ختن مشکه
په جبين کي يې وهلي شنه خالونه زر افشان دي
سرې لباني يې لعونه
داسې دي لکه خالونه
وطندوست يې لېونی کړم بل شی نه دي لېونيان دي
جاجت نه لري و زاغ ته ورسره ټول بلبلان دي

۞۞۞

## مياخيله ناهيده :

**ډکې دي وي د پښتنو ميندو غېږې په داسې قهرمانانو اولادونو !**

**وياړ دي وي پر دې پتمنې قهرمانې شهيدې !**

✻ ✻ ✻

**ما دغې قهرمانې شهيدې ته "اې پښتنې ناهيدې" تر عنوان لاندې داسې خطاب کړی دی :**

آ پر ساتنه د خپل پت او د عفت شهيدې !
پاکې، سپېڅلې. غيرتمنې پښتنې ناهيدې !
ستا په رګو کې په رښتيا د پښتنو وينه وه
د پت پالنې، د غيرت او د پښتو وينه وه
تا بې ناموسو وسله والو ته ونه سپاره ځان
برنده ځوانۍ دې تر نامه او تر ناموس کړه قربان

و دي دانګل د شپاړسم بلاک له شپږم منزله
آفرينونه پرښتو ستا پر همت ويله
ستا و غيرت ته وې هريانې د اسمان ملکې !
وياړ دي پر تا او ستا پر قام وي د افغان ملکې !
ستا د سرو وينو له هر څاڅکي سرخرويي راڅېږي
ستا په مېړانه حق لري چې پښتنې نازېږي
پخپل ايثار دې کړې شملې د افغانانو جګې
ستا دې رتبې وي په جنت کې تر وليانو جګې
ستا پر تابوت باندې ګلونه د رحمت را اوري
ستا درجې ته د جنت حورې په رخه ګوري
ستا په وياړلې جنازه پسې چې ځي مېړونه
اوښکي يې څاڅي تر لېمو. له خولو يې ځي آهونه
ستا په تابوت پسې روان دی يو توپان د خښم
بېره له زړو څخه ايستلې ده طغيان د خښم
په جار نارې وهي د ملک پر بادارانو وه مرګ
پر دې نا اهلو. نالايقو واکدارانو وه مرګ
چې نه مو مال او نه مو سر. نه مو ناموس ساته سي
داسې دولت. داسې اردو دې د بلا په خوله سي
وياړ دې پر تا وي اې اصيلې پښتنې ناهيدې !
په جګه غاړه افغانان په تا پسې رهي دي
وايي : "تاريخ چې د دې ملک د ناموړو ليکو
ستا کارنامه په په جلي قلم په زرو ليکو"

سه شنبه ۲۰ دلو ۱۳۷۱ ش

## د ډيورنډ کرښه . .

تر مخه خو د قوم يووالی مطرح وُ چې د ډيورنډ د کرښې له موجوديت او غير موجوديت سره ټينګه اړوندتيا لري . بله ئې دا چې ښاغلی راز و خپل وروستي ټکي ته چې امريکا به د ډيورنډ کرښه ايسته کوي، ډېر وروسته او هغه زمان چې دۀ خپله مقاله بشپړه کړې وه، ځير سوئ دئ، يا بل چا دغه راز ورښوولئ دئ . دا ځکه چې خپله مقاله ئې په ډېر شد وُ مد سره کښلې ده . که نه ګانه دی و وړاندنې ټکي ته ځير وای، دغه مقاله به ئې هيڅ کښلې نه وای . ځکه چې د وروستي ټکي په احتمال کښې عبث او هدر ده .

نوري پسې ويناوي او يا مقالې د ښاغلي راز د معروضاتو سيده يا ناسيده جواب وايي .

نور بيا . . .

# په کاناډا کې

# د کندهار

## کلی سل کلن سو

عبدالباري پیاوړی

پروسږ کال نه وړم کال کله چي د افغانستان خبره ډېره توده وه، د کار په ځای کي یو سپین ږیري امریکایي پوښتنه راڅخه وکړه چي د کم ځای یې؟ ما ورته وویله چي د افغانستان د کندهار یم.

ده راته وویله چي ته اول افغان یې چي وینم دي، خو زه په کندهار کي تېر سوی یم، ماته د ده خبره عجبه ښکاره سوه، ورته ومي ویل که تا کندهار لیدلی دی کندهار خو ټوله په افغانانو ډک دی. نو زه څنګه اول افغان یم چي تا اوس ولیدم؟ ده په جواب کي راته وویل: یا، زه د سکاچوون کندهار در یادوم، دلته هم یو ځای د کندهار په نامه یادیږي چي د ۱۶ نمبرهای وې (Highway۱۶) پر سر پروت دی.

تر دغي ورځي وروسته زما سره د دغه کاناډا د کندهار د لیدلو شوق پیدا سو. د کاناډا په اطلس کي مي وکتل د کندهار نوم چي دغسي (Kandahar) لیکل سوی دی پیدا مي کړ بیا مي په نقشه کي دغه د کندهار د کلي موقعیت پیدا کړی چي د سسکاتوون و ښار ته نژدې پروت دی، هغه و چي د اګست پر یوولسمه د وانکوور هوایي ډګر ته ولاړم او د سسکاتوون د ښار ټکټ مي رانیوی، کاناډا څرنګه چي د نړۍ تر ټولو ډېر پراخ هیواد دی نو سفر اکثراً د الوتکو په ذریعه تر سره کیږي، لکه لیني بسونه یا ټکسي غوندي چلیږي.

د سهار لس بجې وې چي الوتکه د هوایي ډګر څخه والوتل، ورځ روښانه او ښه لمر و، الوتکه د وانکوور د ښار د پاسه چي ډېره ښکلې منظره یې درلوده د شمال ختیځ پر لور سمه سوه. د غرونو د پاسه تېر بدله، دا غرونه چي د





**د کاناډا د کندهار په کلي کي لومړنی ښوونځی (۱۹۱۷ م)**

لمني يې په واورو پټي او په ځينو برخو کي کينګل ليدل کېدی. د غرونو تر منځ د زلالو اوبو جهيلونه ډېر په ستر ګو راتله چي ښکلا يې په قلم نه بيانيږي. د غرو په منځ کي رنګ په رنګ (خړې او سپيني) اوريځي پورته او کښته کېدلې يوې خوا او بلې خوا ته به سره راتاوېدلې او رنګ رنګ شکلونه به يې جوړول . لس دقيقي وروسته الوتکه د اوګناګن (Oganine) د ناوې پر سر تېر بدله. دغه سيمه د کاناډا ارغنداو دی. هري خوا ته په مېوو ډک باغونه لري . تقريباً لس رقمه منې. ډول ډول ناک. شفتالو، ګيلاس، آلوبالو، شاتوت، انګور او داسي نوري مېوې پکښي پيدا کيږي . د ترکاري کښت هم ډېر کيږي. خلک ګلان هم روزي چي نړيوال شهرت لري .

الوتکه د برتيش کلمبيا وروته د البرتا ايالت ته داخله سوه چي دا ايالت هم د کاناډا د ډېرو شتمنو او ښکلو ايالتو له جملې څخه شمېرل کيږي . د کاناډا هيواد د سېلانيانو درې مشهور ځايونه چي (بانفوذ جاسپر او ليک لويز) نوميږي په همدې ولايت کي دي چي هر کال په ميلينو خارجي سېلانيان د دغو ځايو و ليدلو ته راځي .

دوه نيم ساعته وروسته الوتکه د سسکاتوون Sasdatoon هوايي ډګر ته ورسېده. سسکاتوون د نړۍ تر ټولو هوار سرسبزه زراعتي مځکي او فارمونه لري . دغه ځای د غنمو د حاصلاتو د ډېروالي له کبله نړيوال شهرت لري .

سسکاتوون د کاناډا د ښارونو له جملې څخه يو ځوان او ښکلی ښار دی. يو ځپاند سيند د ښار له منځه څخه تېريږي. د سسکاتوون مشهوره تحقيقاتي پوهنتون د همدې سيند پر غاړه جوړ سوی دی . د سيند دواړه غاړې په تفريحي ښکلو پارکو باندي اراسته او د ښاريانو استراحت ځای دی . د سسکاتوون د سيند د پاسه يو شمېر پلونه جوړ سوي دي چي ليدلو يې ماته د پاريس ښار را په زړه کي . د سسکاتوون ښار د طبيعي ښکلا، طراوت و د کوڅو او بازار د پاکي او روحي ارامی له کبله په ايرو کي پټ غمی ښکاري . د کاناډا افغانان دي د دوبي په موسم کي د دغه ښار سير و سياحت نه هېروي .

د سفر په دوهمه ورځ مې موټر هار ۱۱ بجې وې چې د کندهار د کلي د پيدا کولو په نيت رهي سوم . د سسکاتوون د ښار او د کندهار د کلي تر منځ فاصله (۱۸۰) کيلومتره ده .

د کندهار د ليدلو په اميد دا سفر ډېر خوشحاله او په زړه پوري و. په لاره کي به کله کله داسي حالت راته پېښ سو چي احساس به مي دا و چي زه په افغانستان کي سفر کوم او کندهار ته روان يم .

ځای ځای به در بدلم او د لاري پوښتنه به مي کوله. مقصد به مي دا و چي لار يقيني او سفر مي و هدف ته برابر وي . لوی او کوچني کلي و مخي ته راتله. د افغانستان په ډول د لويو لارو پر سر دوکانونه، رستوران او کافي شاپونه، مسافر و در بدلو ته اړ باسي چي دا کار به ما هم کاوه او په دې ډول د محل او سيمي په هکله به مي يو څه معلومات لاس ته راتله .

يو شي چي په دې سفر کي ما اضافه وليدی هغه د کاناډا د خلکو مينه او علاقمندي ده. د دوی د تاريخ او فرهنګ سره په دې معنی چي په هر کلي کي عمومي لاري (های وې) ته نژدې د هغه کلي يو کوچنی موزيم موجود وي دا موزيم به يا په پخواني ښوونځي يا د رېل ګاډي پخواني اسټيشن يا د اطفايي پخواني مرکز او داسي نورو ورته تعمير و کي و چي په هغه کي به د هغې منطقې او سيمي پخواني شيان لکه :

د اريکين څراغ، زوړ د خياطي ماشين، زوړ اوتو، زوړ واسکټ، پخواني زړې جامې، زاړه اخبارونه، پخواني عکسونه. د ټايپ ماشين، بايسکل. د کالو رنګ په رنګ غوټي (د کمې)، زاړه بوټونه، موزې او ګاولي، د آس قيضه، د غنمو لور، اره او تېشه، زړې عينکي، قلمان، مشواني، د اوبو زړې لوټې، زوړ منقل او داسي نور په سلهاوو نور شيان .

په کاناډا کي د کليو ژوند ډېر پر کيف دی، خلک يې ډېر صميمي، مهربانه او بالطفه دي . په زړه پاک او بې مقصده راشه درشه لري . تر يوې اندازې پر شناخت هم ټينګ ولاړ دي، کله چي به مې د چا څخه پوښتنه کوله چي دالار چيري تللې ده؟ نه يوازي دا چي زما د لارې په هکله به يې معلومات راکول، د کلي د نورو لارو په هکله به يې هم معلومات راکړل او که به وخت ورسره و نو د خپل کلي يوه لنډه تاريخچه به يې هم راته بيان کړه او د تېر کال د ژمي د واورو او يخنۍ په هکله به يې هم څه راته وويله . که به يې بالکل ډېر وخت درلودی نو به راته ټينګ سو چي ياره راسه يو پيالـه چاي يا کافي وڅيښه بيا بـه ولاړ سې، خداى ج د کراري مل دی و به رسېږې ټوله ورځ دي په مخ کي ده . نو هغه و چي د کور او کاله څخه شروع بيا تر مځکي او پټي او حاصلاتو پوري به مو ټوله خبري وکړې چي نوري خبري به نه وې بيا به يې د خپل خدل سپي بيان راته شروع کي چي زما د سپي نوم دغه شی دی، دونه يې عمر دی په ذات دغه شی دی، خبره مي !وري، په موټر کـي زمـا و څـنګ تـه کښېني، ډېر راباندي ګران دی او داسي نور او نور .

آخر ځل چي مي د کندهار د کلي پوښتنه وکړه هغه د يوه کور د مېرمنـي څخـه وه چـي دا او دوه ماشومان او تور غټ سپی يې د کور په باغچه کي ناست وه، کله چي مي د دې سره خبري کولې د موټر دروازه مي خلاصه وه، د خبرو په پای کي چي مي کټل د دې سپی راغلی زما و څنګ ته په سيټ کي کښېنستی چي مېرمنې هر څه سپي ته وويل چي راتا سه، هغه نه تاکېدی. بالآخره يې په غېږ کي په زوره له موټره کښته کی . تر دغه ځای وروسته د کندهار لومړۍ تخته يا لوحه راښکاره سوه چي پر ليکلي وه : (کندهار يو کيلو متر Kandahar ۱ km) تر دې لوحې چي تېر سوم يو کيلو متر وروسته بله لوحه راښکاره سوه چي کندهار پر نوښته واو د کلي و خوا ته يې اشاره کړې وه . د کندهار کلی زما پر چپه لاس واقع و . و کلي ته ور داخل سوم د کلي په شروع کي ترافيکي لوحه ولاړه وه چي پر نوشته وه سرعت (۳۰ کيلومتره) تر دغي لوحې وروسته د سړک پر راسته خوا يو کوچنۍ کوډلـه ولاړه وه چـي پر د ېوال يې نوشته وه :

"ښه راغلاست"

تر کوډلي چي تېر سوم څلور لاري مخ ته راغله، راسته لاس ته وګرځېدم د سړک په پای کي يو ځوان هلک د کور چمن ربېی ورته ودرېدم چي په دې وخت کي يې پلار راښکاره سو، ځان مي ورته معرفي کی او د خپل راتګ مقصد مي ورته ووايه، ښه ټينګ روغبړ يې وکی او د کور و مخ ته مو شل دقيقې مجلس وکی ده د کندهار د کلي په هکله څه نيمګړي معلومات راکړل، ځيني رهي سوم چي د کلي په هغه بله خوا کي مي يوه مېرمن وليدله چي دې هم خپل د کور چمن ربېی، دې ته ودرېدم چي دا خلاصه سوه سلام مي ورته ووايه د خبرو په منځ کي دې راته وويله راسه کور ته هورې به مجلس وکړو، د دې نوم کاتي سنوک Kathy Snuok او پُر معلوماته ښځه وه . ددغه کلي بل اوسېدونکی چي تر ټولو پخواني اوسېدونکی دی بيري شارټ (Mr. Berri Shorth) نوميږي د دوی دواړو معلومات او يو څه نور معلومات چي د کتابونو او مجلو څخه ما د کندهار د کلي په هکله راغونډ کړي دي په دې ډول خلاصه کوم :

د کندهار کلی د کاناډا د سسکاتوون په ايالت کي د ۱۶ نمبر های وې پر سر پروت دی، دا کلی د (بيګ کوويل) د جهيل يا ولاړو اوبو پر غاړه آباد سوی دی، دغه ولاړې اوبه مالګه لري او د اوبو پر غاړه د مالګي د جوړولو فابريکه هم فعاله ده، وايي چي پخوا په دغه ولاړو اوبو کي سپين ماهيان پيدا کېدل او اوبه يې خوړې وې، خو په سوو کالو دمخه د آسمانه څخه يو غټه ډبره په دې اوبو کي راولېدله، ډبره په اوبو کي ډېره ژوره ولاړه چي تر مځکي لاندي د مالګي و معدن ته ورسېدل، هغه و چي اوبه د دغه مالګي د عدن سره په تماس کي تروې سوې ماهيان يې ټوله مړه سول او اوس ټوله اوبه د مالګي په اوبو اوښتي دي چي مالګه ځني جوړيږي .

د کندهار د کلي پخواني سړک چي خامه واو د رېل ګاډي لين يې و څنګ ته تېر سوی دی د ۱۴ نمبر های وې په نامه يادېږي چي دا سړک اوس د تګ راتګ څخه لوېدلی دی پر ځای يې ۱۶ نمبر پخه های وې فعاله سوه، پر دغه کلي د کندهار د نامه د ايښوولو کيسه داسي ده :

په (۱۸۸۰ م) کال انګرېزي پوځ پر کندهار حمله وکړه او انګرېزانو په جګړه کي د درنو او سپکو وسلو د کارولو باوجود ډېر تلفات ورکړل او جګړې ډېر شديد حالت اختيار کړ. په دې جګړه کي زيات و کم لس زره انګرېزي پوځ برخه اخيستې وه، دواړه خواوي سخت وجنګېدل، کندهاريانو د خپل وطن دفاع کوله، انګرېزانو د خپل تېري دفاع کوله. انګرېزانو جګړه په شدت سره مخ ته بيوله دوی په يوه نابېره حمله کي د کندهار دفاعي

کمربند مات کړ . افغاني جنګیالي د مرچلو څخه راووتل د انګر یزي پوځ سره یې لاس په ګریوان جنګ شروع کی . ډ یر پکښي شهیدان سول ، خو په انګر یزي پوځ کي یې هم کوټي وایستلې ، چي انګر یزي مړي ټوله د کندهار د ښار د کلا و د یواله ته نژدې چیري چي اوس د کندهار د مرستون تعمیر دی (عید ګاه جاده) ښخ کړل او انګر یزانو د تخنیکي بر تری له کبله وکولای سوای چي د کندهار ښار قبضه کړي .

دغه جګړه د انګر یز د هغه وخت په امپراتوری کي لویه جګړه بلل کېده ، د جګړې د شدت او د تلفاتو د شمېر د زیاتوالي له کبله د کندهار جګړه یو مشهور جنګ پاته سو ، نو کله چي په کاناډا کي د ریل ګاډي خط جوړېدی او دغه د کلي سټېشن ته راورسېدل د نومونو د ایښوولو کمېسیون پسله ډ یر تحقیق څخه دا ور وبلله چي دغه استېشن د افغانستان د کندهار په نامه کي او په دې ډول د افغاني شهامت او انګر یزي مقاومت خاطره ژوندی وساتي . په لومړي سر کي کندهار په (C) لیکل کېدی یعني (Candahar) خو په ۱۹۱۲ م کال کي د کندهار د ریل ګاډي استېشن رسماً د کندهار په کلي تبدیل سو او د کندهار نوم هم په (K) ولیکل سو یعني (Kandahar) او په ټول تاریخي اسنادو کي همداسي ثبت سو .

د تاریخي نوشتوله مخي د کندهار د کلي لومړني اوسېدونکي د ناروې Norway د هیواد مهاجر وو چي په ۱۹۰۴ م کال کي راغلل ، بیا وروسته د آیسلنډ Iceland د هیواد مهاجر هم دلته میشته سول . کله چي کندهار په کلي تبدیل سو نو حکومت سمدلاسه نوي واټونه او سړکان وایستل ، د واټونو پر دواړو غاړو یې د نهالګیو ایښودلو کار شروع کړ ، د کورونو خلک یې مجبور کړل چي د کلي د ښکلا په خاطر د کورو و مخته ګلان او شنه بوټي کښېږدي .

د نوي سړکانو او واټونو په قطار کي یو د (کابل ایونیو Kabul Avenue) ، (خیبر ایونیو Khyber Avenue) او د (اورځکي ایونیو Orchaky Avenue) په نامه واټونه جوړ سوي او تر نن پوري په همدې نومو پاته دي . د کندهار په کلي کي اجتماعي خدمات مخ پر زیاتېدو سوه ، د تلیفون او تیلګراف لینونه پرانستل سوه ، دوه بانکونه د مونټریال بانک او بل امپریل بانک فعاله سوه . د کې کندهار په نامه هوټل پرانستل سو ، په ۱۹۱۰ ع کال د پوستي خدماتو څانګه فعاله سوه او بیا یو کافي شاپ چي د (نوي نړۍ New World Coffee Shop) په نامه یادېدی هم پرانستل سو .

د کندهار کلي ورو - ورو مخ پر غټېدو سو ، د کلي ساحه پراخه سوه ، یو په بل پسې د خوراکي موادو ، آهنګری او سلماني دوکانونه خلاص سول ، د رملتون پکښي فعاله ، د فېشن لویه مغازه راووتل ، چاپ خانه پکښي جوړه سوه ، عصري غټه مسافرخانه او د غنمو غټ ګدام پکښي پرانستل سوه ، د ځوانانو او مېرمنو کلوپ هم منځ ته راغلل ، د کلي و لوېدیځي خوا ته د سپورټ ډګر جوړ سو چي د ټوپ ډنډې ، فوټبال او د آسانو د سپرلۍ لوبې پکښي اجراء کېدې او د شاوخوا کلیو ټورنمنټونه به هم دلته اجرا کېدل .

په ۱۹۱۳ ع کال کي لویه کلیسا او بیا په ۱۹۱۴ ع کال کي لومړی ښوونځی چي دوه صنفه یې درلوده پکښي پرانستل سول . د ښاروالي او پولیسو دفترونه راغلل ، د موټرانو د ترمیم ګراج جوړ سو ، د د ټېنس د بازیو ډګر هم پرانستل سو ، د شاوخوا کلیو خلک به د سپورټي لوبو ننداري لپاره کندهار ته راتلل ، بالآخره دغه ځای د تجارت او بیزنس د کار په یوه مرکز تبدیل سو ، اکثراً تجارتي راکړه ورکړي پکښي تر سره کېدلې ، د کندهار کلي لویه د حیواناتو طویله درلوده چي د خلکو آسونه او نور حیوانات به یې د پیسو په مقابل کي ساتل .

په ۱۹۳۰ ع کال کي د مجالسو او غونډو لپاره لوی صالون پکښي خلاص سو په دې صالون کي به د هري شنبې په ماښام تور او سپین فلمونه چي آواز یا رږغ به یې نه درلودی ښکاره کول .

د کندهار ښار ښه رونق پیدا کړ ، اجتماعي خدمات او د ژوندانه سهولتونه پکښي ورځ په ورځ ډ یر ېدل ، دا کلي داسي معمور او آباد سو هغه اصلي کندهار چي د دنیا په هغه بل سر کي و دا سهولتونه او اسانتیاوي یې په خوب نه وې لیدلي .

دغه ټول خدمات ، ښې چاري ، د خلکو کاروبار ، خوږ ژوند او بسا ټولنه نابېره د یوه اسماني بلا چي عبارت له پرله پسې وچکالیو څخه وه د منځه ولاړله ، او نن د دغه ټوله آباد او سمسور کلي څخه یوازي او یوازي نهه (۹) کوره د کندهار په کلي کي ژوند کوي او بس .

د ۱۹۳۰ ع کالو په لسیزه کي د کندهار کلي د څو کالو لپاره پرله پسې وچکالي وواهه ، دې کار د خلکو ژوند ور تارومار کی ، ډ یر یې وځپل ، او ډ یر خلک یې و کډې ته اړ ایستل .

پاته په (۴۰) مخ کي

پوهنوال :- رسول باوري/هالنډ

۲

# امیر عبدالرحمن خان

## او د هغه اندونه

**هیواد او نظام ته د خطر ځواکونه**

د دې سره سره چې اعلیحضرت عبدالرحمن خان د افغانستان پر اوسنۍ محدوده پوره واکمن و، خو د یوه مدبر پاچا په توګه یې د هغو خطرونو څخه ستر ګې نه اړولې چې په هغه مهال کې د هیواد او نظام لپاره د خطر ځواکونه ګڼل کېدل. نوموړي په خپل اند د هیواد د دوام او پایښت لپاره د خطرونو تر ټولو ستر لاملونه په دریو برخو وېشلي دي :

لومړی : د سلطنتي کورنۍ په دننه کې اړ پیچ او جنګ جګړې.

دویم : هغه ځواکونه چې د روس لوري ته تښتېدلي دي.

دریم : هغه کسان او ځواکونه چې د انګلیس لمن یې نیولې ده.

اعلیحضرت عبدالرحمن خان د لومړي ستونزي او خطر د مخنیوي لپاره پخپلو کې د یووالي او اتفاق درلودل تر ټولو سه لار بولي او په دې اړه لیکي : د زړه له کومي هیله من یم چې زما تر مړیني وروسته په هیواد او د کابل په ښار کې جګړه او جنجال را پیښ نه سي. دا ځکه چې ما هڅه کړېده چې په خپل ژوند کې هغه کارونه تر سره کړم چې له امله یې د کورنۍ د غړو تر منځ د جنګ جګړو سبب ګرځي. په خپل ژوند مي ټول امور او کارونه داسي تقسیم او تنظیم کړل چې د کورنۍ د غړو تر منځ نفاق رانه سي. او ټوله مي د خپل مشر زوی په مشرۍ راضي کړیدي. ما د پخوانیو واکمنو په څېر د هیواد پر هره برخه بېل ځواک چا ته ور نه کړ او د دې کار څخه مي په پوره پاملرني ځان وژغوری. ځکه چې د دا ډول ځواکونو درلودل د کورنۍ د غړو په منځ کې د جنګ جګړې اصلي ریښه ده. زه ګمان کوم چې زما په کورنۍ کې به د دا ډول مخالفت چاري مخ ته رانه سي، دا په دې چې هیڅ یو دا توان نه لري چې د هغه چا پر خلاف را پورته سي چې هغه پر ټولو ځوکونو، خزانې او واکمنۍ برلاسی دی. پر دې سربېره چې د دې خطر مخه نیول سوېده خو د هغو تر څنګ نور لاملونه هم سته چې د جنګ جګړو سبب ګرځي.

د دویم خطر د مخنیوي لپاره د اعلیحضرت عبدالرحمن خان په اند : د زیات تشویش ځای نه سته خو د هېر بدو هم نه دی، دا خطر د هغو کسانو له خوا راپېښ دی چې د انګلیس په لمن کې د فرصت په هیله ناست دي. یو خو مي دا کار وکړ چې د کار کسان او د توجه وړ شخصیتونه مي له هغو څخه را وستلي او خوشحاله کړي دي او یو شمېر نور یې چې هلته پاته دي هغه هم په پټه او یا څرګنده توګه

زما ځخه مواجب تر لاسه کوي او دا ځر ګنده ده چي د نړۍ تر ټولو غیرتي کسان نه سي کولای چي د یوه منظم لښکر سره داسي مخامخ سي چي تر شا یې ځوک نه وي. په دې ډول به دا کسان هم د نورو په څېر د بیا واکمنی خوبونه ویني او هلته به له منځه ځي. په دې هم پوهېږم چي انګلیسي افسران دا نه سي هېرولای چي هغوی ځو ځله خپلي وعدې ماتي کړي او د روس سره یې د انګلیس پر ضد تړونونه وکړل. خو که داسي وګڼو چي انګلیسي افسرانو هم خپله حافظه له لاسه ورکړل او د افغانستان د واکمنی پر خلاف یې د جګړې لپاره ځوک وهځول او یا وګمارل، بیا نو زما خپلو اولادونو ته دا نصیحت دی چي زما تدبیر خپل کړي او تر هغه وخته د دښمن سره وجنګېږي تر ځو دښمن مات سي او که په دا ډول جګړه کي د سر بایللو اړتیا وه هم باید دریغ یې نه کړي (تاج التواریخ : دویم ټوک ۱۲۸ مخ).

دریم خطر د هغو کسانو له خوا دی چي د روسانو سره ملګري دي. روسان د انګلیسانو برعکس په افغانستان کي غښتلی حکومت نه غواړي، هغوی خپلي ګټي په ناتوانه دولت کي ویني، ځکه هر وخت هڅه کوي چي په افغانستان کي کورنی جګړې او ناآرامي دوام ولري. روسان په افغانستان کي کورنی جګړې ته ځکه خوښ دي چي د هغوی په اند، که په دې هیواد کي کورنی جګړې وي، دا هیواد به ناتوانه وي او انګلیس به د هغوی لپاره په لوېدیزو کرښو کي خطر نه سي پیدا کولای. دوهم دا چي د هند او روسیې تر منځ باید ځواکمنه کرښه نه وي. که چیري هلته د لاسوهنو اړتیا ولیدل سي په هغه وخت کي به بیا انګلیسان هم زیات عکس العمل ونه ښیي. که انګلیسان یو څه وکړي هم، هغه به د لنډو مذاکرو او د یو ځو ورځیانو په حدودو کي وي. د دې تر څنګ هغه خبره چي د زیات پام وړ ده هغه د سردار اسحق خان او د هغو د ملګرو ده چي اوس د روسانو په لاس کي دي. که څه هم سردار محمد اسحق خان غواړي د روسانو ملګر تیا خپله کړي، مګر تر اوسه یې د پوره باور ځای ته خان نه دی رسولی، خو کولای سي چي فساد او جنجال پیدا کړي. او دا هم ځر ګنده نه ده چي هغه به پرمختګ وکړي او که نه؟ هغه خبره چي روښانه ده هغه پر سردار محمداسحق خان او د هغه پر ملګرو د افغانانو نه باور دی. هغوی ما ته وخوړه او افغانستان یې پرېښود، ځکه اوس خلک باور نه پر کوي (تاج التواریخ : دویم ټوک ۱۳۰ مخ).

**دولتي اداري او د هغو لاربښوونه**

پخوا تر دې چي اعلیحضرت عبدالرحمن خان واک ته ورسیږي، په افغانستان کي د اداري په نوم څه نه وه پاته سوي، د هیواد لوی ښارونه او له هغې جملې د کابل ښار د سیمه ییزو ښه ځوانانو او کاکه ګانو په مټ اداره کیدی. اعلیحضرت عبدالرحمن خان د واکمنی له پیله د یوه مرکزي غښتلي دولت د جوړېدو پر لار ګرندي ګامونه واخیستل. همدا لامل و چي د هغه تر مړيني وروسته هم دولتي واکمني د خطر سره مخ نه سول. نوموړي د خپل اداري نظام د پراختیا او ساتني لپاره ځانګړي اصول او موازین پلي کړي وه :

**د خزانو او عایداتو چاري**

اعلیحضرت عبدالرحمن خان لیکي:

د ټول هیواد عایدات خزانې ته رسیږي او د مصارفو لپاره هم ټول هیواد ته د همدې خزانې څخه پیسې ورکول کیږي. خزانه پر دوو برخو وېشل سوې ده، عامه خزانه او خاصه خزانه. خاصه خزانه زما شخصي خزانه ده چي زما د ملکیت، تجارت او باغونو څخه پیسې ورته راځي او زما د شخصي کارونو او مصارفو لپاره هم د همدې خزانې څخه کار اخلم. یوازي زما د کالو او خوړو لپاره د عامه خزانې څخه پیسې اجراء کیږي. دا دواړي خزانې بیا پر دوو نورو برخو وېشل سوي دي، جنسي خزانه او نقدي خزانه. چي دا ټوله په ارګ کي ساتل کیږي او هم په ټولو ښارونو کي د دې خزانې دفترونه سته چي ساتنه یې د دولت لخوا په سیمه کي ټاکل سوي مستوفیانو پر غاړه ده او د ټولو په سر کي مي یو تن مستوفي الممالک ټاکلی دی. هر څومره پیسې چي خزانې ته راځي او یا بیرته له خزانې څخه وزي، د هر یوه رسید باید موجود وي. هیڅوک بېله رسیده نه پیسې ورکولای سي او نه یې اخیستلای سي. هیڅوک حق نه لري چي د عامه خزانې څخه پیسې واخلي زما په ګډون، زما مشر زوی حبیب الله خان او د دولت نور لوړپوړي کسان هم حق نه لري چي بېله سنده او لازمي اړتیا د عامي خزانې څخه پیسې واخلي. د نورو کارونو تر څنګ هره ورځ د خزانې راپور غواړم. او دا مالومات راسره سته چي نن څومره پیسې خزانې ته راغلي او څومره پیسې له خزانې څخه وتلي دي او په دې ترتیب د میاشتو او کال حساب کوم چي د تېر کال په پرتله مو څومره په خزانه کي زیاتوالی راغلی دی، او د

هغو پیسو په اندازه د نوي کال لپاره د ودانیو او ابادیو کارونه تر لاس لاندې نیسم (تاج التواریخ : دویم ټوک ۴۵ مخ).

**د عدل او محکمو چارې**

د اعلیحضرت عبدالرحمن خان په اند د هرې ادارې لپاره یوې ځانګړې محکمې ته اړتیا وه، د همدې اړتیا له مخې یې د هرې ادارې لپاره د هماغه ادارې په دننه کې د محکمې اداره جوړه کړې وه، خو عامې محکمې په ځانګړې توګه د پخوانیو واکمنیو څخه په پوره تفاوت پر مخ بیول کېدلې. په دې اړه اعلیحضرت عبدالرحمن خان لیکي:

د یو شمېر ادارو د تنظیم لپاره مې د هغه ادارې په دننه کې محکمې جوړې کړې، خو په عامو محکمو کې مې د پخوانیو واکمنیو خلاف، په زیاته پیمانه د شریعت د پلي کولو لپاره لاره پرانستل. پخوا به یو وژونکی د دریو سوو روپیو په بدل کې د هر ډول جزا پر ته د واکمنو لخوا خوشې کېدی، خو ما د هغه وژونکي لپاره شرعي حکمونه جاري کړل او هغه دا چې د وژل سوي سړي د کورنۍ خوښه ده چې وژونکی قصاص ته برابروي او که یې بخښي، چې دا د بنده حق دی، تر هغه وروسته د حکومت خوښه چې د وژونکي سره څرنګه کړه لازم ګڼي، هم یې د بخښني او هم ور ته د جزاء ورکولو حق لري. د نورو بدلونو تر څنګ یو بل بدلون مې د ښځو په اړه راووست، پخوا به چې کله ښځه واده سوه او یا به د چا په نوم سول، نور نو د هغې ښځې د ټول ژوند خاوند او مالک د هغې مېړه او د مېړه تر مرګ وروسته د مېړه کورنۍ وه، که د مېړه کورنۍ د هغې ښځې سره د کورنۍ د بل تن سره د واده کولو پرېکړه کړې وای. ښځه مجبوره وه چې هغه ومني، چې دا د حضرت پیغمبر ﷺ د وینا او حکمونو خلاف کار و. خو اوس مې دا بدلون راوستی دی چې: که ښځه کونډه پاته سوه دا د هغې ښځې خوښه ده چې په هغې کورنۍ کې بیا واده کوي او که غواړي د پلار کور ته ولاړه سي، او یا هم د بل چا سره په خپله خوښه واده وکړي، او دا مې هم قانون ګرځولی دی، چې هیڅ یو کس نه سي کولای هغه نجلۍ چې بلوغ ته نه وي رسېدلې و چا ته په نکاح کړي او که دا کار پخوا سوی وي په هغه صورت کې چې نجلۍ پېغله سي او بلوغ ته ورسېږي، بیا د هغې نجلۍ حق دی چې هغه پخوانی قول مني او که یې نه مني. هیڅوک په جبر او زور نه سي کولای چې ښځه ونکاح کولو ته مجبوره کړي. د زیات ولور د مخنیوي لپاره مې هم یو شمېر اړین ګامونه پورته کړل. پخوا به د لویو کورنیو د نجونو لپاره داسې لوړ ولور اینښودل کېدی چې زوم به د ژوند تر پایه نه سوای کولای چې هغه دین او ولور پر ېکړي، ما حکم وکړ چې د لویو کورنیو لپاره د ولور حد د درو زرو روپیو څخه تر پنځه زره روپیو پورې دی، او د عامو وګړو لپاره دا ولور د درې سوه (۳۰۰) څخه تر نهه (۹۰۰) سوه روپیو پورې دی. خو که چیرې یو شمېر کسان په خپله خوښه دا زیاتوي او یا یې لږوي دا د هغوی په توافق او خوښې پورې اړه لري او که د کومې محکمې په دفتر کې د دې خلاف څه ولیدل سي، هغه مامور خامخا تنبیه او جزا ورکول کیږي (تاج التواریخ: دویم ټوک ۴۹ مخ).

**پوست او ډاګ**

اعلیحضرت عبدالرحمن خان د دې ادارې په اړه لیکي: زما تر واکمنۍ وړاندې د دې ادارې یوازې نوم و، په شپږو او یا لسو میاشتو کې به د پېښاور په لور د دې ادارې له لوري اجرآت کېدل، او هغه هم کله مخکې کله وروسته، او په نامنظمه توګه د دې ادارې ځینې چارې تر سره کېدلې، خو زما د واکمنۍ پر مهال دا اداره ډېره ګړندۍ سوې ده، د هیواد په هر ګوټ کې د دې ادارې دفترونه پرانستي دي. دا اداره د هند د پوست او ډاګ په توګه کار کوي. اوس په (۳۶) شپږ دېرش ساعته کې د هند څخه کابل او د کابل څخه د هیواد هرې برخې او نورو ګاونډیو هیوادونو، لکه: روس، ایران (پارس) او هند ته ډاګیان په پوره چټکۍ ځانونه رسوي، او ورسره لېږونکي لیکونه او پاکټونه، خپلو پتو ته په پوره ډاډ رسیږي. دا ادارې په اړینو لوازمو پوره سمبال دي. پوستي ټکیټونه، د اعلاناتو او اماناتو د لېږلو ټول لوازم لري، هغه عاید چې د دې ادارې څخه تر لاسه کیږي، په ډېره ښه توګه د دې ادارې مصارف پوره کوي.

**د دولتي ودانیو اداره**

د اعلیحضرت عبدالرحمن خان د واکمنۍ پر مهال یو شمېر ودانۍ او لارې جوړې سوې چې لا تر اوسه هم د هیواد په یو شمېر لویو ښارونو کې په سترګو کیږي. نوموړي د خپلې واکمنۍ پر مهال د دولتي ودانیو د ادارې په اړه لیکي: زما د واکمنۍ پر مهال د ودانیو ادارې ته زیاته پاملرنه سوې ده، د پخوانیو زمانو څخه داسې ودانۍ زیاتې نه دي،

چي د گچو او ډبرو څخه دي پکښي کار سوی وي، يوازي په لرغوني بلخ، په غزني کي د يو شمېر پخوانيو واکمنو ودانۍ او زيارتونه او يو لږ شمېر ماجتونه پاته دي . د دې يادوني څخه خوشحاله يم چي زما د واکمنی پر مهال د هيواد په ډيرو لويو ښارونو کي زياتي داسي ودانۍ جوړي سوي دي، چي په ودانولو کي يې د گچو او ډبرو څخه کار اخيستل سوی دی . په ټول هيواد کي د سړ کونو جوړول پيل سوي او د يو شمېر مهمو لارو کارونه پای ته رسېدلي دي، د بېلگي په توگه : د کابل څخه د بلخ پر لور لويه لار، د کابل څخه د هرات لويه لار چي د هرات، کندهار بيا غزني او کابل ته او هم د کابل څخه د هزاره جات لوري ته لويي لاري دي . يوه بله لار چي د کابل څخه جلال آباد او له جلال آباد څخه تر اسمار او کافرستان پوري غزېدلې ده او هغه لار چي د کابل څخه تر پېښوره د تنگي قارون له لاري غزېدلې ده پوره لس کاله يې د جوړېدو چارو په بر کي ونيول، دا څکه مهمه ده چي اوس يو زيات شمېر خلک د دې لاري په کارولو هوسا او آرام دي .

د لارو د جوړېدو تر څنگ پلونه هم ودان سول، او د جوړو سوو لارو پر څنگ وني کښېنول سوې، د لاري د ساتلو او مراقبت چاري د هغو سيمو د اوسېدونکو پر غاړه دي چي د هغه ځايه لاره تېره سوېده . د لاري د ساتلو تر څنگ هغوی د هغې لاري د امن په اړه هم مسئوليت لري، که چيري يو لاروی په يوه کلي کي مړ سي او يا يې مال غلا سي، د هغه کلي خلک د دې مسئوليت لري چي يا د هغه مرتکب پيدا کړي او يا يې تاوان پر ځکړي، د همدې امله په هيواد کي شرير او نا پاکه سړي ځای نه لري او ټولي لاري پوره امن لري. بېله ويري او ډاره د يوې سيمي څخه بلي سيمي ته تگ او راتگ کوي . البته بايد د خپلو خبري او امنيتي ادارو څخه په نيکي يادونه وکړم چي دا شرايط يې برابر کړي دي . د لارو د امن او د لارويانو د ډاډ لپاره مي کلکي کلاگاني هم وداني کړي دي . د بېلگي په توگه د دهدادې کلکه کلا چي په زياته پيمانه گچ او پخي خښتي او ډبري پکښي کار سوي دي . دا اودې ته ورته نوري وداني زما او په دې اداره کي زما کار کوونکو ډېره ښه او د ستايني وړ ونډه اخيستې ده، چي د يو شمېر نومونه را يادوم : عبدالرحمن خان مهندس، عبدالسبحان خان مهندس، مير عمران د ودانولو اداري رئيس، منشي نظير، منشي محمدبخش چي پخوا يې د پنجاب ايالت د نخشه ليکونکي دنده درلودل او هغه زما د حکم پر بنسټ د کابل ډېرو کسانو ته د نقشې ښوولو لاري ور ښوولې (تاج التواريخ : دويم ټوک ۵۰ مخ) .

وروستي خبري : د دې ليکني د وروستي خبرو په توگه به د اعليحضرت عبدالرحمن خان د ځانگړي ژوند او اند په اړه يادوني وکړو چي له يوې خوا به دا ليکنه د وعدې سره برابره پای ته ورسيږي چي ښله لاسوهني به د اعليحضرت عبدالرحمن خان اندونه ياد يږي او له بل پلوه به د دې ليکني په پايله کي هم د نوموړي پاچا خيالونه راڅرگند سي .

اعليحضرت عبدالرحمن خان د ځان او خپلو کارونو په اړه ليکي : د ماشومتوب څخه تر اوسه مي د ژوند چاري د نورو سلاطينو او پاچاهانو چي په اسيا کي واکمني لري، بل ډول دي . د هغوی زيات وخت په بېکاری او عشرت کي تېريږي او فکر کوي چي د پاچا سره نه ښايي چي کار وکړي او يا په پښو لاره ووهي، خو زما باور دا دی چي تر دې ستره گناه نه سته چي خپل روح او تن بېکاری ته پر ېږدو، دا د هغه نعمت کفران او بې ارزښتي ده چي لوی خدای ﷻ موږ ته راکړي دي . هغه کسان چي زما دا کتاب لولي، په دې به پوه وي چي زما ټول عمر په کابل کي نه دی تېر سوی، د يوه سپاهي په توگه، د تشريفاتو پرته په ساده لباس کي خپلي دندي پر مخ بيايم . يوازي څو ساعته خوب کوم، نور هر وخت په خپلو کارونو بوخت يم، په داسي حالاتو کي هم کار کوم چي ډېر ستړي او ناروغه يم، د خپلو هيوادوالو د ستونزو د حل لپاره حکمونه او هدايتونه ور کوم، ډېر زيات د کار ليوالتيا لرم، او دا ټول زحمتونه او ستړياوي ځکه پر ځان منم چي د هيواد چاري مي ښه او بشپړي سي، هغه شاعر وايي چي :

**حرامست بر پادشه خواب خوش**
**که باشد ضعيف از قوی بارکش**

**خوږ خوب دی حرام پر پاچا باندي**
**تر غښتلي چي ضعيف وي تر بار لاندي**

(تاج التواريخ : دويم ټوک ۵۷ مخ) .

پای



# په افغانستان کې

کاناډا / محمد معصوم هوتک

**يادونه** : د دې ليکنې مخکنۍ برخې لومړۍ په ګوربت مجله دوهم په پالنه مجله کې خپرې سوي دي، د پالني مجلې د وروستۍ برخې څخه دا دی د دې ليکنې پاته برخه د کندهار مجلې له پاڼو څخه ولولئ !

**مسټر ميکډرماټ** (1) McMermat :

مسټر ميکډرماټ انګليسي د کابل په دولتي ضرابخانه (د سکو وهلو کارخانه) کي کار کاوه . تر ده وړاندي د افغانستان مسکوکات په لرغوني توګه په لاس توپېدل . په ۱۸۹۶ م کال کي چي امير عبدالرحمان خان ته د (ضياء الملت و الدين) لقب ورکړه سو او په سکو کي د دغه لقب د ثبتولو تجويز ونيول سو، امير د همدغه ميکډرماټ انګليس په وسيله د کابل په ضرابخانه کي په همدغه لقب سکې ووهلې . د هغه وخت سکې يوه شاهي، دوې شاهي، روپۍ، غران او تنګه وې . شاهي او دوې شاهيزي د مسو وې او روپۍ، غران او تنګې د سپينو زرو وې(۲) . ميکډرماټ ډېر کابلي او هندي شاګردان وروزل، چي تر ده وروسته يې د ضرابخانې چاري په ښه توګه پر مخ بېولي .

اې . سي . جيويټ امريکايي، چي د امير حبيب الله (سراج الملت والدين) په پاچهي کي د جبل السراج د برېښنا د تأسيساتو انجينر و، د افغاني سکو اضعاف و اجزاء داسي ښوولي دي

يوه روپۍ = ۲ غرانه = ۳ عباسۍ = ۶ سناره = ۱۲ شاهۍ (۳) .

**مسټر ميډلټن** (۴) Middliton :

دغه انګرېز انجينر د امير عبدالرحمن په پاچهي کي استخدام سو او د هنري مارتيني توپکو لپاره يې د کارتوس جوړولو کارخانه تأسيس کړه او په دې برخه کي يې ښه تکړه افغاني شاګردان وروزل . په دغه کارخانه کي د ورځې دوولس زره کارتوس توليدېدلای سول (۵) . علامه حبيبي د دغې کارخانې جوړېدل د ۱۸۹۱ م کال په پېښو کي راوړي او د جوړېدلو مياشت يې جنوري بولي (۶) . له مسټر ميډلټن سره سټيوارټ نومی انجينر هم په کابل کي مقرر سوی و . دی هم انګرېز و . زما د همدې ليکني په اووه ويشتم مخ کي د سټيوارټ لنډه شاني يادونه سته .

مسټر ميډلټن په کابل کي د جان الفريډ ګرې د استوګني په وخت کي حاضر و . ګرې ليکي چي "زما او مسټر پاين د خوني خنګ ته زموږ دوو نورو ملګرو سټيوارټ او ميډلټن اړولي وه . . . او زموږ زياتره ناسته ولاړه له همدوی سره وه . . . " ګرې چي په انګلستان کي تر واده کولو وروسته بير ته کابل ته ستون سو (مارچ ۱۸۹۲ م) ميډلټن او سټيوارټ دواړه له خدمته رخصت سوي او پر خاى يې دوه سکاټلينډيان ټاکل سوي وو (۷) .

د سنايډر توپکو کارتوس د مسټر اډوارډز په لاښوونه جوړېدل (۸) . دی د انګلستان تبعه و . تر تاج التواريخ په هاخوا مي د ده په باب بل خاى څه نه دي لوستي .

**تارنټن** (۹) Thoronton :

د انګرېزي مستخدمينو په لړ کي د څرمنو د کارخانې د کارکوونکو له جملې څخه د دغه شخص يادونه په افغاني او انګليسي نشراتو کي راغلې ده . په پارسي او پښتو تاج التواريخ کي يې نوم د "تارتن" په بڼه راغلی دئ . د علامه حبيبي په يادښتو کي "نارنتن" ليکل سوی دئ چي غالباً به چاپي تېروتنه وي او د څرمنو د کارخانې جوړېدل يې د ۱۸۹۲ م کال (۱۳۱۰ ق) په پېښو کي راوړي دي (۱۰) . د مسټر تارنټن راتګ کابل ته هم په همدغه کال کي ښلاى سو څکه په دغه کال مسټر پاين له انګلستانه دوه تنه انګرېزي انجينران له ځان سره راوستلي وو چي يو يې دباغ (Tanner) و (۱۱) . زما په اټکل به دغه سړی غالباً زموږ د بحث تارنټن و .

تارنټن د امير عبدالرحمن خان لخوا د څرمني جوړولو د کارخانې لپاره استخدام سوی و . په دباغۍ (د څرمني پخولو صنعت) کي يې کارګران روزلي وو . مشهور شاګرد يې غلام حيدر نومېدی چي د کابل د دباغانو مشر و .

په دباغي صنعت کې امیر عبدالرحمن خان له ایرانه هم دوه تنه استخدام کړي وو او ده پخپله دغه فن په روسیه کې د خپلې لیستوګنې یا تبعید په کلونو کې زده کړی و . امیر د یو بل انګرېزي نوم هم یادوي چې دی وایي د څرمنې جوړولو ماهر واو په شاګردانو کې یې "عظیم" ښه پوره نوم ویوست . د دغه سړي نوم په تاج التواریخ کې "باسګر" بلل سوی دئ چې زه یې د نامه پر سموالي شکمن یم(۱۲) .

**کمیران** Cameron

دا انګرېز انجینر د توپک جوړولو ماهر و، چې امیر عبدالرحمن خان د هندوستان په کارخانو کې ورسره پېژندلی وه او وروسته یې په کابل کې د توپک جوړولو په کارخانه کې د مستخدم په توګه ټاکلی و . ده د هنري مارتيني توپکو د جوړولو کارخانه په کابل کې تأسیس کړه او دغه راز یې افغاني کارګرانو ته دغه فن ور ښوده (۱۳) . په دغه کارخانه کې د ورځې لس توپکه جوړېدلای سول . د مستر کمیران له کاره امیر ډېر رضایت ښوولی دئ . دی پخپل کتاب تاج التواریخ کې لیکي: "مستر کمیران . . . د توپونو، توپکونو او نورو څېزونو د جوړولو لپاره تر ټولو ښه کارګر و، چې ما ګومارلی و . د دغه له کار څخه زما دولت ډېره ګټه واخیستله . . . د جنګي وسایلو د جوړولو او ازمویلو په اړه یې ماته څانګړي یادښتونه او مجلې راکړې، ځکه چې مو دغه کتابونه له بهرنیو دوکانونو څخه نه شو تر لاسه کولای، نو دغه یادښت مې خپل سفیر کرنیل ولي احمدخان ته هندوستان ته ورولېږه او هغه ته مې لارښوونه وکړه، چې دغه کتابونه د هندوستان له حکومت څخه تر لاسه کړي . . . له هغو څخه ځیني په فارسي ژباړل شوي دي (۱۴) .

**مستر براون** Mr. Brown

مستر براون د برېښنا انجینر او د انګلستان تبعه و چې په ۱۸۹۳ میلادي (۱۳۱۰ ق) کال کابل ته د امیر عبدالرحمن خان د مستخدم په توګه راغلی و . ده هغو کارو ته انکشاف ورکړ چې تر ده وړاندې د الکتریکي څراغونو او تیلفون په برخه کې د هندي او کابلي کارګرانو لخوا سر ته رسېدلي وه (۱۵) .

**مېرمن ډالي** Mrs. Daly

دا مېرمن یوه انګلیسي ډاکټره وه چې د امیر عبدالرحمن خان په امارت کې یې د بهرنی مستخدمې په توګه کار کاوه . دا د امیر د حرم د مېرمنو ډاکټره هم وه او دغه راز یې په کابل کې له استوګنو اروپایانو سره چې تقریباً ټول انګرېزان وو، د ناروغۍ په وخت کې د امیر په اجازه مرسته کوله . د دغې مېرمنې په باب زما معلومات د فرانک مارتین پر لیکنو بنا دي . په نورو اثارو کې یې زه پر نامه نه یم پېښ سوی (۱۶) . فرانک مارتین وایي . یو وخت پر ده باندې د یوه افغان کارګر لخوا ناځاپي برید وسو او د اوسپنې د یوې میلې وار یې پر وکړ . فرانک له مرګه بچ سو او په علاج کې د دغې مېرمن ډالي ډېر زیار کوښښ وکیښ .

مېرمن ډالي د امیر عبدالرحمن خان له ګرانې مانديني ملکې سلطانې (د شهزاده محمد عمر مور) سره دوستانه اړیکې درلودل . دامیر تر مړینې وروسته کله چې ملکه سلطانه د امیر حبیب الله خان پاچهي ته د احتمالي خطر د مخنیوي له امله د ارګ له حرمسرا یه په زور وایستل سوه او ګلستان سرای کې خپلې ماني ته ولاړه، پر مېرمن ډالي باندې هم حکم وسو چې له دې وروسته به له ملکې سلطانې سره نور اړیکې نه ساتي . امیر حبیب الله او د ده سکه ورور سردار نصرالله خان ډاربدل، چې ملکه سلطانه به د خپل زوی شهزاده محمدعمر د پاچا کولو په منظور د دغې اروپایي ډاکټرې له نفوذ او موقعیت څخه کار واخلي او ښایي د دې په وسیله د هند له برتانوي مقاماتو سره مکاتبه وساتي، ځکه نو د دوی پر لیدنو کتنو باندې بندیز ولګېدی (۱۷) .

**دوکتورس للیاس همیلټن** Miss. Hamilton

للیاس همیلټن د انګلستان تبعه او د امیر عبدالرحمن خان مخصوصه ډاکټره وه . تر دې وړاندې یې د کلکتې ښار په Lady Dufferin Hospital کې روغتیایي خدمات تر سره کول . په کابل کې یې د خدمت موده څو میاشتې ښوول سوې ده (۱۸) . دې په ۱۸۹۴ م (۱۳۱۲ ق) کال په د کابل په ښار کې لومړنی عصري روغتون تأسیس کړ . په دغه وخت کې د افغانستان روغتیایي مؤسسې دوه رازه وې . یو شمېر یې د یوناني طبابت خانګې وې، چې د دودیزو طبیبانو لخوا منځ ته راغلي وې، چې د هغه وخت په اصطلاح یې د "فرنګي طب" له مخې روغتیایي چارې پر مخ وهلې . په افغانستان کې د عصري طب لومړنی خښته د ډاکټر دایم خان او ډاکټر عبدالرحیم خان په لاسو کېښښوول سوه . دوی دواړه د امیر عبدالرحمان خان لخوا د ده د پاچهۍ په هماغه لومړیو کلونو کې استخدام سوي وو . خو د للیاس همیلټن هلې ځلې په دې برخه کې تر دوی بنیادي وې او لکه وړاندې چې وویل سوه، د دې په لاس لومړنی عصري روغتون جوړ سو . دې انګلیسي ډاکټرې له خان سره یو بله انګلیسي مېرمن د مرستیالې په توګه راوستې وه . د ډاکټر للیاس بل ستر کار دا و، چې دې د لومړي وار لپاره په کابل کې د کوي ناروغۍ واکسین رواج کړل او ماشومانو ته به یې د کوي د مخنیوي لپاره رګونه وهل . دغه واکسین یې له سخوندرانو (خوسکیانو) څخه لاس ته وروړل . په دې برخه کې یې ځیني شاګردان هم وروزل او دغه راز یې د امیر عبدالرحمن خان په امر یوه رساله هم ولیکله، چې تر ژباړلو وروسته په هیواد کې تکثیر سوه . ډاکټر للیاس همیلټن د امیر له زوی سردار نصرالله خان سره په هغه سفر کې د مخصوصي ډاکټرې (حکیم باشي) په توګه ملګرې وه چې د انګلستان حکومت په بلنه یې د خپل پلار پر ځای په ۱۸۹۴ م کال هغه هیواد ته کړی و (۱۹) .

په ۱۸۹۴ م کال چې پر امیر باندې د نقرس ناروغۍ یوه سخته حمله راغله، للیاس همیلټن یې د معالجینو په ډله کې وه او

ستيفن ويلر خو په دغه معالجه کي د دوی رول دومره غټوي، چي وايي: "د دې مهارت تر جالينوس و بقراط هم واوښت (۲۰)". دا ارگ ته څرمه په يوه کوچني کور کي يوازي اوسېدله . تر کور دباندي گزمه پر ولاړه وه . دا د خپلي تنهايي او د امير د ټينگ امنيت په باب ليکي: "که څوک د امير تر محافظت لاندي وي، دا پروا نلري چي ته يوازي يې، که يو څوک در سره دئ . په دواړو حالاتو کي به در ته هر څای څان محفوظ ښکاري (۲۱)".

ښاغلو لوستونکو ته به څرگنده وي چي د تاج التواريخ انگرېزي ترجمه The life of Abdur Rahman Amir of Afghanistan له هغې مسودې څخه ژباړل سوې، چي په کابل کي د امير په لاس يا د ده تر نظر لاندي کښل سوې وه او John Murray يې خپرونکي دئ . جان مري وايي چي د دغه کتاب د يوولسو فصلو مسوده همدغې ډاکترې للياس هميلټن له څان سره له کابله لندن ته يووړه او هوري د سلطان محمد خان په لاس ترجمه سوه . په دې توگه د ډاکتر للياس هميلټن د دغه فرهنگي خدمت نتيجه وه چي د افغانستان د تاريخ يوه مهمه برخه نړيوالو ته ور وپېژندل سوه . تاج التواريخ يا د امير عبدالرحمن خان د اټوبيوگرافي په باب د ستيفن ويلر Stephen Wheeler خبري هم په زړه پوري دي . دی وايي: "څه موده وړاندي (دا خبري دی په ۱۸۹۵ م کي کوي . هوتک) داسي ويل کېده، چي امير د خپلي اټوبيوگرافي په ليکلو لگيا دئ . . . د دغي اټوبيوگرافي يوه برخه يا ښايي يوه بله اټوبيوگرافي د امير په لاس د روسي ترکستان گورنر جنرال ته هغه وخت ورکول سوې وه چي امير هوري د تبعيد شپې تېرولې . دغه برخه په روسي ژباړل سوې وه چي وروسته بيا د هند په استخباراتي څانگه کي د ډگروال گوان Colonel Gowan لخوا په انگليسي وژباړل سوه (۲۲)". ستيفن ويلر وروسته زياتوي، چي دغه اټوبيوگرافي په اسانه نه سي موندل کېدلای، څکه نو ده د خپل کتاب په پای کي ټوله راوړې ده او د ده د کتاب دوولس مخه يې نيولي دي .

ما (هوتک) د آئينه افغانستان مجلې د ۱۹۹۴ کال د اگسټ د لړمې نېټې په گڼه کي د "تاج التواريخ ترجمه ده که اصل؟" تر عنوان لاندي يوه لنډه ليکنه کړې وه . په هغه وخت کي ما د ستيفن ويلر پورتني يادونه، نه وه لوستې، څکه مي نو د امير عبدالرحمن د اټوبيوگرافي د روسي ژباړې يادونه، نه وه کړې . بله د سمېدلو خبره دا ده چي هوري ما "دبدبۀ اميری" د تاج التواريخ د اردو ژباړې دوهم چاپ بللې و . "دبدبۀ اميری" د محمد حسن بلگرامي خپله څېړنه معلومېږي .

**مسټر کليمينس** Mr. Clemence (۲۳):

دغه انگرېز د خارو يو ډاکتر (بيطار) او د امير عبدالرحمن خان لخوا کابل ته غوښتل سوی و . د دغه بيطار يادونه په تاج التواريخ کي سوې ده او جان الفريډ گري يې هم پخپل کتاب کي نوم اخلي . ده د ناروغو اسانو د تداوۍ چارې پر مخ وهلې او د حيواناتو د نسلگيری کار يې هم کاوه . په دې برخه کي يې ښل تنه افغاني څوانان روزلي وو . دی چي کله له انگلستانه کابل ته راغتلی، له څان سره يې ښل داني انگليسي ميږې راوړې وې . جان الفريډ گري وايي چي کليمينس له انگلستانه دوه درې اسان او يو څو يابوگان هم راوستل، چي په کابل کي نسلگيري څني وسي . امير دی فيض آباد ته ولېږه او هوري يې خپل مرکزونه جوړ کړل (۲۴). افغانستان ته د کليمينس د راتگ دقيقه نېټه ما ته څرگنده نه سوه، خو گري ليکي چي په ۱۸۹۲ م کال له مسټر پاين سره دوه تنه انگرېزان کابل ته راغلل . يو يې دباغ او بل يې د يورکشاير Yorkshire د اسانو روزونکی و (۲۵). زه (هوتک) يقين ته په نږدې گومان فکر کوم، چي دغه سړی به زموږ د بحث وړ کليمينس و . د کليمينس تر راتگ تقريباً او يا کاله وړاندي د ويليام مور کرافټ په نامه يو بل انگرېز جراح او آس پېژندونکی هم د ايسټ انډيا شرکت لخوا له کشميره کابل ته راغلی و . ده بلخ او ميمنې ته سفرونه وکړل او په اندخوی کي مړ سو . ده يوه سفرنامه کښلې وه، چي تر مړيني يې شپږ کاله وروسته له لندن څخه د ويلسن په لاس چاپ او خپره سوه (۲۶). له امکانه ليري نه ده چي ويليام به سياسي ماموريت درلود . تر ده دوولس کاله وروسته د انگلستان يو بل سياسي مامور (پاټينجر) د اسانو د سوداگر په جامه کي کابل ته راغی، بيا د ملايانو په لباس کي هرات ته ولاړ او د هرات د محاصرې په وخت کي سياسي فعاليت کاوه (۲۷).

د مسټر کليمينس مېرمن هم د ۱۸۹۴ م کال په اپرېل کي له خپل دوه کلن ماشوم او يوې نرسي سره کابل ته ورسېده . امير عبدالرحمن خان ور ته يوه بگۍ او څلور ساتونکي ورکړل . ستيفن ويلر د دې له خولې ليکي، چي مېرمن کليمينس يوه ورځ د ماپښين لخوا له خپل مېړه سره تر ښار دباندي د چکر لپاره ووتله . تر شا يې يو ساتونکی پر آس بانډې بدرگه ور سره روان و . شپه راغله او دوی و ساتونکي سره ورک سول . دوی په يکړ سر په بازار کي وگرځېدل او د شپې پر لسو بجو کور ته ورسېدل خو د بې محافظه گښت له بابته هيڅ راز انډېښنه ور سره نه وه . څکه هر څای، چي به له خلکو سره مخامخ کېدل "سلام او مانده نباشی" يې ور ته ويله . مېرمن کليمينس ليکي، چي د امير گرانه ماندينه "ملکه" ډېره جذابه او ښکلې ښځه وه او که د يوه ختيځ وال په ژبه معرفي سي، نو ښکلا يې تر لمر زياته څلېده او قد ته يې سروه شرمېدله . دا زياتوي، امير صاحب د دې د کوچني ماشوم په ليدلو ډېر خوښ سو، چي په خونه کي به يې دې خوا ها خوا ته څغستل او هر څه چي به په مخه ورتلل، لوبې به يې په کولې (۲۸).

**والټر** Walter (۲۹):

والټر هم د انگلستان تبعه و او د امير لخوا د گندونکي په توگه استخدام سوی و، تر دغه وخت وړاندي د کابل د ملکي او پوځي جامو د گنډلو کار د هندي گندونکو لخوا سر ته رسېدلی .

امیر د دوی له کاره ناخوښه و، ځکه یې دغه انګریز ګنډونکی (همدغه والټر) استخدام کړ . ده د جامو رغولو په برخه کې ټولې نیمګړتیاوې سمې کړې او د میر منشي سلطان محمد خان په مرسته یې په دې باب یوه رساله وکښه. چې په هغې کې د ګنډلو ټول هغه قواعد بیان سوي وو، چې په انګلستان کې رواج وو (۳۰) . د والټر مېرمن هم د څه مودې لپاره د مسټر کلیمینس له مېرمنې سره یو ځای کابل ته په تفریح تللې وه (۳۱) .

د والټر په باب یوه لنډه یادونه د جان الفرېډ ګرې په کتاب کې هم سته . دی لیکي، چې د والټر په نامه یو انګریز ګنډونکی له مسټر پاین سره کابل ته راغی او زیاتوي، چې والټر یو وخت له ده سره یغمان ته ولاړ او هورې یې غوښتل د کوچني شهزاده محمدعمر لپاره کرتي روغه کړي (۳۲) .

**مسټر ریچیز** Mr. Riches :

په دغه نامه د یوه انګریز مستخدم یادونه د تاج التواریخ په انګلیسي متن (۷۶ مخ) کې سته او امیر وایي، چې د پیانو رغول یې له دغه سړي څخه زده کړي او بیا یې خینو نورو افغانانو ته هم ور ښوولي دي . په سفرنامه او پښتو تاج التواریخ کې د دغه سړي نوم "مسټر پرخر ؟" راغلی دئ (۳۳) . ما یې د انګلیسي متن ثبت غوره وباله او رانقل مي کړ . بل ځای د ده په باب څه نه دي موندل سوي .

**فلیشر** Fleicher :

فلیشر د المان تبعه او د امیر عبدالرحمان خان لخوا د توپک جوړولو د صنعت ښوولو په منظور استخدام سوی و د ده یادونه د فرانک مارتین انګریز او جیویټ امریکایي په یاداښتو کې موندلای سو . فرانک . اې . مارتین پخپله کتاب Under the Absolute Amir کې د دغه جرمني انجینر یادونه داسې کوي :

"مسټر فلیشر به چې په کابل کې زما د استوګنې په وروستیو کلونو کې اوسېدی، د جمعې په ورځو به زما سره ملګری کېدلی او په چمنانو کې به مو ټوله ورځ تېروله . . . نوموړی د ۱۹۰۴ کال په نومبر کې هندوستان ته د تلو په لار کې د خېل افغان بدرګه افسر لخوا ووژل سو (۳۴) وایي چې تر دغې پېښې وروسته به له بهرنیانو سره هرو مرو یو (مهماندار) ګومارل کېده (۳۵) .

د دغه جرمني انجینر مېرمن د خپلو ماشومانو د روزنې لپاره یوه جرمنۍ نرسه افغانستان ته رابللې وه . دې نرسې د امیر له ګرانې مایني سره مناسبات ټینګ کړل او د امیر حرم ته یې پناه وروړه . دې غوښتل چې مسلمانه سي . مېرمن فلیشر پر امیر زور واچاوه چې دغه ښځه دې بېرته د دې کور ته ولېږل سي . امیر د ښځې له بېرته ستنېدلو سره موافقه وکړه . دې ښځې د امیر په موافقه له یوه نورستاني افسر سره واده وکړ . امیر د دغه افسر تنخواه ور زیاته کړه او یو کور یې د استوګنې لپاره ورکړ (۳۶) . مسټر فلیشر یو له هغو شپږو اروپایانو څخه و چې د امیر عبدالرحمن خان د مړیني پر وخت (۱۹۰۱ م) په کابل کې اوسېدل . نور پنځه یې د ده مېرمن، زوی او نرسه، فرانک مارتین او مېرمن ډالي .

**لمن لیکونه**

۱. د هغو کسانو پر نومونو باندي سل په سل کې باوري نه یم چې له تاج التواریخ څخه رانقل سوي دي. ما تر وسه وسه کوښښ کړی دئ چې د نومونو سمه بڼه پیدا کړم. په خینو برخو کي نه یم بریالی سوی. (هوتک)
۲. سفرنامه و ... ۳۴۴ مخ. (د شاهي تلفظ ما په وړکینه په کندهار کي "ښاهي" اورېدلی دئ) .
۳. An Ameeican Engineer in Afghanistan ـ ۳۰۶ مخ.
۴. د تاج التواریخ په انګرېزي چاپ کي دغه نوم په همدې شکل راغلی دئ. خو د میډلیټن په نامه یو بل انګریز انجینر هم په دغه دوره کي په کابل کي کار کاوه چې د نامه انګرېزي لیکنه یې Myddliton وه. دی د کانو مهندس و او د جلال آباد د یاقوتو او د غوربند د سرپو په معدنو کي یې کار کاوه. (وګورئ سفرنامه ... ۳۷۸ مخ) دغه میډلیټن له مسټر پاین سره په ۱۸۸۹ م کال له انګلستانه کابل ته راغلی و.
۵. سفرنامه و ... ۳۴۴ مخ.
۶. حبیبي ـ د افغانستان تاریخي پېښلیک ۲۱۳ مخ.
۷. وګورئ At the court of the Amir ۳۳ - ۴۲۹ - ۴۵۹ مخونه.
۸. سفرنامه ... ۳۴۵ مخ. سنایډر توپکو ته یې په افغانستان کي "بغل پر" توپک ویل.
۹. د Dictionary of National Biography په ۵۷۹ مخ کي د Edward Thoronton په نامه د یوه مهندس یادونه سته خو هغه بیا د تعمیراتو انجینر ښوول سوی دئ او وایي چې "د هندوستان په بېلابېلو برخو په تېره بیا په کلکته کي یې ستري ماڼۍ او مهمي ودانۍ جوړي کړي دي".
۱۰. د افغانستان تاریخي پېښلیک - ۲۱۴ مخ.
۱۱. دباغ، څرمن پخوونکي یا څرمن رنګوونکي ته وایي، کسب ته یې دباغت ویل کېږي.
۱۲. سفرنامه ... ۳۵۱ مخ.
۱۳. سفرنامه ... ۳۴۵ مخ.
۱۴. پښتو تاج التواریخ ۲۶۳ مخ. د ولي احمد خان نوم په پښتو ژباړه کي ولي محمد خان راغلی دئ. ما د علامه حبیبي د لیکنو له مخي ولي احمد خان وکېښ. کرنیل ولي احمد خان د خېل پلار جنرال امیراحمد خان تر مړيني وروسته په ۱۸۸۹ م کال د هغه پر ځای په کلکته کي د افغانستان د سفیر په توګه وټاکل سو. د ده پر ځای بیا غلام رسول خان په ۱۸۹۱ م کي مقرر سو. (وګورئ : د افغانستان تاریخي پېښلیک - ۲۱۱، ۲۱۳ مخونه). پاته په (۱۰۸) مخ کي

# د میوند فاتح

لیکوال : محمدعلي

ژباړونکی : عبدالنافع ثنا



د ۱۸۶۹ په جنوري کې د سرلارنس دنده پای ته ورسېده . د پلان له مخې باید سرلارنس تر تگ وړاندې له امیر شېرعلي خان سره کتلي وای . خو په کورني اړودوړ کې د امیر د زیاتې ښکېلتیا له امله داسې ونه سوه .

امیر شېرعلي خان د ۱۸۶۹ ع په مارچ کې امبالا ته ورسېد او د نوي نائب الحکومه سر مایو سره یې وکتل . مایو د سرلارنس (د استادانه لټې) تگلاره تعقیبوله ، په دې کتنه کې امیر شېرعلي خان په گوته کړه چې په منځنۍ آسیا کې د روسیې گړندۍ راځکېدنې افغانان په وېره کې اچولي او د روسانو په دې ډاډ گیرنو چې د افغانستان په وړاندې سوله ییز هوډ لري هیڅ باور نه لري . ده په ډاگه کړه چې د انگلیسانو سره څرگند پیوستون غواړي ، او لېواله دی چې د برتانوي هندي حکومت سره لا نژدې اړیکې ولري . ده د یوه څرگند تړون او ټاکلي کلنۍ بسپنې غوښتنه وکړه . د دې تر څنگ یې د اړتیا پر مهال د افرادو او وسلو د مرستې په هکله هم د هغوی ژمنتیا وغوښتل . د خپلې پاچهۍ د ملاتړ لپاره یې د برتانوي لوري ژمنه او همدا راز یې د خپل ځای ناستي په توگه د ده د مشر زوی یعقوب پر ځای د عبدالله جان منل وغوښتل . یعقوب پاچهی ته د امیر په رسولو کې لوی لاس کړی و ، خو راوروسته یې دښمني ورسره پیل کړې وه .

لارډ مایو ته دا شرطونه د منلو نه وه ، امیر ته یې په رډه وویل : چې د روسي یرغل په اړه یې ویرې بېځایه دي او هیڅ برتانوی سرتېری به د کوم دښمن په وړاندې د ده د مرستې لپاره تر پولې ور وانه وړي . همدا راز به پر هیڅ داسې لوزنامې چې د کوم بهرني دښمن یا د امیر د تخت د کوم دعوه گیر په وړاندې برتانویان د ده د تخت په ملاتړ ژمنوي ، غور ونه سي . خو بیا هم امیر ته ډاډ ورکړل سو چې برتانویان به هرې هغې هڅې ته په بده وگوري چې له واکه د ده د غورځول غواړي . په دې خبره به خدایزده امیر څومره ډاډ تر لاسه کړی وي .

امیر طبعاً له دې کتنې زړه ماتی سو او دا یې زړه ته سوه چې برتانویان به یې په کوم بېړني حالت کې هم همداسې ناهیلی کوي . نو هوډ یې وکړ چې پر خپل ځان به تکیه کوي او نور به د برتانویانو ور نه ټکوي . افغانستان ته په رارسېدو سره امیر خپل ټول وس د هیواد او خلکو د ښېگڼې په لاره کې په کار واچاوه ، او د سمون راوستلو په موخه یې ټینگې هڅې پیل کړې . د خانانو غیر قانوني واک یې راکم کړ او د (۸۰۰۰۰) اتیا زره سرتېرو یو پوځ یې جوړ کړ چې هره میاشت به یې په منظمه توگه نقدي معاش ورکاوه . د پوځ روزنې ته یې په عصري بڼه پرمختگ ورکړ او د مهماتو جوړولو لپاره یې کارخانې پرانستې . د عصمت الله خان ، ارسلاخان غلزي او مستوفي حبیب الله خان وردگ تر مشرتوب لاندې یې د سپین ږیرو او مخورو یوه جرگه جوړه کړه . امیر په خپله بهرنۍ تگلاره کې د خپلو ځواکمنو گاونډیانو سره د ښو اړیکو ساتلو هڅه کوله خو دې خبرې ته یې پام ساته چې له خپلو کورنیو چارو یې لیرې وساتي .

په عین حال کې روسیې په منځنۍ آسیا کې خپلو پر مختګونو ته دوام ورکاوه، په ۱۸۶۵ کې یې تاشکند او وروسته یې خوجند لاندې کړل، سمرقند یې هم د خپل نوي ولایت ترکستان برخه کړ چې جنرال کفمن Kaufmann یې اعلی حاکم و. جنرال کفمن پر امیر د اغېز شیندلو لپاره ورسره کتبي اړیکې پیل کړې. دا لیکونه چې په ټولیزه توګه صمیمانه او بې ضرره وه په هند کې د برتانوي چارواکو شکونه راپورته کړل. امیر د دې لپاره چې خپله وفاداري وښيي دا لیکونه یې د هند نائب الحکومه ته ولېږل. هغه هم ډاډ ورکړ چې لیکونه یوازې تشریفاتي بڼه لري او دا چې د امیر اند ښتني بېځایه دي. دا د برتانویانو کار و چې د روسانو څخه یې د امیر سره د اړیکو نه ساتل غوښتې وای ځکه روسانو برتانویانو ته په افغاني چارو کې د نه لاسوهنې ژمنه ورکړې وه.

د ۱۸۷۴ ع په مارچ کې ډیزرایلي Disraeli لومړی وزیر سو او سالسبري یې د هند لپاره د دولت وزیر وټاکه، د دولت د وزیر د شورا یو غړي مارټلي فریر Martle Frere وړاندیز وکړ چې په آسیا کې د اوسني کړکېچن وضعیت په نظر کې نیولو سره به دا مناسبه نه وي چې په افغانستان کې دې د برتانیې یوازینی استازي یو هندی مسلمان وي. د همدې نظر په تعقیبولو لارډ سالسبري وړاندیز وکړ چې له امیر شېرعلي خان څخه دې وغوښتل سي څو په افغانستان کې یو برتانوي د دوی د استازي په توګه ومني.

د دې خبرې په وړاندې نارت بروک او د هغه بشپړې شورا سخت احتجاج وکړ. دوی وویل چې امیر په ۱۸۶۹ ع کې له روسي هوډونو وېره څرګنده کړې وه خو هغه بېځایه ګڼل سوې وه، د یو دفاعي تړون لپاره د هغه غوښتنه ځکه رد کړل سوې وه چې ویل کېده اړتیا یې نسته خو اوس د یو برتانوي استازي شتون اړین دي. دا خبره به امیر شېرعلي خان ته په هیڅ توګه د منلو وړ نه وي او همدا راز به له امیر دوست محمد خان سره د ۱۸۵۷ ع د سوي لوزنامې څخه سرغړونه وي.

خو لارډ سالسبري پر خپله خبره ټینګ ولاړ و، او وړاندیز یې کاوه چې امیر ته دې د یو ځانګړي سیاسي موخې لرونکی پلاوی ولېږل سي. نارت بروک یو ځل بیا احتجاج وکړ خو کله چې وپوهېدی چې د دولت وزیر یې خبره نه اوري، نو یې له خپلې دندې استعفی ورکړه. نارت بروک د تګ پر مهال سالسبري ته خبرداری ورکړ چې د امیر د خوښې او د ۱۸۵۷ ع د تړون پر خلاف پر هغه باندې د یو مستقل برتانوي استازي تپل به ډېر ژر برتانیه یو ځل بیا د افغانستان سره د یوې غیر اړینې او خطرناکې جګړې پر لور کش کړي.

په افغاني چارو کې د نه لاسوهنې پالیسي هغه وخت له بدو بدتره سوه چې لارډ لایټن د نارت بروک پر ځای راغلی. نوی نائب الحکومه یو ایډیالسټ، ښه شاعر، لیکوال او ویناوال، خو سرټمبه او کمزوری ډیپلومات و. نوموړي افغانستان ته د خپلو مشرانو لخوا د نویو لارښوونو سره راغلی. څو پر دې ډګر یوې نوې تګلارې ته وده ورکړي. چې بالآخره یې برتانوي حکومت د افغان - انګلیس په دوهمه جګړه کې راښکېل کړ. د دې جګړې پیل او پایله د لومړۍ جګړې په څېر له زیانه ډکې وې. دې جګړې د یو حاکم په توګه د لارډ لایټن حیثیت تر خاورو بدتر کړ چې پایله یې د محافظه کارو د زوال سبب سوه. لومړی کار د امیر سره یو ځل بیا د نیغو اړیکو ټینګول او کابل ته د یو برتانوي پلاوي لېږل و. د دې کار څخه موخه دا وه څو له دې لارې یې د امیر په دربار کې د یو مستقل برتانوي استازي د پره کولو ته لاره هېنډلې وي.

لومړی له امیره وغوښتل سول چې یو تشریفاتي پلاوی ومني. څو دا پلاوی امیر ته رسماً خبر ورکړي چې د برتانیې ملکې د هند د امپراتورۍ لقب منلی دی. امیر دا غوښتنه ونه منل او ویې ویل چې له دې سره د ده هیڅ کار نسته.

همدا مهال د کابل میشت برتانوي سفیر خبر ورکړ چې امیر دا کار د نورو عواملو تر څنګ په دې خاطر وکړ چې د برتانوي پلاوي امنیت یې د خلکو د متنفرو احساساتو له امله نه سوای ډاډمنولای. که رښتیا سي نو دا کار ځکه وسو چې افغان واکمنو ته د بهرنیو پلاوېو د ټګیو او دسیسو خاطرې یادې وې، نه د وېرې له امله.

لارډ لایټن د امیر دا ځواب برتانوي ګټو ته په سپکه کتل وبلل او اعلان یې وکړ چې د دې کار له امله به افغانستان د برتانیې سره د سوې تړون نه بهر ونوي. او همدا راز به یې له برتانوي ملاتړه بې برخې کوي. د نائب الحکومه د شورا درې غړي یو ویلیم مویر، هینري نارمین او سرآرتر هوبهاوس د دې خبرې سره خپل مخالفت څرګند کړ. دوی استدلال وکړ چې امیر پر خپل ځای پر حق دی. ځکه هغه ته دا په څرګنده توګه نه ده سپینه سوې چې دا پلاوی یوازې تشریفاتي اړخ لري. دا خو ټولو ته معلومه ده چې له دې کاره د برتانیې موخه په کابل کې د یو مستقل

برتانوي سفارت میشتول دي . د ۱۸۷۶ په اکتوبر کي دا
ویتیل سوه چي د کابل میشت مسلمان برتانوي استازی به
په شمله کي د لارډ لایټن سره خبري کوي او وروسته به یې
له پایلو نه امیر خبروي . دې کار د اړیکو د ښه کولو پر
ځای د افغانانو او امیر شکونه نور پسې زیات کړل .
استازي ته وویل سوه چي امیر دې په دې خبره پوه کړي
چي افغانستان د هند او روسیې تر منځ داسي پروت دی لکه
د دوو اوسپنیزو لوښو په منځ کي چي یو خاورین لوښی
وي . نو که یې له برتانیې سره دوستي وساتله، د یو اوسپنیز
دېوال په توگه به یې ساتنه وکړل سي کنه نو رچي رچي به
سي .

د ۱۸۷۶ په پای کي د پېژندل سوي برتانوي سرحدي
افسر رابرټ سنډیمن او د کلات د خان تر منځ یو تړون
وسو چي له مخي یې خان برتانویانو ته د کوټې د نیولو واک
ورکړ . کوټه د یو ستر ستراتیژیک اهمیت لرونکې وه چي
افغانستان ته د ننوتلو لویه لار، د بولان دره یې تر واک
لاندي راتله . دې کار امیر خبر دار کړ او دا د کندهار پر
لور د برتانویانو یو گام وگڼل سو ، ده ته ښه یاد وه چي د
افغان ـ انگلیس د لومړۍ جگړې پر مهال د افغانستان د
نیولو په موخه له کوټې څخه د یو پوځي اډې کار اخیستل
کېدی .

د ۱۸۷۷ ع په جنوري کي د امیر شېرعلي خان د
صدراعظم سید نورمحمدشاه او لیوس پیلي تر منځ په
پېښور کي یوه غونډه وسوه چي بې پایلي وخته، ځکه افغان
لوري په کابل کي د یو مستقل برتانوي افسر له هستېدو
سره خپله ناخوښي وښووله، لارډ لایټن شایي فکر کړی وي
چي امیر دا کار له قصده کوي .

سید نورمحمدشاه څرگنده کړه : "برتانیه لویه او
ځواکمنه ده، او افغانان یې په وړاندي نه سي دریدای. خو
افغانان نه تسلیمېدونکي دي او خپله خپلواکي د سر په بیه
ساتي . یو امیر چي خپله پاچهي یې له غاړي نه وي،
هیڅکله به دې ته غاړه کښېږدي چي خلک یې د بهر تر
اغېز لاندي سوي وگڼي . موږ پر تاسو بې باوره یو، او بېرېږو
چي تاسي به زموږ د هري ورځي احوال لیکی. او په
راتلونکي کي به یې مخ ته راته کښېږدي" .

لایټن د امیر په زړه کي د راپورته سویو ویرو د غلي
کولو لره هڅه هم ونکړه . په هغو ورځو کي د کابل په
بازارو کي دا گنگوسي خپرې سوې چي د ایډنبرگ. د
Duke سردار او روسي شهزاده گی د واده سره روس او
انگلیس خپل اختلافات یوې خوا ته کړي او د افغانستان پر
وېشلو سلا سوي دي .

له همدې ورځې څخه شېرعلي روسیې ته ځان ور
نژدې کړ، خو گمان کیږي چي که د امیر په واک کي وای،
د دواړو اروپایي زبر ځواکونو څخه به یې له یوه سره هم
تړاو نه وای کړی .

د ۱۸۷۷ ع په مارچ کي سید نورمحمد شاه ناڅاپه په
یوه سخته ناروغي اخته سو، چي بالآخره درې اونی وروسته
ومړ . ځیني خولاوایي چي په زهرو به وژل سوی وي، د
وخت څخه په گټه اخیستنه لارډ لایټن د پېښور غونډه
ختمه اعلان کړه، حال دا چي دی په دې پوره خبر و چي د
سید نورمحمد شاه عوض له کابله د امیر د نویو لارښوونو
سره را روان دی . اوس نو د افغان درباره سره راسه درسه
په ټپه ودرېده، که څه هم لارډ لایټن د یوې اعلامیې له
لاري افغان ولس ته څرگنده کړه چي دی به هیڅ برتانوي
سرتېري نه اجازه ورنکړي چي د افغانانو د خوښي پرته
افغانستان ته داخل سي .

امیر شېرعلي خان یو خپلواک واکمن و، او د دوو
ځواکمنو گاونډیانو سره یې په اړیکو کي توازن ساته،
برتانویانو هیڅ حق نه درلود چي د امیر د خوښي خلاف
ورباندي کوم برتانوي استازی وټپي، او یا دا چي دی له در
په دروازه گاونډي روسیې سره له ښو اړیکو راوگرځوي .

د برتانیې پخواني تگلاري چي لارډ لارنس پیل کړې
وه، د ورو کو او کمځواکه دولتونو حقونه یې ښه په پام کي
نیولي وه، د لایټن او پیروانو تگلاره یې یوازي د یوې سیاسي
تنداري تر پولي وه .

سر جیمز ستیفن لیکي : "د کلات د خان او کابل د
امیر په څېر مشران که څه هم د کومي لوزنامې یا تړون له
مخي په موږ پوري نه دي تړلي خو له دوی سره باید د دې
خبري په پام کي نیولو سره چلند وسي چي دوی
کمځواکي. کم حیثیته او نیمه بربریان دي، او موږ
ځواکمن، درانه او متمدن یو" . د پېښور د غونډي تر پای
ته رسېدو وروسته لایټن خپل پام د پولي په اوږدو کي
میشتو افغان قبایلو ته واړاوه څو د هغوی زړونه د ځان کړي
او په دې توگه افغانستان ته د پرمختگ لاره هواره کړي.
لایټن د کشمیر له مهاراجه سره د پټو خبرو په پایله کي په
گلگت کي یوه برتانوي اداره پرانسته .

ان چي د لایټن گمارل سوي کفتان کیوناري هم
خبرداري ورکړ چي هسي یو تگلاره به له امیر سره د بېرته

پخلا کېدو ټولې لاري وتړي . د لارډ لايټن خپله لور ليډي
بيټي بالفور ليکي چي : پلار يې د پخوانيو سرحدي چارواکو
د مشورو سره په ټکر کي و چي هغوی به ويل هره هغه
تګلاره چي ښه وده ورکول کيږي سه نه وي . اوس نو
لايټن د افغانستان عمومي ناآراموله او کمځواکوله ته پام
واړاوه .

د افغانستان او برتانيې تر منځ تاوتريخوالی په يوه بله
قاره کي د بدامنيو په تعقيب رامنځته سو . په ۱۸۷۶ کي
سربان او مونټيګران د ترکانو په خلاف راوپاخېدل . را
وروسته کال روسيې د باغيانو په پلوي د ترکيې په وړاندي
جنګ اعلان کړ او ځواکونه يې د قسطنطنيې په موخه تر
بالکان ور تېر سول . ډيزرايلي چي دا مهال د
Beaconsfield پر ځای ناست و، دا اند لاره چي د عثمانيه
امپراتورۍ خپلواکي د برتانيې په ګټه ده، په دې خاطر يې
(۶۰۰۰۰۰) پونډه له برتانوي پارلمانه منظور کړه او د
مديترانې ميشت لښکر ته يې امر ورکړ چي ډرډينلز نه په
تېرېدو طلايي تولی (Golden Horn) ته ځان ورسوئ .

د برتانيې په خواشيني کېدو سره روسيه د قسطنطنيې
له نيولو راوګرځېدل او بالآخره يې په ۱۸۷۸ کي غاړه
کښېښوده څو له سلطان سره د سينټ ستيفانو تړون
لاسليک کړي خو د روسيې دا سياسي چالاکي بيا هم ډېره
ونه چلېده . لارډ بيکنز فيلډ د سنټ ستيفانو تړون رسمي
پېژندنه رد کړه او د ترکيې په اجازه يې قبرس ونياوه او
خپل ځواکونه يې هلته پلي کړه، خو د جرمني په
منځګړيتوب د جګړې مخه ونيول سوه. د ۱۸۷۸ په جون او
جولای کي د دواړو زبرځواکونو د غونډي پر مهال چي په
برلين کي وه، د سنټ ستيفانو تړون په داسي بڼه وړاندي
کړل سو چي روسيه ډېره په ناخوښه وه . روسيه د
Beaconsfield د غير دوستانه چلند نه ډېره خفه وه. د
کږکېچ د تندی پر مهال برتانوي لومړي وزير يو شمېر
هندي پوځونه د سويز کانال له لاري مالټا ته لېږلي وه.
روسي حکومت وپتېيل چي د هندي حکومت د دې کار د
ځواب چاره کور ته نژدې وکړي .

د ۱۸۷۸ د جون پر ديارلسمه چي د برلين د غونډي د
پرانستني ورځ وه جنرال Stolietoff له تاشکنده د کابل پر
لور راوخوځېد . امير د دې خبري په اورېدلو خواشيني سو
او سخته هڅه يې پيل کړه څو کابل ته د هغه راتګ
وځنډوي . د امير دا هڅي د لايټن هغو اند ښنو ته چي ويل
يې امير د روسيې پلوی دی، په خپل ځان کي يو ځواب و .

امير خپل د احتجاج ږغ اوچت کړ او په ترکستان کي يې د
روسيې اعلی حاکم ته خپل ږغ ور ورساوه . د دې تر څنګ
يې په مزار کي خپل والي شېر دل خان ته احوال ولېږه چي
تر خپله وسه هڅه وکړي څو روسان افغانستان ته رانسي .
خو د ده اند ښنو ته چا ونه کتل او ور ته ځواب راغلی چي
اوس نو د Stolietoff بېر ته راغوښتنه ناشوني ده او که ور ته
هر څه زيان ور رسېد، شېرعلي به يې مسئوليت ولري .

دا مهال روسي حکومت غوښته پر امير د دې خبري له
لاري اغېز پرې باسي چي د امير وراره عبدالرحمن له زياتې
مودې نه په ترکستان کي د دوی د معاش خوري او که امير
ضد وکړي نو د تخت په وړاندي به يې دا لوی ګواښ
رامخي ته کړي . امير په دې خواشيني و . کابل ته د
روسي پلاوي د رسېدو سره سم لايټن په همدې شان د يو
برتانوي پلاوي د منلو غوښتونکو سو او په عين حال کي يې
خرګنده کړه چي امير بايد د برتانويانو له اجازې پرته له
هيڅ ځواک سره خبري ونکړي او په کابل کي د يو مستقل
برتانوي استازي مشتېدل ومني .

که سپينه وکړو نو دا هر څه د روسيې او انګلستان ګناه
وه او کابل ته د روسي پلاوي د راتګ له امله روسيه او
انګلستان مسئوله دي . د روسي پلاوي راتګ په مديترانه
کي د برتانويانو د تګلارو پايله وه او دا د برتانويانو دنده وه
چي له روسيې سره له سره کښېنستلي وای څو پر بېچاره
امير يې له فشار راوستلو راګرځولي وای . د برلين د تړون
له لاسليکېدو سمدستي وروسته Stolietoff له کابله
وخوځېد . دا مهال نو د روسيې او انګلستان تر منځ د جنګ
خطر له منځه تللی و . د روسي پلاوي راتګ يوازي دا اغېز
پرېښود چي لايټن ته يې د هغې خبري کولو چانس ورکړ
چي هغه يې له مودو راهيسي انتظار لاره . هغه د يوه علمي
سرحد ټاکل او د شېرعلي غندل و . د هندي نايب
الحکومه لپاره مناسب کار دا و چي د امير باور وګټي خو د
ټولو توقعاتو پر خلاف يو مسلمان استازی کابل ته ولېږل
سو، خو د برتانوي پلاوي د نژدې راتګ اعلان
وکړي . همدا مهال د خيبر درې شينواري او اپريدي قبيلې
چي د افغانستان د امير سره تړلي وې د بدو له لاري واپلول
سول څو افغانستان ته د برتانوي ځواکونو د ننوتو اجازه
وکړي چي امير د دې کار پر خلاف د بشپړ احتجاج حق
درلود . د ۱۸۷۸ په اګست کي د امير د ګران زوی او
راتلونکي ځای ناستي عبدالله جان مرګ امير ته سخت
تکان ورکړ خو برتانويانو د دې پروا ونکړه او د پلاوي په

استولو کې يې هيڅ ځنډ ونکړ . امير ته يې آن دومره وخت ورنکړ چې د زوی ماتم وکړي او له دې غمه ځان لږ سپک کړي .

د اګست پر څوارلسمه لارډ لايټن امير ته ليک ولېږه او ليکلي يې وه چې سر نيول چيمبرلين کابل ته پر لاره دی . خو خپله د امير سره پر ځينو موضوعاتو بېرنۍ خبرې وکړي . څو ورځې پس برتانوي پلاوی بېله دې چې له اميره ځواب تر لاسه کړي پېښور ته ورسېد . له علي مسجد سره چې خيبر درې ته د ننوتو سوره وه ، د افغانستان د تلاشي پوسته وه ، د پوستې قومندان فيض محمد د پلاوي مخ ته راووت او په مؤدبانه توګه يې ورته وويل چې د اجازې پر ته ورته د ننوتو اجازه نه سي ورکولای . برتانوي پلاوي پوهېده که د وړاندې تللو هڅه وکړي ، افغان سرتيري به له ځواک کارولو ډډه ونکړي ، نو بير ته پېښور ته وګرځېد .

لارډ لايټن له وضعيت څخه په ګټه اخيستنه اعلان وکړ چې پلاوی يې بې عزته سوی او په زوره بير ته شړل سوی دی . په دې خبره کې لايټن له رښتيا نه ستر ګې پټې کړي وې . لايټن سمدستي د امير په وړاندې د جنګ پيلولو وړاندیز وکړ ، خو برتانوي کابينې پرېکړه وکړه چې څو اونۍ ساه ونيسي او نايب الحکومه ته يې وويل چې امير ته لومړی يو خبرداری ولېږي . د ۱۸۷۸ د نومبر پر دوهمه لايټن امير ته خبرداری ولېږه چې که چيري له برتانوي پرغله ځان ژغورل غواړي نو دی د يوې بشپړې بخښنې غوښتلو تر څنګ په افغانستان کې د يو مستقل برتانوي استازي منلو ته غاړه کېښږدي . د دې تر څنګ يې خبرداری ورکړ چې بايد د نومبر تر شلمې پورې واضح ځواب ور ولېږل سي . د نومبر پر دېرشمه نايب الحکومه ته د امير نېټه ۱۹ نومبر ليک ورسېد چې پکښې د امير لخوا د برتانوي استازي د منلو ليکل سوي وه . خو دا بس نه وه ځکه په ليک کې د بخښنې غوښتلو هيڅ يادونه نه وه سوې ، د دې تر څنګ لارډ لايټن هم دا وخت د جنګ سپي له پړيو خلاص کړي وه .

برتانيې يو ځل بيا له کوم قانوني جوازه پرته پر افغانستان بريد وکړ چې خپله په برتانيه کې د دې کار پراخ مخالفت وسو .
Glandstone په پارلمان کې دا جګړه په دې ويو کې وغندل

"انسان د خطا څخه نه دی خلاص او که خطا څني وسي د بخښنې وړ دی . موږ په ۱۸۳۸ کې غلطه کړې وه چې له افغانستان سره نښتي وو خو دا دی په دوهم ځل بيا همهغه غلطي کوو . پر دې غلطی پراخي ګوت نيونې کيږي خو بيا يې هم مخه نه نيول کيږي . موږ د متل په بڼه وايو چې تاريخ په خپله تکراريږي خو داسې ډېر لږ پېښيږي چې د تاريخ تکرارېده دې په ستر ګو ووينو .

که اوسنی جګړه له پخواني سره پرتله کړو نو دا به هم ووينو چې تاريخ تکراريږي . خدای دې موږ وژغوري . خدای دې زموږ پوخ له هغو ناخوالو وژغوري چې په ۴۲_۱۸۴۱ م کې ورسره مخ سوی و" .



## په کاناډا کې د کندهار...

د کندهار کلي کارونه او دوکانونه وروورو سږ بدل او ترک کېدل . په ۱۹۶۵ م کال کې يو واري بيا د کلي کاروبار شروع سو . د کندهار سټيک هاوس (Kandahar Steak House) په نامه پرانستل سو . دا رسټورانټ د ښه غذاوو د سرويس له کبله دونده مشهوره سو چې د ډېرو ځايو څخه به خلک ورته راتلل .

خو خرنګه چې ډيري مغازې او دوکانونه دمخه لا تړل سوي وه ، د کلي اقتصاد ضعيف پاته سو او هغه تللي خلک بير ته رانه غل . تر څو چې کرار کرار کلي د خپل پخواني رونق څخه ولوېدی او بالآخره په ۱۹۷۹ م کال د وروستي ځل لپاره د کندهار په کلي کې د پوستي خدماتو دروازه وتړل سوه او دې کلي ته د اقتصادي رونق د پای ټکی کېښښوو .

کلي اوس (۲۰۰۴ کال) هغه خپل پخواني شان او شوکت نه لري ، حتی ابتدايي شوونځی لا پکښې وتړل سوه د دوکان او مغازې په نامه خو هيڅ شی نسته خلک خپل د ژوندانه ضرورتونه د نږدې کلي څخه چې د (واين يارد Wine Yard) په نامه ياديږي او د موټر پنځو دقيقو لاره ده ، پوره کوي .

په پورتني متن کي څه چې د پاملرنې او توجه وړ هغه دا چې تر کومه ځايه زه خبر يم ، تر افغانستان دباندې دا لومړی ځل دی چې په يوه خارجي هيواد کې او هغه بيا هم د کاناډا غوندې په يو لوی او پرمختللي هيواد کې د افغانستان د څلورو مشهورو تاريخي ځايونو لکه (کندهار ، کابل ، خيبر او اورځک) نومونه سل کاله دمخه د بيا نومولو لپاره غوره او انتخاب سوي دي .

**کاناډا ، امريکا او آسټريا د خپلو ښارونو او د کلو د نامه په ايښوولو کې همېشه د اروپايي نومونو څخه استفاده کړېده د آسيايي او افريقايي هيوادونو له جملې څخه افغانستان يوازنی هيواد دی چې نومونه يې د اروپايي هيوادونو غوندې دلته رانقل سوي دي .**

زه دغه نوم ايښوونکي يا نام ګزاري چې سل کاله مخکې دلته سوېده د افغانستان د وياړلي تاريخ يوه برخه برخه ګڼم او هيله مند يم چې وطندوسته افغانان په يوازې ډول او يا د افغانستان حکومت په رسمي توګه لږ و ډېر د دغه کلي د نوم او د هغو واټونو د لوحه ګذاري په هکله څه اقدام وکړي دا به د افغان کاناډايي مهاجرو و راتلونکي نسلونو ته د افتخار ټکی وي ، ځکه چې نومونه همېشه د ځان سره تاريخي حکايت بيانوي او دا ډول نومونه تر هيواد دباندې تاريخي سرمايه بولم

# اخلاق او د ملتونو پرمختګ

## ولې پس پاته یو؟

عبدالله ذاکروال

هر چاته دا پوښتنه پیدا ده، هر څوک په دې معادله کې راګیر دي او د قاطع قناعت لپاره یې د حل لارې چارې لټوي . انجینر پخپل مسلک کې ستونزه لري، ډاکتر صاحب مأیوسه دی، پیر صاحب او ملاصاحب د خپلو مریدانو او مقتدیانو څخه شکایت لري او داسې نور .

بالآخره د ټولنې او اجتماع هر فرد د خپل ماحول په رابطه بې رابطې او مأسویه دی، ژوند یې برابر دی، معاش یې کفایت کوي، د دوستانو سره اړیکې ساتي، د ورځنیو پېښو په باب متوجه دی مګر بیا هم د خپل ژوند څخه خوند نه سي اخیستلای او د ژوند تېرولو د اصلي مفهوم په هکله سرګردانه او لالهانده ګرځي .

ښه ورو ګوڅه پکښې وایاست، او د ژوند تېرولو د اصلي مفهوم په هکله په کوم نظر یاست؟ که چیرې د ټولنې د یوه فرد په صفت را څخه پوښتنه وسي نو لاندې اخلاقي تشې یې مهم عوامل بولم :

څښتن تعالی ﷻ په خپل عظیم کتاب کې و خپل محبوب ﷺ ته داسې خطاب کوي :

اې زما رسوله ته چې یې د ډېرو عظیمو اخلاقو خاوند یې . "الآیه" نبي کریم ﷺ د ټولنې د فرد او د عامه بشریت برترې او بهترې، عزت او کامیابي، ترحم او مهرباني، عدل او انصاف د انسان په نیکو اخلاقو پورې تړې او د هغه د سعادت او د ژوند د پېشرفت او خوشحالي وسیله یې بولي . د نسب او مال ډېروالی او د دې نظر یې تر تأثیر لاندې راتلل د انسان د بدبختۍ عوامل ګرځي، په روزمره معاشره کې پلار د زوی په طبیعت نه پوهیږي، لور د مور د هدایت همېشه مخالفت کوي، ورور د خپل شهرین ورور ذلت غواړي همداسې همسایه او همسایه، کلی او کلی، ولسوالي او ولسوالي، متفرقه قومونه یو د بل په مقابل کې او داسې نور .

د پورته ټولو ناخوالو او خطرناکو عواقبو لومړنی عامل د نېکو اخلاقو څخه فاصله نیول دي، که موږ نېکو اخلاقو ته ځانونه تسلیم کړو او هغه الهي او نبوي لارښوونې پر ځانو تطبیق کړو کوم چې انسان ته سکون بخښي د محبت او یووالي باعث ګرځي، د ښو او بدو په رابطه بې تفاوته نه پاته کیږي او بالآخره د انسان ضمیر، سالم عقل، احساس او فکر ته قوت بخښي او د هغه د دواړو جهانو د کامیابۍ سره سره یې د یوه آرام او پتمن ژوند څښتن کوي . د ټولې نړۍ پر دې اتفاق دی چې اخلاقي تشه د ملتونو او دولتونو د تباهۍ سرچینه ده او د هغوی د تباهۍ سبب ګرځي .

په یو مملکت کې چې اخوت، شفقت، سرښنده، د خپل ورور ګټه او نقصان د ځان بلل او وحدت فرماوي نو په زغرده ویلای سو چې د دې ملک وګړي نور چاته د سوال او غوښتنې لاس نه غځوي، پر خپل ځان متکي وي، د پس پاته کېدو په هکله مطمئن وي، هغو عوامل چې د پس پاته کېدو

سبب گرځي مخکي له مخکي ورته بيدار وي تر څو د پيښېدو په صورت کي يې ملک د يوه بحران سره مخامخ نه سي . نېک خويه شخص په هره ټولنه کي محبوبيت او شهرت لري، دوستان يې ډېر وي، هر څوک کوښښ کوي چي ځان د هغه خدمت ته مخلصانه حاضر کړي. په يوه خپلواکه ټولنه کي اکثريت خلک د هغه ملاتړ کوي او د يوه زعيم په ستر گه ورته گوري .

الله پاک ﷻ فرمايي : فطره الله التي فطر الناس عليها لاتبديل لخلق الله "د روم صورت د ډېرشم آيت" .

ژباړه : پر هغه فطرت ټينگ سه چي الله ﷻ انسانان پيدا کړي دي او هيڅ تغير او تبديل نسته د الله ﷻ په خلقت کي . د يهودو مشرانو په ډاگه خپل ملت ته وويل :

کوم برى چي يهودو د عربو په مقابل کي لاسته راوړى او دوى يې فکر نه کاوه دا د دوى د شو پلانونو او غوره تاکتيک نتيجه نه وه، بلکي دا د عربو د اخلاقي فساد نتيجه وه او دا زموږ لپاره يو طلايي چانس و .

نن په زياترو اسلامي هيوادو کي خلک له شريعت څخه عُرف ته زياته پاملرنه کوي، خپلي ټولي ناروا وي د دين په نوم پټوي، خپل شخصي اهداف د دين په نوم سر ته رسوي، د اسلامي نړۍ په گڼ شمېر هيوادونو کي په مليونونو روپۍ د ښايسته جامو په اخيستلو او د محفلونو په جوړولو مصرفيږي، خو تر څنگ يې په زرگونو کسان د فقر او بېوزلي چيغي او ناري وهي د هغوى سره د يوې روپۍ مرسته هم نه کيږي .

رسول الله ﷺ فرمايلي دي : په اسلام کي فحاشي او لوڅماري نسته، غوره شخص په اسلام کي هغه څوک دى چي د نېکو اخلاقو څښتن وي . "الحديث" .

رسول د خداى بل ځاى فرمايي : په دې کي شک نسته چي الله پاک ﷻ کله کوم بنده دوست وگڼي نو د سه سلوک څښتن يې کړي او د کومي کورنۍ کسان چي د سه چلند څخه محروم سي هغوى به د الله ﷻ له نعمتونو او خير څخه محروم سي . "الحديث"

په بل حديث کي راځي : له خپل ورور سره په ورين تندي مخامخ کېدل صدقه ده. په نېکو کارونو امر کول صدقه ده، له بدو څخه منع کول صدقه ده. نابلده کس ته لاره ښوول صدقه ده، د لاري څخه د هډوکو او اغزو ليري کول صدقه ده . "الحديث"

په بل ځاى کي رسول ﷺ فرمايلي دي : زما دي په هغه ذات قسم وي چي زما ارواح يې په لاس کي ده، تر هغه پوري په جنت ته داخل نه سئ چي په خپل منځ کي ورو گلوي ونه کړئ او تر هغه به ورونه نه سئ چي يو د بله سره مينه او دوستي ونه کړئ . "الحديث"

له نعمان بن بشير څخه روايت دى چي وايي : يو وخت موږ د پيغمبر ﷺ سره يو ځاى روان وو، چي يو ډنگر سړى پر خپل اوښ سپور راغى له موږ څخه يو سړي خپله توره را وايستله او هغه د اوښ خاوند په وېره کي سو، رسول الله ﷺ وويل : هيڅ مسلمان ته نه ده جايز چي خپل مسلمان ورور ووېروي . "الحديث"

پيغمبر ﷺ فرمايي : څوک چي دوکه او چل کوي هغه زما امت نه دى . "الحديث"

په بل ځاى کي نبي کريم ﷺ فرمايي : هغه اشخاص زما د امت څخه نه دي چي د علماوُ احترام نه کوي، د مشرانو قدر نه کوي، او پر کشرانو شفقت نه کوي . "الحديث"

په کوم اسلامي هيواد کي چي د ټاکنو ږغ پورته کيږي نو پاک او باشعوره انسانان يې له اوږدو څخه څوريږي، ځکه چي دغه څوکي يوازي تر دې پوري نه دي منحصر او خلاصه چي نا اهله اشخاص غټو منصبونو ته رسيږي، بلکي د څور بدو اساسي لامل دروغ، فريب، چل او دوکه ده . واړه او غټ ټوله له حقايقو څخه ستر گي پټوي او د خلکو په ستر گو کي خاوري وراچوي . د کوم ملت اخلاق چي دې درجې ته ورسيږي ايا دوى د هلاکت او مرگ لايق نه دي؟

موږ ټولو ته ښه څرگنده ده چي زموږ په دين او خيرونو کي دروغ، د ژمنو مخالفت، په امانتونو کي خيانت، په تړونونو کي عذر، په جگړو او بحثونو کي فسق د نفاق او پس پاته کېدو ارکان دي. خو هيڅوک دې ته بد نه وايي . آن چي د دغو اشخاصو درناوى هم کوي .

که موږ وغواړو چي خپلو اصيلو اخلاقو ته رجوع وکړو او په خپلو ټولنو کي يې پلي کړو نو په کار ده چي په خپلو ايمانونو کي له سره فکر وکړو . د الله ﷻ پر ژمنو باندي په سمه توگه ايمان راوړو، فضايل او نېک کارونه تر شهواتو غوره وگڼو، د دې کارونو په تر سره کولو سره به موږ وکړاى سو، له نورو سره سيالي وکړو او دا چي "ولي پس پاته يو؟" بېرته به پخواني عزت او شرف تر لاسه کړو .

# د اولاد د ښه تربيت او ښې روزنې بنيادي اصول

عبدالرؤف حقيار/کونړ

په دې کې شک نسته چې د مور غېږه د کوچني له پاره لومړی درسگاه او ډېره غټه مدرسه ده، د مور په غېږه کې د کوچني ستر گي خلاصيږي او له همدې ځايه ښخه يې تربيت شروع کيږي، ډېر ځله د دغي لومړی مدرسې يعني د مور د غيږي د تعليم تاثير د انسان په طبيعت کې تر مرگه پاتيږي، نو له دې وجې د مور او پلار مسئوليت د اولاد په ښه روزلو کې ډېر ستر او د خورا زيات اهميت ښخه ډک دی، دا يو داسي مسئوليت دی چې په دې هکله دوی نه يوازې د کور، وطن او ملت له پاره جواب ويونکي دي، بلکې تر ټولو غټ جواب به د خپل حقيقي معبود يعني لوی خدای ﷻ په وړاندې ور کوي، دا سمه ده چې مور او پلار به خپله هر څومره نېک وي، مگر که يې د اولاد په پاللو او هغه ته په ښه تربيت ور کولو کې بې غوري کړې وه، د قيامت په ورځ به د لعنت او د عذاب مستحق گرځي.

په دې کې شک نسته چې تر ټولو هغه بد مور او پلار هم دا نه غواړي چې اولاد دې خراب او بداخلاقه سي، ليکن د افسوس خبره دا ده چې اکثره ميندي او پلرونه د اولاد د تعليم تربيت د بنيادي اصولو سره بلد نه وي او دوی په دې حقيقت نه پوهيږي چې انسان فطرتاً نقال يعني نقل کوونکی پيدا کيږي او په ده کې فطرتاً د نقل جذبه تر هر څه زياته وي، کوچنی چې يو څوک پر يو کار کولو ويني، دی هم سمدستي د هغه نقل کوي يعني دی هم هغه کار زده کوي او د هغه کار مرتکب کيږي، دغه نقل پر ده دومره ژور اثر غورځوي چې بالآخره د ده د طبيعت يو اهم جزء جوړيږي، له دې وجې مور او پلار او په خاصه توگه بيا مور لره نه ښايي چې د اولادونو په مخکې داسي حرکت وکړي چې د دوی پر نفسيا تو بد اثر وغورځوي او نه بايد د دوی په هکله داسي فکر وکړل سي چې پر ږده اوس لا کوچنيان دي په دې څه پوهيږي.

دا خبره په ياد ولرئ چې کوچنيان د ستر گو او غوږونو په ذريعه هم ښې او هم بدي خبري د خپل طبيعت و محور ته ورکښته کوي، که چيري داسي نه وای نو دوی به ولي د شيدو د غوښتلو پر وخت ژړا او جنجال کولای او ولي به د خپلي مور د اواز په اور بدلو سره خاموشه کېدای. مطلب دا دی که هر څومره کوچنی هم وي د غوږونو او ستر گو په ذريعه ښه او بدي خبري راټولوي او بيا يې د خپل طبيعت په دائره کې جمع کوي، له دې کبله مور او پلار ته په کار ده چې په دې هکله د تل او همېشه له پاره دغه اصول په نظر

کي ونیسي او خپل مسئولیت چي د اولاد صحیح تربیه ده په ښه اداء کړي .

**ځیان هم ښه او هم بد کارونه نقلوي**

که تاسي فکر کړی وي چي کله مور دوډی پخوي. یا اوړ یې هم راځي په اوړو کي ځان ورسره اچوي او د ځخه کوچني کوچني ټکي جوړوي، همدارنګه مور یا پلار چي کله پر لمانځه دریږي کوچني یې هم راځي د ځان له پاره یو کوچني ټوکر هوار کړي پر لمانځه ور سره دریږي او شاوخوا ګوري چي مور یا پلار پر سجده سي دی هم پر سجده کیږي، خو مور او پلار یې څو شېبې وروسته له سجدې ځخه بیر ته سر راپورته کوي، مګر کوچنی لا هماغسي پر سجده پروت وي. یوې او بلې خوا ته مخ اړوي. په دې وخت کي بې اختیاره سړي ته خندا ورځي مګر کوچنی د چا د خندا پروا نه کوي، که ته شل واري دغه کوچني له دې کاره ځخه منع کړي بیا هم دی له دغه کاره ځخه مخ نه ګرځوي .

کوچني خو دغه کار د خپلي پوهي پر بنا نه کوي بلکي د خپل شوق د پوره کولو له پاره دا کار کوي او دا د خپل ځان له پاره لوبي ګڼي. مطلب دا دی چي په کوچني کي د نقل کولو جذبه ډېره غښتلي وي، که یې مور رشتیا وایي دی هم رشتیا وایي او که یې مور د درواغو عادت لري دی غریب هم درواغ زده کوي، که یې چیري مور جنګره وي یعني هر وخت د مېړه او د کور د نورو غړو سره جنګونه کوي په اولادونو کي یې همدا تأثیر پیدا کیږي. همدارنګه که مور او پلار یو تر بله بد الفاظ استعمالوي او یا د ښکنځلو عادت لري نو ګوری به چي په اولاد کي یې هم دغه بد عادت تر څومره ډېره ځایه ژور اثر ځغلوي. تاسي نه دي اورېدلي چي هوښیارانو خلکو پر ښې ناستي ولاړي ډېر تأکید کړی دی او د بدي ناستي ولاړي او بې کاره صحبت ځخه یې په اخیري اندازه کر که او نفرت ښکاره کړې ده، ځکه چي د صحبت او ناستي ولاړي پر تأثیر هیڅوک ستر ګي نه سي پټولای لکه د پټې خزانې یو شاعر چي د خپل بل شاعر ملګري ته مخ ور اړوي او د ټوکو په ډول ورته وایي

وایې دا چي صحبت کاندي یو له بله ډېر اثر
په کلو دي مصاحب سوم ستا صحبت نه کړمه ځر

یعني اورېدلي مي دي چي خلک وایي ناسته ولاړه یو په بل کي خورا ژور تأثیر لري، مګر دا خبره زما په فکر له حقیقته ها خوا ده، دا دی ما وینې چي ستا سره ډېره ناسته ولاړه لرم او په کلونو کلونو درسره پاته سوی یم، مګر په ما کي تا هیڅ تأثیر نه دی کړی، دا دی وینې مي ستا سره د ناستي له امله زه اوس هم انسان پاته سوی یم او خر سوی نه یم .

دا په دې معنی چي ته خو خر یې مګر په ما کي ستا خرتوبی هیڅ تأثیر ونه کړ او د ځان په شان دې خر ونه ګرځولم .

ملګری یې په جواب کي ورته وایي :

صحبت ډېر اثر کا ګوره منکر نه سې د اثر
ته تر مخه هغه شی وې اوس انسان سولې بشر

یعني له دې ځخه انکار مه کوه چي صحبت اثر لري. ژوندی مثال یې همدا ته یې. لومړی ته دا خپل ځان ته وګوره ته زما تر صحبت مخکي هغه شی یعني خر وې خو اوس د ا دی زما د صحبت له برکته په انسان بدل سوې او انسانیت درپکښې وده وکړه، که دا د صحبت او ناستي ولاړي تأثیر نه وي نو څه دی؟

له دې ځخه زما مطلب دا دی چي مور او پلار باید د اولادونو په مخکې د داسي کار ځخه په کلکه پرهېز وکړي چي پر کوچنیانو یې بد تأثیر لوېږي. ډېر هوښیاران او زده کړي خلک په قصده داسي کارونه کوي چي د دوی اولادونو ته ښه عادتونه ورنقل سي، همدارنګه هوښیاري میندي او هوښیار پلرو نه هیڅکله خپل اولادونه نه پرېږدي چي له بدو هلکانو او بدو ملګرو سره دي ناسته ولاړه وکړي او د هغوی بد کارونه دي خپل کړي .

د کوچنیانو د ښه تربیت له پاره ضروري ده چي مور پخپله زده کړې وي. د دې له پاره چي د خپلو اولادونو د ښه تربیت لاري ورمعلومې وي او په هر ښه او بد کار پوهیږي، بې تعلیمه، بد تهذیبه او بد تمیزه، مور چي پخپله په ښه او بد نه پوهیږي څنګه به وکولای سي چي اولادونو ته ښه تربیت ور کړي .

**د اولاد تعلیم او تربیت**

هره هوښیاره او تعلیم یافته ښځه په دې ښه پوهیږي چي اولاد ته څه ډول تربیه ور کړي اولاد یې هماغسي جوړیږي، نو که چیري ته خپل اولاد ته ښه تعلیم او تربیه ور کړې اولاد به دي الله پاک ښه او نېک سړی جوړ کړي او په دې صورت کي به دي د خپل حقیقي څښتن په وړاندي خپل مسئولیت ادا کړی وي او که بده تربیه ور کړې. نو بیا یې د ښه جوړېدلو امید مه کوه او د خپل حقیقي مالک په وړاندي به یوه ورځ ضرور د خپلي بې غوری جواب وایې .

دا سمه ده چې هدایت د لوی خدای ﷻ له جانبه دی، مګر مور او پلار د اولاد په روزلو کې یوه ورځ ضرور له پوښتنې سره مخامخ کیږي، صحیح جواب ویلو ته اړ کیږي او د ناکامۍ په صورت کې سخت مجازات کېدای هم سي، دا ځکه چې مور او پلار په دې هکله خاص او یو ځانګړی مکلفیت لري، د اسلام د مقدس دین له نظره د اولاد ښه روزنه د مور او پلار د ېره غټه ذمه واري ده او په دې اړوند د دوی پر اوږو د ېر درووند بار ایښوول سوی دی نو باید مور او پلار خپله دغه ذمه واري په ډېره ښه توګه تر سره کړي او هغه مسئولیت چې دوی ته ور دغاړي دی په ډېره ښه توګه پوره کړي او خپل دغه درووند بار له خپلو اوږو څخه کښته کړي .

هوښیارانو خلکو ویلي دي چې کوچنی د انسان پلار دی، هغه کوچنی چې د ده خوږې خوږې خبري د مور او پلار پر زړه د مرهم په ډول تأثیر کوي او د مور او پلار د ستر ګو نور وي د سبا ورځې مور او پلار دی، نو باید له کوچنیوالي څخه په ده کې داسې ښه اخلاق وروزل سي چې ده ته د سبا له پاره ځراغ او ډېوه سي او خپله لاره په پیدا کړي او له خپله وسه سره یې له بد عادتونو څخه راو ګرځوي، ځکه چې بد عادتونه د ده په فطرت او طبیعت کې راټولیږي او بیا هغه عادتونه له ده څخه تر مرګه نه جلا کیږي .

د اولاد په تعلیم او ښه تربیت کې د مور ډېر لوی لاس دی، ځکه چې کوچنی تر پلار د مور سره زیاتې اړیکې لري، نو که مور د اولاد د ښه روزلو او ښې تربیې فکر وکړي اولاد به یې د سبا له پاره ښه سړی سي او په کاملو رجالو کې به ځای پیدا کړي او که بر عکس مور د ده اخلاقو، تعلیم او تربیې ته هیڅ توجه نه کوي او له بلې خوا یې د ښې راتلونکې امید لري نو ته فکر وکړه دا کار تر څومره ځایه شونی دی او دا ډول امید ساتل که حماقت نه دی نو څه دی؟

مور او پلار ته په کار دي چې د بې ځایه ناز او نخرو پر ځای د ده دیني او اخلاقي حالت په پام کې ونیسي او د ده د کامل مسلمان جوړېدو په هکله فکر وکړي او د ده په مغزو کې ښه عادتونه غښتلي او تقویه کړي که چیري دا په دې هکله فکر نه کوي او بې غمه کښېني چې څه اوس لا کوچنی دی په هیڅ نه پوهیږي چې غټ سي پخپله سمیږي زما په فکر دا خبره تر ډېره ځایه غلطه ده، دوی ولې په دې نه پوهیږي چې داسې ده او پخپله کوچنی سمیږي نو بیا د دوی مسئولیت څه شی دی، دوی ولې په دې خبره سر نه خلاصوي چې د کوچني والي بد عادتونه په لوی والي کې لا پخیږي، دا کله کېدای سي چې یو چا دې د یوه شي تخم کرلی وي مګر له حاصلاتو څخه دې امید د بل شي لري، ایا تا نه دي اورېدلي چې وایي چې : "څه کرې هغه به رېبې" . د پیازو څخه د انګورو تمه کول څومره غلط او ناشونی کار دی .

**د حضرت امام حسن او حضرت امام حسین رضی الله عنهما تر منځ جګړه :**

د حضرت امام حسن او حضرت امام حسین رضي الله عنهما د کوچنیوالي په وخت کې یوه ورځ د دوی تر منځ پر یو شي سره جنګ سو او دواړو یو تر بله سره ووهل، وروسته دواړو په ژړا تر خپلې مور بي بي فاطمې رضی الله عنها پورې ځانونه راورسول او د یو و بل شکایت یې شروع کړ، حضرت فاطمې رضي الله عنها دواړه د خپل ځان سره کښېنول نو یې ورته وفرمایل : تاسي نه یاست خبر چې ستاسي خدای ﷻ حکم کړی دی چې یو تر بله جنګونه مه کوئ، افسوس دی ستاسي پر حال باندي چې د لوی خدای ﷻ حکم مو نه دی منلی، زه ستاسي څخه دا پوښتنه نه کوم چې په تاسي کې څوک ملامت دی، لیکن ما ته افسوس پر دې راځي چې تاسي د هغه چا حکم څنګه ونه مانه چا چې تاسي پیدا کړي یاست او ډول ډول نعمتونه یې در کړي دي، تاسي ولي د لوی خدای ﷻ د حکم هیڅ پروا ونه کړل اوس دا راته ووایاست چې تاسي به خدای ﷻ ته څه جواب ور کوئ، ولي داسي کوئ؟ ستاسي په وجه ماته د خدای ﷻ څخه شرم راځي .

دغو دوو کوچنیانو چې د مور ریښتیني .د اخلاق او جذباتو څخه ډکې خبري واورېدې نو بې اختیاره ژړا ورغله او د خدای ﷻ له بیري څخه په رېږدېدو سوه، دواړو کوچنیانو ژړل او د مور د بیر ته خوشحاله کولو له پاره یې ویل : مورجاني اې ګراني ادې جاني ! دعا وکړه چې خدای ﷻ زموږ ګناهونه معاف کړي بیا به داسي غلطي هیڅکله نه کوو .

حضرت فاطمې رضي الله عنها چې دوی ولیدل چې ډېر پښېمانه دي، نو یې ورته وفرمایل : سمه ده چې بیا داسي ونه کئ، ولاړ سئ اودس تازه کړئ او بیرته ژر راسئ، دوی هم دواړه په ځغاسته ځي اودس تازه کوي او بیر ته ژر راځي، حضرت بي بي فاطمه رضي الله عنها دوی پر سجده پرې باسي او ورته وایي : اې ګرانو کوچنیانو ! د خپل خدای

ﷺ څخه د خپلي غلطی په هکله معافي وغواړئ، زه هم ستاسي د معافی له پاره دعا کوم .

د دواړو کوچنیانو د مرغلرو په شان تر ستر گو میده میده اوښکي راتویيږي پر سجده پر یوزي او له خپل مهربانه خدایه څخه د خپلي غلطي په هکله بخښنه غواړي، حضرت فاطمه رضي الله عنها هم د دوی سره ژاړي او دعا کوي .

لږ گړي وروسته دواړه کوچنیان د سجدې څخه سر راپورته کوي او د خپلي مبارکي مور په غېږه پوري ځانونه موښلوي، مور یې هم راولاړیږي پر دواړو زامنو لاسونه راگرځوي، پخپلي غیږي پوري یې موښلوي او ورته وایي : گرانو بچیانو !آینده داسي کار مه کوئ، پاک خدای ﷻ مو پر ټول له جنگ او جگړو څخه منع کړي یو، بچیان یې وعده ورسره کوي او ورته وایي : نه مورجاني !آینده داسي غلطي بیا هیڅکله نه تکراروو .

**د کوچنیانو پوښتنو ته ځوابونه ورکول**

دا قدرتي خبره ده کوچني چي کله لږ لوی سي څه ناڅه شعور پیدا کړي او خپلو څلورو طرفونو ته نوي نوي شیان لکه : لمر، سوږمی، آسمان، ستوري، شپه و ورځ، د ورځي او شپې بدلون ویني، نو خپل فکر او دماغ دی و دې کار ته مجبوره کوي چي د دغو شیانو په هکله تحقیق او خبرنه وکړي . دی راولاړیږي د دغو پوښتنو د ځوابونو له پاره خپلي مور ته ورځي او پوښتني ځني کوي، ځکه چي د ده په نزد د ده خپله مور تر هر چا پوه ده، دی دا یقین لري چي بل هیڅ داسي ځوک نسته چي زما تر مور دي پوه وي. دی په وار وار سره د خپلي مور څخه هغه پوښتني کوي چي د ده په زړه کي پیدا سوي دي، که چیري مور له نېکه مرغه هوښیاره او تعلیم یافته وه نو د ده و پوښتنو ته به صحیح صحیح ځوابونه ووایي د ده قدرتي جذبات به په نظر کي ونسي، هم به د ده و پوښتنو ته د حقیقت مطابق صحیح ځوابونه ورکړي او د دې له پاره چي د اولادونو خیالات او اخلاق یې وده وکړي پر مناسب وخت به نصیحتونه، د لویانو او مشرانو خبري او هم ښه حکایتونه او عبرت اخیستونکي قصې ورته واوروي، همدارنگه باید هر وخت دوی ته د لویانو سره ادب او د هغوی عزت وروښیي او د نورو قریبانو او دوستانو سره د ښه اخلاق او ښې رویې په هکله تعلیم ورکړي .

کوچني ته پخپل فکر کي تل دا پوښتنه ور پیدا کیږي چي لمر څه شي دی، سپوږمی څه شي ده، ورځ ولي راځي او شپه څنگه پیدا کیږي چي شپه سي لمر چیري ځي، د دا ډول او نورو پوښتنو ځوابونه و کوچني ته ور کول ډېر فایده مند دي، ځکه چي د ده تعلیم به له همدې ځایه څخه شروع سي او دی به د مکتب کار چي نور کوچنیان یې په یوه کال کي کولای سي په شپږ میاشتي کي پوره کړي .

لیکن که له بده مرغه مور پخپله بې تعلیمه او بې تهذیبه وه د جهالت او ناپوهی په غېږه کي رالویه سوې وه دا به څنگه وکولای سي د خپل کوچني و پوښتنو ته صحیح ځوابونه ورکړي، څه وخت چي کوچني یې پوښتنه ځني وکړي چي د سپوږمی پر مخ ولي تور داغونه موجود دي، د دې پر ځای چي دا صحیح ځواب ورکړي ورته وایي چي لمر د سپوږمی پر مخ توري ایرې پاشلي دي ځکه اوس د سپوږمی پر مخ تور داغونه معلومیږي . همدارنگه که د زلزلې په هکله پوښتنه ځني وکړي چي دا ولي او څنگه پیدا کیږي د دې له پاره چي دا صحیح ځواب ورکړي ورته وایي چي دا ټوله مځکه د غوایي پر ښکر ولاړه ده غویی چي کله سر وښوروي زلزله پېښیږي، نو ته فکر وکړه د داسي بې تعلیمه مور په ځوابونو به د کوچني معلومات څه خاوري ترقي وکړي .

همدارنگه که مور تندمزاجه او بداخلاقه وي نو چي کوچنی کله پوښتنه ځني وکړي د دې پر ځای چي دا ځواب ورکړي او فطري جذبات یې ور ارام کړي پر مخ یې په چپلاخه وهي او ورته وایي چي ملا دي ماته سه په دغو شیانو ستا څه سر خلاصیږي، کوچنی غریب یې څه خبر دی چي د دې خپله سر نه په خلاصیږي نو ماته به څه ځواب راکړي .

په دې سره کوچني د بل ځل پوښتني کولو څخه بېزاره کیږي او بیا هیڅکله پوښتنه نه کوي، د ده په ذهن کي د پوښتني د پیدا کېدلو سره سم دغه شوق خودبخوده ختم او شنډیږي، باید ووایم چي د ده د جذباتو د مړ کېدلو ذمه واري ټوله پر خپلي دغې بې وقوفه مور باندي راځي .

هوښیاري او پوه مور ته په کار دي چي د کوچنیانو د پوښتنو څخه تنگه نه سي بلکي د دوی د پوښتنو ته ښه په خلاص زړه او ډېر اطمینان سره ځوابونه ورکړي، د داسي معلوماتو د لاسته راوستلو له پاره د دغه فن و کتابونو ته رجوع په کار ده، مطلب دا دی چي دا ډول پوښتني مصیبت مه گڼئ ځکه چي دا د کوچنیانو د دماغي تربیت یوه مهمه معامله ده. د دې سره سره دا خبره هم په یاد ولرئ که چیري د دوی د پوښتنو ځوابونه مو نه درلودل په ښکاره او صفا توگه سره ورته ووایاست چي بیا به بل وخت د دې خبري ځواب درکړم . وروسته کتاب وگورئ او یا د یو اهل علم څخه په دې هکله پوښتنه وکړئ، هغه به ځواب درکړي .

# د ژوب شاعران

پروفیسر صاحبزاده حمیدالله/پښین

ژوب او پښین د سوو کلو څخه د پښتو شاعرۍ دوه لوی مرکزونه په دې سیمه کې تېر سوي دي . دوه سوه کاله وړاندي ملا پیر محمد کاکړ (وفات ۱۲۲۵ هـ) چي په کندهار کي د میاجي په نامه مشهوره و او چي هم هلته د لوی ولي په هدیره کي ښخ دی، د ژوب د سیمي د یعقوبي کلي لومړی پښتو او تر ټولو غټ کاکړ شاعر تېر سوی دی. د ده دېوان د کابل د پښتو ټولني د خوا د خدای بخښلي عبدالرؤف بېنوا د مقدمې سره چاپ سوی دئ (۱۹۴۵ م) دویم وار صحاف نشراتي مؤسسې (کاسي روډ کوټه) له خوا ډېر ښکلی دوه کاله وړاندي چاپ سوی دئ، یو بل چاپ یې غالباً د معصوم هوتک دی .

د ژوب د گوسي د کلي شمامزی کیبري . سنځرخېل کاکړ ملاجان محمد کاکړ د شاه شجاع سدوزي د زمانې (۱۲۵۵ هـ ۱۸۳۹ م) دئ چي د دیوان جان محمد یې لا تر اوسه ناچاپه د حافظ کتب خانې (مسجد روډ کوټه) د حاجي عزیزالرحمن څخه پروت دی . چي ما یې څو غزلي په خپل کتاب "د مرجانو لاړ" (۱۹۹۰ م) کي چاپ کړي دي . د جان محمد کاکړ کړوسي ملا سلطان شاه هم شاعر او پنځوس کاله دمخه لا ژوندی و .

اوس خو ژوب هم څکه دوه ځایه سو : پورتني ژوب ځانله د قلعه سیف الله ضلع سوه او شویز ژوب Lower (Zhob د ژوب په نامه بله ضلع ده . خو د دواړو ضلعو په درزنو وگړي پښتو شاعران دي او ځیني خو د دېوانو یا کتابو څښتنان دي .

زه د ۱۹۶۴ م څخه تر ۱۹۷۱ م پوري اووه کاله د ژوب چي پخوانی نوم یې فورټ سنډیمن و. په انټر کالج (منځني لېسه) کي لومړی د اردو او بیا د عربي ژبي لیکچرر و . دا زما د ځوانۍ شپې وې، زه سر تر پایه جوش عمل وم، د هغو شپو یادونه زما ذهني سرمایه ده .

په ۱۹۶۴ ع کي ما شېر شاه سور خپل کتاب پیل کی، کاکړي لندۍ مي ولیکلې او د "غروڅوکي" مي هم د کال تر پایه ولیکی . د عربي، فارسي، اسلامیات او سیاسیات ایم . ای گاني ما په دغو کلو کي وکړې، او د ۱۹۶۹ په تاریخي کال ما نه یوازي د "پښین د پښتو ودي د ټولني" تیره ووهله بلکي خپل څلرم کتاب "متخل" مي هم بشپړه کی .

د ژوب دا ځوانـان شـاعران چـي د ۱۹۸۵ وروسـته راپورته سوي دي، زیاتره ما نه پېژني، د ۱۹۹۰ م په لسیخه کي چي تعلیم عام سو او ذرائع ابلاغ (Mass Media) نړۍ سره سروې کړه او د مځکي تناوونه سره راوځکېده نو ژوب هم د پېړیو پېړیو د ادبي خوبه څه راویښ سو او د شاعرۍ ازانگې یې پورته سوې . کنې زه چي په ۱۹۷۱ م کي کوټې ته رابدل سوم یوازي د مولوي سخي داد بېنوا خوستي یو لیک راغلی و چي یو کتابگوټی یې راځخه غوښتی و، او په ۱۹۷۴ م کي چي په چکر ولاړم نو په یوه مشاعره کي یوازي د برملاخان برمول نوم ما په حیث د شاعر واورېدی، په ۱۹۸۵ م کي چي د آستري وار لپاره ژوب ته ولاړم نو یوازي یوه شپه مي په مسافرخانه کي تېره کړه او پر نیمه بنول له ولاړم، نو مي د ژوب شناخته خېل نه

وليدل . حال دا چې په ۱۹۶۸م او ۱۹۶۶م کې ما د کالج میګزین ژوب په دواړو ګڼو کې د پښتو نثر و نظم شیان چاپ کړي خو په ۱۹۹۵م کې راپور ته کېدونکي ږوبیان ما په بشپړه توګه نه پېژني او بله خوا ته ستر ګي اړوي او پر هر یوه یې د خضر راه ګمان راځي . یوازي شیخ صاحب خان مندوخېل خدای بخښلی او مرحوم کمال الدین مړانی زما په ادبي او علمي کار خبر وو ، د ۱۹۹۳ ـ ۲۶ مې د ایبلیچ د کلک یرغل له کبله زه اوس د اوږده سفر جوګه نه سوم پاته .

نو دا و چې د نوي کهول د پښتو شاعرانو لومړی تذکره د قلعه سیف الله د امیر محمد لیکوال د خوا شپږ کاله دمخه په ۱۹۹۸ کې راووته چې د یوویشتو کسانو حال و کلام و تصویر پکښې دي . په ۲۰۰۰م کې د رک ږوب د پښتنو شاعرانو غته ، بشپړه او ښایسته تذکره د آبشارونه د بهلول په نامه بشرمل ناصر او اوبزان مندوخېل را وایسته چې تقریباً درې سوه مخه ده . او د هر شاعر حال ، تصویر او د شعر نمونه پکښې ده . ټول شاعران ۸۵ یا ۸۷ دي ، چې مندوخېل لوون ، شېرانی ، خروټي ، کاکړ ، ناصر او نور لکه د کلاچې سرائیکي ژبانه دي ، خو د پښتو د مینې له کبله په دې کې اشعار وايي .

پر دې تذکرهٔ شعرا د دا ښاغلو سریځي او د بیاچې لیکلي دي ، لومړی سریځه د پښین د نامتو شاعر عبدالباري سیر ده ، چې لس مخه ده ، په پسې د محمود ایاز اته مخیځه سریځه هم خوندوره ده . بیا د بشرمل ناصر شپږ مخه سریځه او په پای کې د اوبزان مندوخېل دوه مخه د مننې خبري دي . کتاب د لاسي کتابت پر ځای په کمپوزنګ ډېر خوشخطه په پېښور کې چاپ سوی دی ، په دې کې درې څلور داسي دي چې خپلي شعري مجموعې یې چاپ کړي دي خو د کتاب یوه نیمګړتیا دا ده چې د سر تورو لاړ یعنې فهرست مضامین نه لري ، چې ډېر ضروري وو . د تذکرې انداز د ستاینې وړ دی ، تنقید لږ دی .

د مغل کوټ اوسېدونکی کمال الدین شېرانی ۱۹۱۷ ع ۲۰۰۰ د نادرو لغاتو د لټون سره سره ښه شاعر و ، چې پنځه مسودې یې ناچاپه پرتې دي . په سنه ۱۹۴۳م کې یې د پنجاب یونیورسټي څخه پښتو کړې وه ، غالباً په ۱۹۹۱ع کې سره د دوو ملګرو د یوه امتحان د سپارښت لپاره زما کره راغلی او مېلمه سوی و ، زما د ږوب د هستوګي په کلو کې به یې په ورین تندي روغبر و حال احوال راسره کاوی ، د ۱۹۹۲م د لورلایي په سیمینار کې هم دوې ورځې زه و دی سره یو ځای و . نو ما د سوچه پښتو لغاتو د کتاب فوټو سټیټ څني غوښتی و خو د ده ځواب نه راغی ، ما ویل زه به یې د ده د نامه سره چاپ کړم . د شعر نمونه یې :

زه سربازي کـــــړم د دنیا د نمرودانو سره
د میني اور کي سات تېری کړمه ګلانو سره

له توري تاریـکي مي و رڼا ته نه پرېږدي
ظالم مي هم وهي هم مي ژړا ته نه پرېږدي

د مرحوم په شاعري کي د وزن و بحر کمبوت و زیاتوب موندېږي .

شیخ صاحب خان مندوخېل مرحوم ۱۹۲۲م ۲۰۰۳م به زما سره ډېر شناخت و پېرزوینه کوله ، مرحوم خپل د پنځو ژبو د متلو کتاب د کوټې پښتو اکېډمي ته د چاپ له پاره دوه کاله دمخه راوړی و خو هغو لکه چې نه کی ور چاپ . په یو زمانه کي یې زما د یو خاکې له امله زړه را څخه ازار سوی و چې وروسته مي خوشي نه کی او خپل څو کتابونه مي ور ولېږل ، د ده ډېر هم د لغاتو او متلو د تحقیق و ، د شیخ په کلام کي هم د وزن څه نیمګړتیاوي سته .

د کلام نمونه :

د شیخ زړه او قلم دواړه مینه بار دي
کله سر وي په نغـــــــمو کله ژړا

د نري حال :

د لاړ وهونکي خو خطره وي له عســـــــکره څخه
چي عسکر خپله لاړ وهي خو ناپرســــــان دي خلکو
ناحـــــــــــــقه ویني بهوئ د مـظلومانو ولې؟
د چرګ تر خون نن ډېر اسان خون د انسان دي خلکو
زهد و تقوی د زاهدانو کړه ډالــــــــــــرو مجروح
یو خوا ته زهد بل خوا د سیم و زر باران دي خلــکو
د دې اسرار ته دانایان د زمانې حــــــــیران دي
که څوک عالم دی که فاضل که شیخ ، خان دي خلکو

حافظ میرک افکاري ولد بازخان موسی خېل (زوکړه ۱۹۳۳م) په ۱۹۷۵ کې خپل دېوان "سراج العشق دُر خوبان" په خپل کتابت کي چاپ کړی او ماته یې هم یوه دانه راکړې و . ډېر ښه روغبړ به یې راسره کاوه ، د کلام نمونه :

تل سزا راکوي په خپل غــم کي
هیڅ انصاف نه لري زما په نم کي

د ده په شعر کي هم د وزن کمبوت و زیاتوب سته .

برملا خان برمول مندوخېل د حاجي محمدخان زوی په ۱۹۴۳ کي زوکړی دی، دېوان يې د "سپين پښتون" په نامه چاپ دی، برمول عوامي شاعر دی، د کلام نمونه يې:

چي يې توره تر ملا نه وي مشر نه دی
پر نبوي کاله ژوندون معتبر نه دی
چي گذر د ښايستو نه باندي کېږي
که چينه ده که ابشار دی گودر نه دی
چي د علم خزانه ورسره نه وي
هغه هيڅکله ابدال قلندر نه دی

ملک سلطان محمد ايوبزی د ملک دولت خان ايوب زي زوی په ۱۹۲۵ م پيدا او په اوسنيو کلو کي په حق رسېدلی دی، د علم شوقي او پښتون شاعر و. د ده کلام د سوهېلي پښتونخوا په لومړی تذکره د "د کسي گلان" کي راغلی دی، چي د هغه ځايه ځخه سيال کاکړ په خپل کتاب "د کسي د لمني پښتانه ليکوال" کي را اخيستي دي او دلته هم هغه نمونه راوړل سوې ده. توره درگه د ده کلي دی. د ده کشران ورونه محمدخان ماسټر او محمدنواز په سنه ۱۹۶۴ او ۱۹۶۷ کي زما شاگردان وه.

عاشقان دي کړولي دي کـه نه دي
پر سره اور دي اړولي دي کـه نه دي
مخامخ چي راته نه گوري څه چـل دی
بانوگان دي پړولي دي کـه نه دي
چي سلطان ته دي ويل راسه اختر دی
اوس دي غټ پېتې ترلي دي که نه دي

موسی الدين بيهوش شيراني په ۱۹۷۲ کي يوه شعري مجموعه "اوښکي او دردونه" چاپ کړې ده. په اردو کي يې "انسان اور پيسه" ناچاپه دی، عالم سړی دی، د شعر نمونه يې

آغوستي مي جامې د سپين کفن دي که راځې

حافظ نورالحق ناخج د خيساره د ښيغاله مردانزی، سنځرخېل کاکړ شاعر دی، نمونه د کلام:

رسوايي ده پرېشاني ده شـاعري
د خپل سر، سرگرداني ده شـاعري
د زړه حال چي و پردو خـپلو ته وايي
ناواکي ده بې صبري ده شـاعري
علم عقل، عشق چي تول ورسره نه وي
د هغو عبث خواري ده شـاعري

مقبول احمد ناصر خواجه خېل سرائيکي، زوکړه ۱۹۵۸ م. په اردو او پښتو کي شاعري کوي. شل کاله دمخه يې د لورالائي ځخه ما له دوه درې اردو خطونه رالېږلي او د اصلاح خواهش يې ځرگند کړی و، خطونه يې زما په اردو کتاب ناچاپه (قاصد کي تی آی) کي شامل دي، د کلام نمونه:

**مناجات**

گناه کار يم خطا کار يم ستا په درکـي
بېله شکه سزاوار يم ستا په درکـي
خو بنده يم، ته مي خدای يې لويه خدايه
د رحمت په انتظار يم ستا په درکي
شفاعت د محمد ته رانصيب کړې
سوال قبول کړه گرفتار يم ستا په درکي
د ناصر گناه به څه وي په درياب کي
د رحمت په انتظار يم ستا په درکي

مولوي سخي داد ښېنوا خوستی په ۱۹۵۰ کي د کمال خوستي کره د ږوب د کوټي په تاريخي سيمه کي د دېوال نامي خای ځخه د لمر خاته و خواته په کاکړ عمرزو کي پيدا سوی دی، د سکول تر تعليم وروسته يې ديني تحصيلات په ږوب، پنجاب او کراچي کي پای ته رسولي دي، د ږوب د مسجد صديق اکبر خطيب دی. او د "تل تازه گلان" په نامه يې په سنه ۲۰۰۰ م کي د خواني د شاعرۍ مجموعه چاپ کړې او ما له يې رالېږلې ده، د کلام نمونه:

دا د يار پر زنه خال دی که شين داغ دی په پياله کي
دا پر سره بارخو عرق دی که شبنم دی په لاله کي
دا بانه دي چي گزار کړي په سينه د عاشق باندي
او که غشي د تارتار دي چي خرڅېږي په ډاله کي
نه پوهېږم چي دا سرې خونخواري سترگي د نگار دي
او که دا چشمان د باز دي د اشنای په کاږغاله کي
دغه زلفي د اشنا دي چي پر مخ يې تاو راتاو سوې
که مارونه دي چي گرزي د مرمر په دېواله کي
که ته زره د شاعرانو، تشبيهات او لوړ خيال غواړي
ښېنوا لږ نظر وکړه د حميد په رساله کي

**تصور**

د عنقا او د بلا هيڅ وجود نسته
دا شهرت يې سو عيان په تصور
که راکښ په شپو و شپو سپوږمی ته خيژي
ښېنوا خيژي يو آن په تصور

الله داد روښان مندوخېل پني چي ايم . ايس سي، ايل . ايل جي دی، د جمال الدين زوی د ږوبه ځخه پنځه دېرش ميله و قطب ته پرلي د گستوي سيمي د سپېره غره خو په ږوب ښار کي په ۱۹۶۷ کي زوکړی دی، نن سبا په کراچي کي وکالت کوي. د کلام نمونه:

اوس خو ښه يم لا تر ياره پوري ورسم
پس له مرگه به پر کومه صحرا سر سم
د جهان پر کوڅو تېر سوم بيا راتېر سوم
په لحد کي به بيا خاوري د کوم در سم
د سهيل غوندي ځرگند سوم په آسمان کي
د شبنم په څېر بې ورک په يوه سحر سم
لکه لمر هسي اوس دلته راښکاره سوم
زه روښان به لکه ستوری هسي تر سم

ژباړونکی محب الله اسحاقي
دوولسم څپرکی ـ دوهمه برخه

# حقوق او دندې

## د حقوقو وېش

حقوق څو ډول لري ، چې لومړی يې د يوې خاکې په ډول وړاندې کوو، او وروسته يې وضاحت کوو :

حقوق
- سياسي يا قانوني
  - آئيني حقوق يا سياسي حقوق
  - انفرادي حقوق يا مخصوص حقوق
    - مدني حقوق
      - د ژوند حق
      - د ملکيت حق
      - د آزادۍ حق
      - د عبادت حق
      - د نظر څرګندولو حق
      - د غونډې کولو حق
      - د تړون حق
      - د تعليم حق
      - د واده کولو حق
      - او نور حقوق
    - سياسي حقوق
      - د رايي ورکولو حق
      - د دندې حق
      - د عرضداشت حق
- ټولنيز
- اخلاقي

**د حقوقو درې ډولونه**

حقوق د متن په اساس پر درې ډوله وېشل سوي دي ، يعني ټولنيز، اخلاقي او سياسي يا قانوني حقوق .

**ټولنيز حقوق**

ټولنيز حقوق عبارت له هغه حقوقو څخه دي چې په عام ډول په ټولنه کې د افرادو په برخه وي چې د ژوند کولو د طرز او دود په اړه وي او د عامه نظر په مرسته تر لاسه کېدای سي ، مګر څنګه چې عامه نظر بدلېدونکي دي نو څکه دا حقوق کومه ځانګړې بڼه نه لري .

اخلاقي حقوق :

اخلاقي حقوق عبارت له هغه اصولي حقوقو څخه دي چې د فرد ضمير او وجدان قبول کړي وي . دا حقوق د افرادو د حق او انصاف پر احساساتو بانـدي ولاړ دي او د انسان د عملي ژوند په اړه دي . دا د فرد د راسته درسته په اړه لارښوونه کوي . د مثال په ډول د سپين ږيري پلار دا حق دی چې اولاد يې ساتنه او پالنه وکړي او د

اولاد اخلاقي دنده ده چي د خپلو لوېدلو والدينو څخه پاملرنه وکړي . مګر دا حق او دنده اخلاقي ده په قانوني توګه دا نافذ ېدای نه سي . خو بيا هم اخلاقي حقوق او دندي د قانوني حقوقو او دندو څخه اخذ سوي دي .

**سياسي يا قانوني حقوق**

سياسي يا قانوني حقوق عبارت له داسي امتيازاتو او اختياراتو څخه دي چي دولت د قانون په ذريعه و افرادو يا ډلو يا ادارو په وړاندي سپارلي وي او دولت يې جبراً ساتنه کوي . که کوم حق تلف يا غصب سي نو دولت د خپلي محکمې او نظم ساتنکو ادارو غاصب ته سزا ورکوي او حقدار ته د هغه حق ورکوي . نو په دې توګه سياسي يا قانوني حقوق اخلاقي او ټولنيزو حقوقو په نسبت واضح او حقيقي شي دی . دا د نورو افرادو د نظر يا ضمير او وجدان له کبله نه وي چي کوم وخت هم بدلېدای سي . قانوني حقوق صرف د قانون په بدلولو سره ختمېدای سي چي دا د دولت په خوښه کېدای سي . سياسي يا قانوني حقوق دوه ډوله دي : مدني حقوق او سياسي حقوقو . عموماً سياسي حقوقو انفرادي حقوق بلل کيږي ، ځکه چي هغه بايد و فرد ته ورسيږي . که څه هم په کوم ځانګړي دولت کي په کوم ځانګړي مهال دغه انفرادي حقوق په واقعي توګه و خلکو ته نه وي ورکړه سوي . ليکن که په کوم حقيقي دولت کي افرادو ته په واقعي ډول قانوناً حقوق ورکړه سوي وي نو داسي حقوق مخصوص يا واقعي حقوق بلل کيږي . له دغه حقوقو څخه ځيني مهم حقوق په آئين يا اساسي قانون کي شامل کړه سوي وي چي و هغو ته آئيني يا اساسي حقوق ويل کيږي .

**انفرادي حقوق**

مخصوص حقوق عبارت له هغه انفرادي حقوقو څخه دي چي قانون حقيقتاً و افرادو ته ورکړي يا يې ځانګړي کړي وي . د دې شمېره په هر دولت کي بېله وي او په دې کي وخت په وخت کمي يا زياتي هم راځي . موږ به دلته لاندي هغه انفرادي يا ذاتي يا ځانګړي حقوق ذکر کړو چي عموماً د ټولو نويو ديموکراتيکو دولتونو و افرادو ته ورکړه سوي وي . دا دوه ډوله دي چي يو يې مدني او بل سياسي حقوق دي .

**مدني حقوق**

**د ژوند حق**

دا هغه حق دی چي د دې له مخې هر فرد خپل ژوند او جسم محفوظ او سلامت ساتلو حق لري . دا اساسي حق دی ، ځکه چي د ځان د ساتلو او بقا پر ته د فرد وجود هم باقي نه سي پاتېدای ، د دې حق مطلب دا دی چي شخص ژوند يا ځان ته هيڅ ډول ضرر يا تاوان ونه رسول سي . که د فرد ژوند په خطره کي ولوېږي نو د هغه څخه ساتنه هم کولای سي . چي د هغه لپاره هغه پر خپل دښمن داسي وار چي په هغه سره د ده ژوند ژغورل کېدای سي کولای سي . و دې ته د ځان څخه د دفاع حق ويل کيږي . دا حق يو بل مطلب هم لري چي د هر فرد ژوند او ځان تر هغه وخته پوري خوندي دی تر څو پوري چي هغه کوم جرم ونه کړي ، او په پرانستې محکمه کي د قانون مطابق جرم پر ثابت نه سي . د دې مطلب دا هم دی چي يو انسان خپل ژوند په خپله نه سي ختمولای . يعني ځان وژنه نه سي کولای ، ځکه چي ځان وژنه هم قانوناً جرم دی . خو بيا هم دولت د خپلي ساتني او دفاع لپاره اتباعو ته د جنګ او يرغل په صورت کي د خپل ژوند څخه د تېرېدو او قرباني ورکولو غوښتنه کولای سي .

**د ملکيت حق**

د ملکيت حق عبارت د ثروت پيدا کولو يا عايد تر لاسه کولو يا د خپل ثروت او عايد څخه چي وغواړي خرڅولو حق دی . دا ثروت يا عايد د تجارت ، زراعت ، صنعت يا په نورو مشروع لارو باندي تر لاسه کېدای سي او کوم ثروت يا عايد چي لاسته راغلی وي څنګه چي زړه وغواړي هم هغسي مصرف سي خو چي د بل چا و مال او ژوند ته تاوان ونه رسوي . د ملکيت په حق کي دا هم شامل دی چي څښتن خپل ثروت يا عايد ضايع کړي ، بې ځايه يې خرڅ کړي ، په سوغات کي يې ورکړي ، حبه يې کړي ، ورثې ته يې ورکړي يا يې د اوسېدو لپاره راوګرځوي لا خو يې خرڅ کړي . د دې بشپړ اختيار څخه د ملکيت حق منځ ته راځي . او په دې توګه تر لاسه سوی ثروت ته ذاتي ملکيت يا جايداد ويل کيږي . پر دې باندي مالک بشپړ تصرف لري خو بيا هم دا حق بشپړ نه دی ځکه چي په انساني تاريخ کي پر دې حق باندي څه ناڅه محدوديتونه لګېدلي وه . په اوسني عصر کي د ذاتي او شخصي ملکيت حق تر زياته حده پوري بشپړ ګڼل کيږي . خو پر دې باندي هم دوه محدوديتونه لګېدلي دي . لومړی

دا چې هیڅوک خپل ملکیت داسي نه سي استعمالولای چې د بل چا و ژوند او مال ته تاوان ورسوي . دوهم محدودیت یې دا دی چې په استراري حالاتو مثلاً جنګ او نورو کې حکومت د کوم شخص ذاتي یا شخصي ملکیت بالمعاوضه یا بلا معاوضه په خپل واک کې اخیستلای سي . و دې ته د ملکي ګټو یا لوړ حق ویل کیږي .

د دې پر ته په اوسني عصر کي سوشلزم د شخصي ملکیت تصور په بنسټیز ډول چیلنج کړی . سوشلستانو (سوشلستانو او کمونستانو دواړه) د شخصي ملکیت پر ځای د ټولنیز یا ملي ملکیت تصور وړاندي کړی . دوی وایي د شخصي ملکیت حق د اقتصادي نامساوات د ثروت غیر عادلانه وېش او نوري نیمګړ تیاوي پیدا کړي دي . د دې بر عکس د شخصي ملکیت پلویان وایي چې په شخصي ملکیت سره په انسان کي د کار او کوښښ ماده او شوق پیدا کیږي . د جایداد په خاوند کي د ثروت په ساتنه سره د انساني خواخوږی او سخاوت غوندي نېک احساسات پیدا کیږي . د ثروت د تر لاسه کولو لپاره په مندو ترنډو سره د فرد کردار او شخصیت پوخ او لوړیږي . او هغه خلک دولت تر لاسه کوي چې د هغه اهل وي . د ملي یا دولتي ملکیت په صورت کي ناکاره ، نا اهل او بې پروا خلک د څو خوار یکښو او محتاجو افرادو پر سر ونو باندي ولاړ وي . د دې بر عکس د سوشلزم پلویان د شخصي ملکیت څخه په پیدا سوي نیمګړ تیاوو کي مثلاً غربت ، خود خواهي ، حرص او دښمني ګټې یادونه کوي او د غربت له کبله د غریبي طبقې د کردار او شخصیت د تباه کېدو و خواته ګوته نیسي . خو په هر حال د شخصي ملکیت مسئلې نن په دنیا کي دوه بېلابېل نظامونه سرمایه داري او کمونیزم پیدا کړي دي .

**د آزادۍ او آزادانه نقل و حرکت حق**

د آزادي حق عبارت له دې څخه دی چې هره تبعه چې هر ځای وغواړي بېله کوم بندیز څخه ولاړ سي دا حق په اصل کي د ازادانه نقل و حرکت حق دی چې د هغه مطابق هره تبعه په خپل هیواد او له هغه څخه دباندي چې هر ځای وغواړي ولاړ سي . په خپل هیواد کي پر هر ځای چې وي میشتېدلای سي . کاروبار یا دنده اجراء کولای سي . د آزادۍ د حق دوهمه معنا دا ده چې هیڅوک او د حکومت کوم حاکم هیڅوک د قانون او محکمې د حکم پرته په خپل توقیف یا حبس کي نه سي ساتلای .

که کوم حاکم یو څوک ونیسي یا یې په خپل توقیف کي وساتي خو د هغه سره د دې لپاره کوم قانوني جواز موجود نه وي نو د هغه په غوښتنه به له محکمې د خوا آزاد کړل سي . و دې ته د قاضي په وړاندي د بندي د راوستلو حکم څو د هغه حبس علت څر ګند سي ویل کیږي .

د دې له مخي تورن په محکمه کي په وړاندي کولو سره د قانون ماتوني ثبوت وړاندي کیږي . که داسي ثبوت نه وي نو محکمه د هغه د آزادولو فیصله اجراء کوي . په دې ډول د دغي فیصلې په واسطه د تبعې د آزادۍ حق خوندي کیږي .

**د تړون حق**

د تړون مطلب دا دی چې د دوو فریقو له خوا د یوه اړخ په ګټه تفاهم کول دي . چې د هغه له رویه پر دواړو فرقینو باندي یو څه مسیولیتونه لګول کیږي . مثلاً دواړه خواوي باید د تړون شرایط په پوره د یانتداره واوسي . د تړون حق عبارت له دې څخه دی چې دولت او قانون مطابق هره تبعه د بل چا یا ډلي سره د منل سوو شرایطو مطابق کاروبار وکړي چې په هغه و دواړو خواوو ته ګټه ورسیږي . که کوم یو فریق د تړون شرایط نه پوره کوي نو یې قانون جبراً د هغه په پوره کولو او مراعتولو باندي مجبور کولای سي یا د هغه معاوضه ادا کړي . که د تړون د بشپړولو احترام نه کیږي نو د ژوندانه ټول اقتصادي نظام به سره وپاشل سي . خو قانون د داسي تړونو اجازه نه ورکوي چې په بداخلاقي او په خطرناکو افعالو پوري اړه لري .

**د کورني ژوند حق**

اوس به د یو څو داسي حقوقو یادونه وکړو چې د فرد په ذاتي او شخصي ژوند پوري اړه لري . په دې کي د کورنۍ درلودلو حق دی . دا حق عبارت له دې څخه دی چې هره تبعه دا حق لري چې هغه واده وکړي او خپله کورنۍ جوړه کړي . په دې حق کي نارینه او ښځینه دواړه شامل دي . چې له دې لحاظه مېړمن پر مېړه او مېړه پر مېړمن باندي حق لري . د کورنۍ په حق کي طلاق ، ډوډۍ او نفقه هم شامل دي او والدین پر خپل اولاد او اولاد پر خپلو والدینو باندي حق هم شامل دی . په اصل کي دا حق د نارینه او ښځي پر مساوات ، آزادۍ او حق او انصاف باندي ولاړ دي . نو کورنۍ او ټولنه دواړه خوشحاله ، سوکاله او

پر مختګ کوي . له بده مرغه په وروسته پاته ټولنو کي د کورني درلودلو حق ټول یا ډېر امتیازات و نارینه و ته ور په برخه وي، داسي کورني او ټولنه پر غیر انسانیت او نا انصافي بانـدي ولاړه وي، او د هیواد، ملت او دولت د پـرمختګ، خوشحالي او سو کالي په لار کي خنډ وي .

**د تعلیم حق**

په شخصي حقوقو کي دوهم مهم حق د تعلیم دی . چي د هغه مطابق هره تبعه دا حق لري چي تعلیم تر لاسه کړي . دا حق پر والدینو باندي د مسئولیت په توګه عائد دی . ځکه چي هغه تبعه چي حق ور کول کیږي عموماً کم سن کوچني وي . خو ټولنه او دولت به والدین او سرپرستان پـه دې مکلفه وي چي هغه و خپل اولاد یا متعلقینو ته تعلیم ور کړي .

په اصل کي د نن ورځي د دیموکراتیک نظامونو ټول دار و مدار پر تعلیم یافته، باشعور، مستعد او فاعلي اتباعو باندي ولاړ دی . تر څو پوري چي هغه تعلیم او علم ونه لري هغه خپل ذاتي او شخصي کار و بار پر تـه د دولت او ټولني مسئولیتونه هم ځنګه چي ښایي هغسي نه سي تر سره کولای . نو ځکه خو یوه مفکر ویلي دي : "زموږ بـادارانو تـه تعلیم ورکړئ" . یعني خلکـو تـه تعلیم ور کړئ، د تعلیم ارزښت تل محسوسه کیږي . لاسکي وایي : تابعیت عبارت د تبعي په خپل تعلیم یافته عقل او فکر باندي د عامه مفاد خدمت کول دي . د تعلیم د دې اهمیت پر اساس نن ورځ هر دولت د هر کوچني لپاره تعلیم لازمي بللی دی .

**د عبادت د ضمیر د آزادۍ حق**

د دې حق ځخه عبارت هر انسان تـه د خپل ضمیر او مـذهب مطابق د عبادت کولو او عقیده درلودلو حق دی . په مذهبي عقایدو او عبادت کي و ټولو ته د خپل خپل مذهب مطابق آزادي حاصله ده . هیڅوک د چا په مذهب او عقایدو کي په زوره باندي بدلون یا جبر نه سي کولای . دا اسلامي اصول دي چي : (لا اکراه فی الدین (په دین کي جبر نسته) .

**مدني آزادي**

اوس به د یو څو داسي حقوقو ذکر وکړو چي انسان د شخصي ژوند پر ځای د هغه د مدني یا سیاسي ژوند سره اړیکي لري . وهغو ته مدني حقوق یا آزادي ویل کیږي . پـه هغـو کي د نظر څرګندولو، د غونډي کولو او د وینا د آزادۍ حقوق شامل دي . دا حقوق او آزادۍ پـه اصل کـي پـه اوسني جمهوریت کي بنیادي حیثیت لري او د زیاتو ملکونـو پـه اساسـي قوانینـو کـي د بنیـادي حقوقـو پـه توګـه شـامل دي . دا آزادی د دیموکراسي روح بلل کیږي او د فرد ذاتي، مدني اجتماعي او سیاسي ژوند لپاره بې حده ضروري دي .

**د نظر څرګندولو د آزادۍ حق**

دا حق عبارت لـه دې ځخـه دی چـي تبعـه د حکومـت او مـداخلت یـا پـوښتني ګروېرني پر ته په آزادانه توګه د فکر کولو، د افکارو او نظر څرګندولو حق دی . د دې مطلب دا دی چي تبعي تـه د اخبـارونو، کتـابونو، مجلو یـا ویناوو پـه واسطه خپل نظر څرګنـدولو موقع ورکړه سي او حکومت پـر دغـه وسـایلو باندي هیڅ ډول بنـدیز او محدودیت ونه لري . د دې معنا دا ده چي اخبارونه باید آزادي ولري چي د مطبوعاتو آزادي ور ته ویل کیږي او پر مطبوعاتو باندي هیڅ ډول سانسور نه وي لګېدلی چي پـه هغـه سره د اخبارو خبرونـه، تبصرو او نورو باندي هیڅ بندیز نه وي . د نظر د څرګنـدولو پـه آزادۍ بانـدي دیموکراسـي. دیموکراسـي بلـل کیږي . ځکه چي د دیموکرات نظام د اتباعو په نظر او خوښه چلیږي . د دې فیصلي د خلکـو پـه بحث و مباحثو او ګـډو نظر یـاتو بانـدي کیـږي . خـو دا فیصلي او مباحثي هله دیموکراتـه بلل کېدای چي هره تبعه په آزادانه توګه پـه سیاسـي مسئلو او معـاملو بانـدي د غـور و عـوض کولـو او د خپـل نظـر څرګندولو مواقع میسره وي خو بیا هم پر دغـه حـق بانـدي ځـه محدودیتونه لګېدلي دي . مثلاً د نظر د څرګندولو آزادي چاته د غلط تور او تهمت اجازه نه ورکوي . پر دې سربېره په دې حق سره کوم څـوک د فحش خیـالونو او حرکاتو اجازه نـه لـري . همداسي پر فحش او اخلاقي ورانوونکي مطبوعـه موادو هم بندیز سته .

**د غونډېدو د آزادۍ حق**

دا حق د تیرو دوو حقوقو سره تړلی دی . د دې حق ځخه عبارت د هري تبعې په آزادانه توګه د نورو داسي اتباعو سره د لیدنو کتنو، غونډېدو او منظمـه ډلـو یـا تنظیمونو جوړولو حق دی چي په هغه سره دوی مشتر که مقاصد تر لاسه کړي . پـه اصل کي د نظر څرګندوني او وینا حق بې معنا دی که چیرې هم فکره اتباع د خپل مشترکو افکارو او مقاصدو د تر لاسه کولو لپاره د لیدنو کتنو، غونډېدو او ډلي ټپلي جوړولو حق ونه لري . خو دغه ډلي باید پـه سـوله ایـز ډول خپلـي دنـدي سـرته ورسوي . دغه ډلي سیاسي ګوندونه او نور دي . پـر دې حـق بانـدي هـم څـو محدودیتونه وضع سوي دي . مثلاً کوم داسي ګونـد یـا غونـډه او ډلـه نـه سـي جوړ ېدلای چـي غیـر قـانوني وي یـا و امنیـت تـه د خلـل پېښـولو اندېښنـه ځني موجوده وي او نه هم داسي ډلي او ګوندونه جوړ ېدای سي چي هدف یې بداخلاقي او ناروا وي .

نور بیا . . .

# مرغلري

( زوړ ادب )

خوښونه
اداره

## تاریخي مشاعره

د پښتنو پخوانو شاعرانو تر منځ یوه ادبي مسابقه یا خوږه مشاعره واقع سوې ده، چې ډیرو ادباوو برخه پکښې اخیستې ده:

د پښتو د ادب پلار خوشحال خان خټک یوه خوږه بدله لري، چې مطلع یې داسې ده:

لکه زه په یار مین یم، بل به نه وي مین هسې
لکه زه پسې غمجن یم بل به نه وي غمجن هسې

د پښتو پلار د دې بدلې په مقطع کې داسې وايي:

چې "خوشحال" خټک یې وايي په پښتو ژبه خبري
په پارسي ژبه به نه وي کــه پوهېږې سخن هسې

کندهار مجله پخپلو پاڼو کې د دې مشاعرې ټولې په لاس راغلې غزلې خپروي، هیله ده راسره ویې لولئ

عبدالقادر خټک

### غزل

لکه زه په یار مفتون یم، بل به نه وي مفتون هسې
لکه زه پسې محزون یم، بل به نه وي محزون هسې
پرون غېږ په غېږ له یاره نن تر منځ سوه هیوادونه
دا انصاف د زمانې دی چې نن هسې پرون هسې
په کاته د سترګو زړه وړي په خبرو ځنې صبر
د جهان په مخ به نه وي سحر هسې افسون هسې
په قیامت به هم په هوښ د محبت لېونی نسې
چې به روغ سم بېله لید نه زما نه دی جنون هسې
خط پر مخ د دلبر راغی شور په زړه د بازار ګډ سو
چې د حسن پاچا لېږدي د دې خط دی مضمون هسې
د ژوندون فایده دا ده چې لیدن کوي د ښکلیو
چې یې دا فایده نه وي مرګ بهتر تر ژوندون هسې
آئینه د خپل زنګون و ماته جام جهان نما سوه
ځکه سر لرم تل اینبی د فکرت پر زنګون هسې
د دنیا په دښمنۍ کې عیسی لاړ سو تر آسمانه
په دوستۍ کې یې لا ځي تحت الثری ته قارون هسې
دا غزل په پښتو ژبه چې بیان عبدالقادر کړه
دروغجن یم که بې خانه وايي بل یو پښتون هسې

سکندر خان خټک

### غزل

لکه زړه چې زما وسو ستا په غم کې بېلتون هسې
مه سه وریت د جدایی په اور کې بل یو لړمون هسې
خط په مخ د ښایسته وو د قضا نښې هم داسې
هر کمال زوال پذیر دی د دې خط دی مضمون هسې
لکه زده دی ستا د سترګو د جهان په مخ دلبر
نه دی هسې چا لیدلی جنون هسې افسون هسې
لکه ما د یار په غم کې وجود وسو بیا ژوندی سوم
هیڅ پتنګ موندلی نه دی له څراغه ژوندون هسې
څه ساعت به د دنیا وي چې مې هسک ستا په غمونو
ازلې پرېووت محبوبې څوک به راوړي شګون هسې
پرون سور په انبالې ته نن په کټ د جنازې ځې
دا دنیا ده دا یې دود دی چې نن هسې پرون هسې
چې تا وینې ګل ته ګوري اوبه وینې تیمم کړي
په همه مذهب مردود دی که څوک کاندي تېبون هسې
لکه موج په بېلتانه کې ځما زړه وهي له سترګو
په دا موج کله بهیږي جیحون هسې سیحون هسې
ستا ځواب عبدالقادره په دارنګ صدر خوشال کړه
څو بې خانه زه ویل کړم بل به نه کا پښتون هسې

محمدي صاحبزاده

## غزل

دا سور اور دی او که نور دی او که تاو د بېلتون هسې
لکه وړې چې مې وریت کړ په تناکو لړمون هسې
سپلنې ځان سره لمبه کړ چې ترق وچاود په لوګي کې
زیست جدا له یاره څه رنګ، څه په کار دی ژوندون هسې
نه یوازې لاله ګل دی ډوب د سرو وینو په جام کې
ستا د غم وژلې واړه ځې ښخېږي ګلګون هسې
په لپندو د کړو ورځو د ښو تېرو شتیو
هغه یار مې زړه غلبېل کړ چې یې ونیو زنګون هسې
ستا د سرو شونډو په نوم اخستنه عقل له ما لاړ سو
دا مستي نه د شراب سته او نه کیف د معجون هسې
که پاچا د وخت اقلیم وي د آسمان دوره یې خوارکا
لکه ما غوندې به نه وي سر د غم په زنګون هسې
نه یې حسن ستا په شان و نه یې عشق زیات و له مانه
د لیلی کیسه که سته ده په عالم د مجنون هسې
خط په مخ د نګار راغی ښایست خپل بار ولېښ لاړ سو
اوس یې څه په ملا لولم د دې خط دی مضمون هسې
په لمبه د آه ونه سو شین په هغه شان مدام دی
ستا د غم بوټی په زړه کې چې زما سو زرغون هسې
ومړ ستا په بېلتانه کې د دیدن په ارمان ګوره
"محمدي" غوندې لا بویه چې پیدا سو پښتون هسې

عثمان

## غزل

بې د خپل آشنا د وصله تېرومه ژوندون هسې
چې به نه وي په دنیا کې بل محزون او زبون هسې
له اوله څو پیدا یم واړه سر په واویلا یم
ترو به څه و چاته وایم چې نن هسې پرون هسې
ته مې تن جامه مه ګوره لړمون ډک لرم له اوره
د فانوس په دود اې ورورو کړم د ترکو بېلتون هسې
ستا له ډېره جوره ملا مې ماته سوله غبرګه
بل به نه وي لکه زه یم زوړند سر په زنګون هسې
د آشنا له ډېره غمه سومه سر په غره په سمه
هیڅوک مه سه لکه یمه بل بې صبر و سکون هسې
حریف نه وینې ختکه لافې ډېرې وهې ځکه
چې به هیڅ پښتون ونه کا بل غزل په مضمون هسې
چې قلم مې په سیاهي سو په کاغذ باندې راهي سو
په "عثمان" دې آفرین وي چې پیدا سو پښتون هسې

غفور

## غزل

لکه قد د یار موزون دی بل به نه وي موزون هسې
که یې درست جهان تمثیل کړم صد هزار دی افسون هسې
یو زه څه چې څوک مین سي معشوقې ترې استغنا کا
درست جهان په حال آګاه دی لیلی هسې مجنون هسې
په صفحه د ښکلي مخ یې خط د ویتو دا تقریر کا
چې شاه قتل د عالم کا د دې خط دی مضمون هسې
عقل اسباب د نام و ننګ کا مینه دواړه چنګ په چنګ کا
تحیر په دا پتنګ کا عقل هسې جنون هسې
ناصح وایې صبر ډېر کړه. غم اندوه له دله هېر کړه
خدای دی هم زما په څېر کړه چې پرې تل وي شبخون هسې
بېرون تر تازه لیده سم. درون پر د زړه په وینو
د یار غم برګ حنا کړم درون هسې بېرون هسې
راسه ګوره زما لاله! کمال نه دی بې زواله
د دلبر له خط و خاله رامعلوم سو مضمون هسې
وکړه تا ګوره ختکه! دا خبره ډېره سپکه
چې به بل پښتون ونه کا دا ځواب په قانون هسې
که منصف عبدالقادر سي. د "غفور" په قال ناظر سي
امید دی چې پرې شاکر سي هر یو حرف دی موزون هسې

اشرف

## غزل

د آشنا له تازه خطه رامعلوم سو مضمون هسې
د وصال دولت که تېر سو هم به تېر سي بېلتون هسې
عشق رهبر د عاشقانو د آشنا پر لور یې بیایي
لکه عشق دی بل به نه وي په دا لار رهنمون هسې
که ژوندون دی خو هغه دی چې د یار په یاد تېرېږي
چې بې یاده د یار درومي پکار نه دی ژوندون هسې
په وشتو د رویو سترګو هر ګذار یې رسا لګي
چې هیچرې خطا نه ځي دلبر ونیو زنګون هسې
بې سوزنه د مژګانو د زلفینو له تارونو
په آسان په رفو نه سي زړه مې چاود دی درون هسې
د ژوندون امید مې نسته چې یو څو ګاهه وپایم
که همېش هسې ګردش خوري لکه نن دی ګردون هسې
څوک یې شاه د درست جهان کړ څوک ګدای کچکول په لاس کې
د هر چا برخه جدا ده موسی هسې قارون هسې
لکه باز واخلي کوتره په منګل هسې ستا سترګو
زړه زما یې له تن یووړ هم یې عقل سکون هسې
چې تا وې عبدالقادره! کوم پښتون به بې خوشحاله
دا شان وایي "اشرف" ووې خدای پیدا کړ پښتون هسې

معزالله

## غزل

لېونی کړمه عالم ته ستا د سترګو افسون هسي
خدای زما تر لاسه راکړ دا دولت د جنون هسي
جور جفا له اوسه نه دی د خوبانو پر عشاقو
له ازله مقرر دی د دې قوم ترون هسي
غنچه غرقه سوه په وینو چي یې فکر د دهن کړ
له قامته یې سوه سرو لکه بېد مجنون هسي
که و مخ و ته یې ګورې یوه شمع کافوري ده
په کرو ورځو یې ځیر سه د لوګي دی نمون هسي
د عالم وسعت که ګورې تر دوه ګامه زیاتي نه دی
لکه راغلې په پوښتنه ترې به ووځې بېرون هسي
ثمره د نېک خويي ده چي عیسی په آسمان وخوت
لا به ځي له بده خويه مخ په کښته قارون هسي
پرون ناست په تخت دپاسه نن برمنډ پر تخته پروت دی
د فلک ګردش ته ګوره چي نن هسي پرون هسي
چي د چا غمزده زړه له مفرحه دل کشا سي
د فلک حقه که ګورې پکښې نسته معجون هسي
دا زما د آه دادخواه دی چي د حسن دامنګیر سو
ستا د مخ له خطه ماته معلومېږي مضمون هسي
په وصال چي مشرف دی له هجرانه خبر نه دی
په ارمان به یې جدا کا خوی مدام د ګردون هسي
په خلوت دننه راز کړې بیا بهر راسره ناز کړې
دا دي کوم عدل انصاف دی بېرون هسي درون هسي
په هجران کي زما عمر پاس په دار باندي تېرېږي
هیڅ د عمر په شمار نه دی چي تېرېږي ژوندون هسي
روایت زما د قتل تا راوړی دی پوهېږم
چي دي خط په رخسار وکیښ د دې خط دی مضمون هسي
معزالله دي ځواب وکړ په پښتو عبدالقادره !
اوس ثاني ستا پیدا سو په دا دور پښتون هسي

عبدالنبي بېتنی

## غزل

که هوا دي د وصال سته په زړه ګنهه
خبردار سه ښامار پروت دی له چندنه
که د عشق شراب دي نوش کړه خماري سوې
عاشقي به دي په سر کا د تاج ښه
په وحدت کي له عاشقه همکنار دی
په کثرت کي یې د عشق دعوه سوه ګنهه
سربازي پر شها وکړه توکل کړه
اې "نبي" په زړه کي مکړه جنه جنه

اودل

## غزل

لکه زه یم ستا په غم کي ډک له وینو لړمون هسي
نه به پاڼ نه به حنا وي پر په وینو درون هسي
ستا د حسن سپاه جوړ ذی په دا خط د زره پوش سو
د عاشق کور به تالا کا د دې خط دی مضمون هسي
په ازل به دېوانه و په عالم به افسانه و
بل به څوک د ده په څېر سي دا نصیب د مجنون هسي
چي مین پر دلربا سوم په مثال ګل رعنا سوم
په ظاهر زړی لیده سم اندرون یم پرخون هسي
خط په مخ د ښایسته وو صف بندي وکړه دېره سو
د ښایست دکان به لوټ کا چي یې وکړ شبخون هسي
عشق هاتي دی که زمری دی پر هر چا د ده بری دی
شیخ زاهد په پنجه واخلې نور پرې کښېږدي زنګون هسي
عشق و عقل سره ګوره څه جګړه کا ځما وروره
عقل شرم حیا غواړي عشق دی خوښ په جنون هسي
څه افسون کا د یار شونډي چي کوي چاته خبري
دل و دین ترې واړه یوسي چي پرې وکړای افسون هسي
ستا ځواب عبدالقادره ! په شان دی صدر کړی
هم "اودل" دي ځواب وکړ چي پیدا سو پښتون هسي

پیرمحمد کاکړ

## څلوريځي

په زړه مي اور دی ستا له اور بله
پاته مي کور دی ځم له اور بله
په درست جهان به اورونه بل کړم
لولم به ساندي کړم به کوربله

د بڼ بلبل وم بندي په ښار سوم
نن په سیالانو بې اعتبار سوم
دوني مي بس ده چي تل په ویاړم
باري چي خاوري ستا د دربار سوم

په مخ ښایسته یې ښکلي ملوکي !
پر شاوخوا دي د حسن کوکي
بلبلان ستایي تا په ګلزار کي
طوطي دي ستایي سرې مشوکي !

# هنر او ادب

چلوونکی
طه
بهیر

اروانښاد استاد بېنوا

## ساقي پاڅه !

ساقي پاڅه پیاله راوړه
د هوښیارۍ غم رانه واخله
جار دي سمه
ساقي پاڅه پیاله راوړه

* * *

چي بیا سرشاره مستانه سو
د جام له فیضه رندانه سو
له حسرتونو بېگانه سو
چي له مستۍ سره مو مست سي سمي غرونه
ساقي پاڅه پیاله راوړه

* * *

د محبت جوړه دنیا کو
د غم په مرګ پورته صهبا کو
دا دنیاګۍ یوه خندا کو
چي پر خندا مو فلک وکي اتڼونه
ساقي پاڅه پیاله راوړه

* * *

ژوند د سرور یو ترانه سي
د مأیوسۍ کور ویرانه سي
زما و ستا ځای میخانه سي
سو لاس تر غاړه، زړه په زړه وایو رازونه
ساقي پاڅه پیاله راوړه

* * *

عبدالمجید بابی

❁

چي په زړه مي سي ستا سترګي
خپله مېنه راته ژړګي
خپل تاتوبی راته درګي
زما په سترګو کي ستا سترګي
سترګي سترګو ته ژړېږي
سترګي سترګو کي اوسېږي
زړه د سترګو سترګو یاد کي
د کلو کلو راهیسي
لا کرېږي
لا کرېږي

او همغه ښکلي سترګي
چي ماحول و پرې رنګینه
هر ګړۍ هره شېبه یې
مچول مینه په مینه
ګوره څنګه تری تم سوې
چي نه ښکاري نه مونده سي
دا په کمه ورکه لاره
مېلمني د کم عالم سوې
مېلمني د کم عالم سوې

اوس مي سترګي پرې اوبه دي
او لېمه وربانديي سرې دي
د زړه غولی باندي شین دی
د ښکلا ښکلې نرۍ کي
را خپور سوی لوی ناورین دی
ګورم ګورم زه یې وینم
ګورم ګورم زه یې وینم
او همدا زما یقین دی

سعیدلوډین تورنټو کاناډا

## لکه چي هېر دي سولم

فصلونه واوښتل وختونه تېر سول
خو زما لا سترګي ستا په لاره کي دي
چي په بیا کله
د ژوندو له ښاره
زما د یادونو په موجو کي لاهو
او د سکوت زنداني چيغو سره
څه د خمار لېونی
څه د هستیو سوالګر
څه د تقدیر قرباني
یو څه له ژونده رنځور
خپلي سجدې
خپل طوافونه
خپل له جوشه ایسار
او د زړګي توتې دي
په څو ګلانو کي رانغښتي
زما پر قبر ایږدې
فصلونه واوښتل وختونه تېر سول
سېرلی د ژوند مسافر
پرخپله لار رهي سو
خو نه معلومه نه سوې
لکه چي هېر دي سولم
لکه چي مړه دي سوه د مینې لمبه
لکه چي سوړ دي سو زړګی د هوس
لکه چي نور دي زما له نومه سره
زما د خوبونو
د یادونو
او خوږو خاطرو
لري هم ښخه کړله
زه به تنها د دې زندان وختونه څنګه تېر کړم؟!
خزان د حسن د لونبارو په څېر
زما پر قبر ستا د مینې ګلان
چي د کلونو تنهاییو ته یې
ستا د وفا او د راتللو امیدونه بخښل
دانه په دانه
د توپاني بادونو
هغه بې رحمه سالار
تر خپل وحشت قربان کړل
زه به تنها د دې زندان وختونه څنګه تېر کړم؟!
زه به تنها د دې زندان وختونه څنګه تېر کړم؟!

غفور لېوال/کابل

## غزل

جانانه څوک چیري هم داسي ناروا نه کوي
چي زړه کي ناست وي خو پروا د زړه والا نه کوي
دومره ډېر فرق دی ستا د سترګو او د خلکو تر منځ
خبري ټول کوي خو هیڅوک یې ادا نه کوي
چي ته راونه ګوري روح به مي ځان څه ویني
چي تصویر نه وي آئینه چاته خندا نه کوي
آخر به زموږ زړونه د خدای حسن په خوب ویني
دغه مین ماشومان هیڅکله ګناه نه کوي
وایي مرګ سخت دی روح له تنه جدا کیږي مګر
ما د وطن بېلتون لیدلی هیڅ پروان نه کوي

عبدالقدیم پتیال

## غزل

د سپین تندي له خزانې دي ستوري نور راوړو
که خندا را نه کړې بس خوبن یو چي پېغور راوړو
له کوچنیوالي مو حملې وهل عادت دي ګراني
هر وخت چي ستا له خوا راځو یو عجیب شور راوړو
زړه مو سکروټه د سره اور سي چي دي خیال ځنګوو
خو په جفا کي سور اور نه وي تنها سکور راوړو
د آیینې په دنیاګۍ کي هر څه پاته سوله
اوس به عکسونه د هر چا موږ لور په لور راوړو
سترګي سرې نه سوې دا شراب لکه چي زور نه لري
موږ به زړګي ته د سره جام یو سوځند اور راوړو
زاهد کوډګر دی په دې خلکو یې دي کوډي کړي
خو نن به موږ یو ډېر پټ راز د دې مختور راوړو
په سمه جوړ نه سو رقیب لکه چي ډېر مغرور دی
اوس به په زغرده ورته زور او بیا هم زور راوړو
که سوه نېستي د انکارونو خو "پتیال" بدای دی
دې وران کورګي ته بې له بل ځایه په پور راوړو

محمدنعیم آزاد / پښتین

## غزل

وړي د دیدن یې ورته ناست وي چاته نه ګوري
تېر سو لکه وخت مغرور جانان و چاته نه ګوري
هر سړي د ګل پر رنګ و بوی باندي مین ښکاري
هیڅوک یې د ژوند د هري شپې ژړا ته نه ګوري
هر نظر په خپله غبږ کي ځانته مطالب لري
دلته تش په مینه څوک د چا و خواته نه ګوري
هر څه یې ایسار کړمه خو ستا له کوڅې نه ګرځي
خیال مي دی ماشوم غوندي سبا بېګاه ته نه ګوري
هر سبا د نن په جامه تنوزي پرون ته ځي
نور به یې "آزاد" بیا په وعده سبا ته نه ګوري

احمد صمیم

## د حرم په لور

د فسوق په تورو تپلو مي مخ تور دی
نفساني شیطان مي څونه پر ما زور دی
د عصیان د بدبختی زیان مي په خوا دی
راځه ورک د فضیلت د لوري لور دی
د کونینو په سردار باندي نازېږم
چي په حشر کي ثابته ده غمخور دی
ګوندي ما هم کي حساب له اُمتیانو
مغفرت مي سي نصیب اُمید مي نور دی
چي تور سپی و دروازې ته د چا راسي
حواله یې استحقاق له هغه کور دی
زما هم یو وار تر حرمه پوري نیت دی
چي په زړه کي مي بل سوی نوی اور دی
ګوندي فیض د شفاعت مي سي په برخه
په ګناه کي دا "صمیم" تور لکه سکور دی

بهاء الدین الهام

## زما جونګړه

لوی قاموس د زمانو یې د لرغوني ژوند داستانه
زما جونګړه زما کور یې اې وطنه د افغانه!

په خاموشه ژبه ګډ یې راکوې بشارتونه
د جنت د باغ توته یې شرابي دي بهارونه
فرښتې د رحمت کاندي ستا پر غولي اتنونه
د زړو خاطرو پلار یې د وختونو قهرمانه!

پیغمبر د تاریخو یې معجزې دي بې شماره
روایات دي کنایات دي خالي نه دي له اسراره
درېوهېږم خراج اخلي د شفق د لاله زاره
ارادې دي د پولادو د آسیا د زړګي توانه!

تمبولي دي پر شا دي د پردیو تاړاکونه
هره تیږه دي ملاله، هر ګودر دي میوندونه
سردرې دي لېوني دي په سرو وینو یې لاسونه
د غیرت درس راته وایې راځه اخلې امتحانه!

د بیدیا هره ذره دي د خوبنیو ډک پیغام دی
هر بچی دي فردوسي دی هر وګړي دي خیام دی
وینبوونکي دي وږمې دي ستا عظمت ته مي سلام دی
ننداره د قدرتو یې د سرو ګلو ارمغانه!

ستا د دښت یاغي هوسۍ ده زوروره پر زمریانو
چي کوتره دي زیږه سي سترګي کاږي د بازانو
د اوبو کوچنی ماهی دي سړې خوري د نهنګانو
زه "الهام" تا کي لوی سوی خدای دي تل لره ودانه!

عبدالنافع ثنا

## غزل

ته به وایې ولي ځاځکي بهول غواړي
سترګي مي د یار تصویر شبیه شبیه لیدل غواړي
هسکه د اشنا تصویر دي هر ستوري کي اینبی دی
نه کاندي قرار سپوږمی د تولو ښکلول غواړي
دود د ابوجهل به مي پېغلي هیلي ښخي کړي
دا تورتم د زلفو له حرا څخه مشعل غواړي
تولو شیطانان دي سپین ایمان به دلته څه وکړي
خلک له قرآنه د خیرن ابلیس ستایل غواړي
کلی راته وایي چي د ځان په مرګ یې محوه کړه
زه وایم بلا ده د ثنا پېغله غزل غواړي

کله چې پر ستر خوان کښېنستو نو په دې خاطر چې جانو یو څه په خلاص لاس ډوډۍ وخوري . ځکه چې له یوې خوا شرمندوکی و او له بلې خوا زموږ او تاسې عادت دی چې مېلمانه بېلـه ستـ او سـلا څخـه سـمه ډوډۍ نـه خوري ، نو مې پر ږغ کړه :

د اوبو سره چې بیر ته راغلم مخکې له د بنه چې اوبه وڅښي ګیلاس یې ستر ګو ته ونیوی :

ګیلاس څوک همداسې مینځي !

ما مې هم مېرمن په خوله کې ور کړه :

داد دې کارونه دي .

# خپل کور دې دی

وامد نظري

خپل کور دې دی . سمه ډوډۍ وخوره !

جانو د ستر ګو تر کوجنو راته وکتل . په تشویش یې پوه سوم هر و مرو داډه نه و چې دا ماد زړه له کومې وویل . که مې هسې . . . نو د ده د اند ښېښې د له منځه وړلو له پاره مې ور ته ږږیل :

مه شرمېږه داسې فکر وکړه چې خپل کور دې دی .

جانو چې همداسې ګونجلک ناست و . کرار کرار لکه بوغې چې پوف کـړې سره وغوړېدی . پر چوکـې نـبـغ کښېنستی . لا یې دوې ګولې نه وې اخیستې مخ یې زما مېرمنې ته راوګرځاوه :

دا هم ډوډۍ ده چې تا پخه کړېده ، وریجې درڅخه شوله سوې دي او غورمه دې هم د سوي بوی کوي . . .

زوی چې مې له خور سره په دعوه اخته و ، شرک په څپېړه یې وواهه :د بې تربیه زو ! ژر ولاړ سه د کوټې په کنج کې پر یوه پښه ودرېږه او په دواړو لاسو دې غوږونه ټینګ ونیسه ! . . . او زما لور یې په تشناب کې بندي کړه . . . ماته یې بد بد وکتل او په آمرانه لهجه یې راته وویل :

لږ وشرمېږه ته اصلاً خپله تربیه نه لرې . چې اولادونه دې داسې بې تربیه دي . . . ولاړ سه ژر یو ګیلاس اوبه راکړه !

زه چې په اوبو پسې روان سوم . . . بیا یې راباندې ږغ کړه :

فکر دې ونیسه چې یخې وي .

بد بد یې ور ته وکتل . په غم غم یې وویل :

ښځې دلته بې عرضه کیږي . . .

بیا یې ماته مخ راواړاوه او په هغه آمرانه لهجه یې راته وویل :

تر دې وروسته د لوښو پر ټولو ستا دنده ده . ښځه دې بېکاره ده . . .

په پای کې یې تر څو لوښې راباندې ونه مینځل له کوره ونه ووت . . . تشکر یې هم ونه کړ ، وې ویل :

خپل کور مې دی ولې تشکر وکړم . . .








لیکوال: محمد حجازي

ژباړن: عبدالقدیم پتیال

د سپین ږیري ښځه عایشه د گلبهاري او الله وردي مور نه وه او اولاد یې نه درلودی عمر یې کابو پنځوسو کالو ته رسېدی، تر حد زیاته بد رنگه وه او نه مي سوای کولای چي تر یو خل زیات ورته وگورم، یوه سترگه یې هم ړنده وه له اولي روځي یې بدمرغه سیوری رااندي ولوېدی او له هر ډول محبت او میني څخه یې خود داري نه کوله، هر وخت چي به سپین ږیری نه و نو رابه غله او نږدې به راته کښېناستل او د مېړه شکایت به یې راته کاوه، ویل یې چي د گلبهاري پر سر یې سوتیان خوړلي دي، او د چلاخي له واري یې سترگه ړنده سوې ده، د گلبهاري په تگ خوشحاله وه او ارمان یې کاوه چي ولي دا له جهانشېره سره نه ده تللې. زما څخه یې غوښتل چي د گلبهاري د راتلو لپاره لیک ونه کاږم ویل یې چي ښځه دي بیا په لاس نه درځي، ما درسره بوزه او ویه تښتو، د دې وراندیز په اورېدو گنگس سوم

هغه شپه چي مي لیک ولیکی، نو عایشه وارخطا او مضطربه وه او له معنی په ډک نظر یې راته کتل سبا سهار یې کاغذ ښار ته یووړی چي د پوست له لاري یې ولېږي او الله وردي د زرپانې په پیدا کولو پسي ولاړی.

د گلبهاري د بیا راوستلو له تصوره د زرپانې د لیدن شوق په غم او شرمنده گی بدلېدی.

سپین ږیری په خپل کار پسي ولاړی او زه یوازي پاته سوم، دونه خوابدی او خپلی وم چي د عایشې مجلس مي لوی بریالیتوب گاڼه او د هري روځي پر خلاف مي نن انتظار درلودی چي راسي او هر څه چي وایي ویې وایي، بلکي زړه به مي ورسره آرام سي، تلل او راتلل، خو آن ماته یې کتل هم نه، پوه سوم چي له هغه اقدام څخه چي د گلبهاري د راوستلو لپاره مي کړی دی حال یې بل ډول سوی دی. ږغ مي ور وکړ، په خواب کي یې ښکنځل او "قر ـ قر" وایه عجز او زاری مي ورته وکړې ورته ومي ویل چي آیا وتښتو؟ د دې خبري په اورېدو یې تندی ورېن سو او نږدې راغله تر لاس یې ونیولم او پر بدن یې مچ کړم، داسي وه لکه ورستې غوښي چي مي لمس کړي او حس کړي وي. ټینگار یې کاوه چي باید همدا نن شپه وتښتو ضمناً هغه کاغذ چي د تېرېږ لپاره مي لیکلی و له جیبه یې را وایستی له اریانتیا او شوقه مي ژبه بنده سوه، ویل تا خیال کاوه چي زه به پرېږدم چي گلبهاره راسي؟ نن سهار مي د نوکر له خورجین څخه کاغذ راوایستی. هغه به خیال کوي چي ورک کړی مي دی، مگر د سردار له بیري د ویلو جرئت نه لري، پوه سه! که گلبهاره راغلې وای نو ته او هغه دواړه مي وژلاست. ته وا عایشه پرښته وه چي د رنځور وجود د تداوی لپاره مي راغلې وه، د هغې صورت مي په

نظر ښکلي او لطیف سو، بیواکه مي ونیوله او ښکل مي کړه، کاغذ مي ټوټه ـ ټوټه کړ او پر باد مي وسپاری، داسي ولګه ټول ګرد او رنځ چي مي باد د کاغذ له ټوټو سره یو ځای وړي. عایشه خوارکی. زما په فکر نه وه خبره، راپوري وموښتله او د ښېښتي ټینګار یې کاوه، ویل یې چي د ښځي د پیدا کولو خیال دي له سره لیري کړه. تېر یې ایستلی، غوښتل یې چي ته هغه کاغذ ولیکي، الله وردي ولاړي چي غاتري وپلوري او همدا نن بیرته راګرځي.

باور مي درلودی چي عایشه دا ټول درواغ ماته د ښېښتي په توسن جوړوي، په مبهمو خوابونو مي وخت ورسره تېروی او د ښېښتي لپاره مي ستونزي جوړولي، خواشیني او پرېشانه سوه، له څنګه مي ولاړه سوه او پخپلو کارو پسي ولاړه.

په ذهن کي مي د شک هګی وچه سوې وه اوس یې وده کوله، بېرېدلم چي الله وردي به ژر راوګرځي او د عایشي خبري به رښتیا سي، هغه شپه او روځ تېره سوه او الله وردي نه راغلی.

خوشحاله او په هیله من ډول مي له سپین ږیري سره شپه په مجلس تېره کړه، پوښتلم یې چي څو روځي وروسته به ګلبهاره دلته وي؟

د ځرځ غوندي چي تازه په کار لوېدلی وي، لومړی مي ژبه په دړواغو جوړولو کي بندېدله. کراړ ـ کراړ روانه سوه او د ګلبهاري د راګرځولو د وسایلو لپاره مي د فرمایشونو چي اکا ته مي ورکړي دي، کیسي جوړولي او هغه مي په داسي هنر اودلي چي خپله هم ورته اریانېدلم.

سپین ږیری له خوشحالی څخه په پوست کي نه ځانېدی، داږه سو او ځانغوښتنه یې له منځه ولاړه، ویل یې کله چي ګلبهاره راغله، نو که یې شیان بیرته د ځانه سره نه ول راوړي، دوه زره تومانه در څخه اخلم او ایله کوم دي او که یې آس راوستی، بیا زر تومانه درڅخه اخلم.

په خیال کي مي راتېر سول چي هغه څه چي عایشي ویل رښتیا ول، زړه مي خالي سو، ورته ومي ویل چي که مي ښځه په لاس راکړې نو هر څه چي غواړې درکوم یې. یوه اوږده خندا یې وکړه ویل څه پوهېږم چي ښځه دي په کوم جهنم کي ده. له دغه خیانت او بې شرمی څخه دونه پر احساساتو راغلم چي زړه مي غوښتل سپین ږیری ووژنم. مګر دغه حالت تر یوې شېبې زیات نه سو اوږد، تکان مي وخوړی چي زه هم خاین یم ... بېله ښېښتي مي بله لاره ونه لیده.

⊛ ⊛ ⊛

په سبا سهار الله وردي راغلی خو یوازي و ... ورته ومي ویل چي د زرپاني څه خبر دي راووړ، په شوخی سره یې پر شا په چپلاخه وهلم او ټوکي یې راباندي کولي، ویل یې ښځه دي په خورجین کي ده، اوس یې راباسم، عُجز او زاری مي ورته کولې چي شوخي مه کوه کراړ یې زرپاني ته ښکنځل وکړل ... ، بیواکه سوم له آسه مي لاندي راکش کړ او پر سر او ماغزو مي واهه، چاړه مي له لاسه ځني وکښله او وهلو جریان درلودی، چي سپین ږیری

او عایشه راغلل او دی یې راڅخه خلاص کړ، الله وردي د ځناورو غوندي غاښونه را ایستلي، سترګي یې غټي کړي او ناري یې وهلې، ما په هغه روځ یو وحشي انسان ولیدی او هغه منظره نه سم هېرولای او تل د متمدینو خلکو د عمل او کردار و شاته هغه څېره وینم.

کله چي د الله وردي ناري خلاصي سوې او له هغه وحشي حالته راووتی، په نیولي او غوسه ناک ږغ یې ویله چي " تا لېوني خیال کړی و چي زه خم او ښځه دي درته راولم ؟ ... څونه بې عقل یې ! ته تر هغه وخته دلته پاتېدلای سې چي ګلبهاره راسي هله نو بیا دري زره تومانه باید راکړې او ولاړ سې، که نه وي سر دي در پرې کوم.

د هغه خبري سپین ږیري په ښکنځلو تایید او تکرارولي. لاسونه یې تر شا راوتړل یو ټینګ تناو یې په غاړه کي راواچوی او د هغه سر یې د الله وردي د خوني په منځ کي میخ کی.

د نجات یوازینی لاره د عایشي سره ښېښته وه خو د هغي وجود مي په ښېښته کي بندي کېدی، له هغي سره مي چېري کولای سوای ولاړ سم اوڅه ور سره وکړم؟ په خیال کي مي راتېره سوه چي هغه په بیابان کي پرېږدم او زه ځني ځم. له دغه فکر څخه متنفر سوم او له خپلو بدو څخه مي وحشت وکړ.

په دغو خیالونو مي شپه په ورځي بدله کړه، الله وردي لا بیده و چي سپین ږیری سپور سو او ولاړی. د پیښي غوندي چي د موږک حرکاتو ته خیره وي سترګه مي په عایشي پسي وه چي په کورنیو کارونو بوخته وه. چي دا مازي یې راته وکتل نو هر څه چي مي په زړه کي درلودل په ژړانده نظر مي ورته وویل او اشاره مي ورته وکړه چي نږدې راسه ! شا یې راواړوله او بوزهاری یې وکړ، ولاړه او بیرته راغله، کراړ مي ورته وویل چي نږدې راسه په لوړ آواز یې ښکنځل کول او ویل یې : ته داغسي د ښځي په انتظار کښېنه، لېونیه ! زما څخه غواړې چي ولاړه سم او ښځه دي درته راولم، زه دي پر دغو ښکنځو سرېږه هم نه خوښوم.

له خبرو څخه پر احساساتو راغله او ږغ یې پورته سو له دغه هیاهوی څخه الله وردي له خوبه راویښ سو او داسي کلکه لغته یې پر دا خیګر ووهلم چي ساه مي بنده سوه، له ډېره درده په ځان کي سره پېچل کېدلم او د "مورجاني ـ مورجاني" ناري مي وهلې، د زړه په ژبه مي ویل چي ای مورجاني، مګر ستا له میني ډکو سترګو دغه پېښه ونه لیده او زه دي دې ځای ته راوستم، آیا درباندي ګران نه وم؟

ولي دي په نازو ویاللم، او زړه مي دي په مورنی مینه رانرم کی؟ آیا دښمني دي راسره درلوده؟ ولي دي یوازي پرېښودم او ولاړې؟

هو ! ولاړې، ځکه چي پوهېدلې چي ټول ژوند مي له بدبختیو نه سي ژغورلای، له دنیا سره دي زور نه رسېدی، باور دي درلودی چي د طبیعت منګول مي ښکاري غوندي په وینو لړي، د دغي

منظري د ليدلو توان دي نه درلودی، ولاړې، مگر څونه به ښه وای چې زه دي هم له خان سره بېولې وای.

کله چې د توپان بلا زوروره سي، نو د زړه وروستی شمعي وژني، ټول احساسات او عواطف چوپيږي.

اروا مې دونه خپلې وه چې خاطر مې د عايشې له مراعت څخه آرام سو، بېله تښتې مې بل خيال نه درلودی او د دغه هدف لپاره مې د عايشې له وجود څخه کار اخيستی، خو هغې ته مې بېله د يوې آلې د کارولو پرته نور ارزښت نه ورکاوه.

يو زړه بايلونکی مين غونډۍ بې ټولو حرکاتو ته خير وم، برغ يې د آزادۍ د زيري غوندې په غوږ راتلی، مگر هغې زه ډېر اړ بللم، نازونه يې لا ډېر کړل او زما زاريو ته يې په ښکنځلو خوابونه راکول.

د روخي نيمايي وه چې عايشه راغله او څو ټوټې ډوډۍ يې مخته راوغورځول ورته ومې ويل، که غواړې چې ويې خورم او مړ نه سم نو لاسونه مې را خلاص کړه څوک خواب يې را نه کړ او خوني ته ورننوتله او الله وردي ته يې وويل چې لاسونه يې ور خلاص کړه.
الله وردي ورته وويل چې خپله يې ور خلاص کړه ما پرېږده چې استراحت وکړم. عايشې ورته وويل چې ولې نه څې، ببرېږې چې که آزاد سو، نو د پرون غوندې به دي سر در وکوټي. د الله وردي غيرت پر جوش راغلی ما او عايشې دواړو ته يې ښکنځل وکړل او له خوني څخه راووتی چې لاسونه مې را خلاص کړي. په قهر ژلي ډول مې ورته وويل چې خلاص مې کړه چې خواب يې درکړم. زه تر هغه ډېر خواکمن وم، تېره روخ په دغه حقيقت پوهېدلی وم.

کوټې ته ولاړی او عايشې ته يې وويل چې که دا سپي ته ور نږدې سوم وينه يې ور توپوم. عايشې په زوره ـ زوره خندل او ورته ويل يې چې ببرېږې، ببرېږې!

يو کلک سوک يې وخوړی او آه يې پورته سو، ژړانده راغله او لاسونه يې را خلاص کړل، پر بدن مې مچ کړه خو هيڅ مخالفت يې ونکړ، بيا مې مچ کړه، خو څه يې ونه ويل، ورته ومې ويل چې هر وخت غواړې تښتو، خواب يې رانکړ او ولاړه.

هر خل چې به فرصت پيدا سو نو عايشې ته به مې اشارې کولې او له دغه رمز څخه چې له دې سره مې درلودی له خوښيه زړه غورځېدی.

***

تر کوټې دباندې پروت وم، او د شپې په تياره کې عايشې ته انتظار وم چې له خوني څخه راووزي، دونه وسواسي وم چې د غاړې تناو مې ژووي، دونه نري سوې و چې په ډېره آساني وشلېدی. مگر څه گټه، د پښې ځنځير مې نه سوای خلاصولای، له دغه بېځايه حرکت څخه مې عذاب لا ډېر کړ، د سبا د شکنجو او وهلو او ټکولو له ويرې چې دا خيال ته رسېدل چې پښه ترلی خان آس ته ورسوم او وتښتم ليدی مې چې ډېر ستونزمن کار دی؛ خوار او نهيلی سوی وم. نابېره مې حس کړه چې لاس مې پر پښه کښېښول سو، عايشه وه لاس يې پر خوله را کښېښود چې خبري ونه کړم، کولپ يې خلاص کړ او له پښې يې ځنځير راڅخه ايسته کړ، ولاړ سوم او په هغې پسې سوم. تللو تر څو له آبادۍ څخه ليري سولو، يو څين کړی آس يې پر مځکه ترلی و، ويل ژر سه سپور سه او ما شاته کښېنوه، يوازې سپور سوم او بېله فکره او څنډه مې آس پونده کړ، عايشې نارې کړې او ما آس څغلوی ...

نه پوهېد چې چيرې څم او آخر کوم خای ته رسېږم کله چې ستومان سوم نو واک مې آس ته وسپاری او د يوې شپې لپاره مې له راز راز فکرونو اوږې سپکې کړې.

د لمر راختلو او د آزادۍ حس يو گړی له خانه بې خانه کړم، خپل له اړتيا او غوښتنې ډک وجود مې هېر کړی و، او کراړ ـ کراړ مې مزل کاوه.

لږ وخت نه و تېر سوی چې د آس د پښو برغ مې واورېدی، ومې ليدل چې څو سپاره مې پر لور راخغلي، د ترهېدلي هوسۍ غوندې چې له ښکارې څخه څغلي، د تښتې لاره مې غوره کړه د مرميو برغونه اوچت سول، نږدې ـ نږدې مرمۍ راسره تېرېدلې، نابېره څو سپاره د يوې تپې له سره راڅرگند سول. داسې ايسېدل چې زما خلاصون ته راغلي وي، خان مې واژه چې ژر هغو ته ورسېږم، نابېره مې يوه ټينگه ضربه پر پښه احساس کړه خو زه بيا هم تلمه.

کراړ ـ کراړ آس له حرکته لوېدئ، اروېدل مې چې د سپرو د پښو برغونه رانږدې کيږي، هر څه چې مې پر آس زور راوړی خو گټه يې نه کوله لږ وخت نه و تېر سوی چې آس غوڅار سو او زه پر مځکه ولوېدمه، هر څنگه چې و، خو را ولاړ سوم او څو گامه مې نه وه اخيستي چې نور له پښو وغورځېدم. هغه سپاره چې مخامخ يې راڅنستل نور هم چابک سوم، خو د هغو نورو سپرو واټن لا زيات و. د الله وردي توره مې وليدله چې لمر ته وځلېدل او پر څټ يې راکښېښوول، نور مې نو په سترگو څه نه دي ليدلي.

***

کله چې پر هوښ راغلم نو يو غښتلی او خواکمن سړی مې وليدی چې چارخول والا بگړی يې ترلې وه او پښو ته مې ناست و، له غوټې يې څه سامان را ايستلی او په يو ټوکره يې پښه راترله، پام مې سو چې د مخ زخم يې را ترلی و ماته يې هيڅ نه کتل. له ډېرې اريانتيا څخه مې درد هېر کړی و او شاوخوا مې کتل، رنگ يې ښاري ښه لرله، دغه سړی لوړ قامتی و، اوږده توره ږيره يې لرله، سپين پوستو غوندې و خو لمر يې رنگ لږ ور تور کړی و.

ورته ومې ويل چې تاسو څوک ياست او دا کوم خای دی؟ راته ويې کتل ومې ليده چې سترگي يې شنې دي، تر لږ ځنډ وروسته يې راته وويل چې ببرېږه مه، موږ ترکمن نه يو، بېغمه اوسه زه بخارايي سوداگر يم، نوم مې سرفراز خان دی، خيال دې آرام کړه او ډېرې خبرې مه کوه، تر څو دې ژر تداوي وسي. غوښتل مې چې څه ووايم لاس يې پر خوله راکښېښود او ويل يې چې چپ سه! بې هوښه سوم، کله چې مې سترگي روښنې کړلې، ومې ليدل چې تر سر لاندې يې يوه وړه سيښه رانيولې ده ويل يې چې بيا د

زره حمله دربانديږي راغله، خبري مه کوه، که نه وي حال دي تر دې لا خطرناکه کيږي.

سرفرازخان په هغه خونه کي چي زه بيدېدم، بيدېدئ، آن د شپې به را ولاړ سو او زما د زړه دربي ته به يې غوږ نيوئ، د روځي چي به دباندي وتي نو يو ترکمن به يې زما د خدمت لپاره پرېښود. هر څه چي به مي وغوښتل چي له ترکمن سره خبري وکړم، خو خواب به يې نه راکاوه، ويل به يې چي خان راته ويلي دي چي خبري مه ورسره کوه.

بخارايي سوداګر به ډېر کله په مطالعه بوخت و، يو ځل مي وليدئ چي يو شي يې ليکي، خو له کيني خوا يې ښي لور ته ليکي. ډېر اريان سوم او حرکاتو ته يې خير وم. ډېر کله به لوڅ سر و، فرنګي سندري به يې زمزمه کولې، اوږي به يې پورته غورځولې او فرنګي حرکات به يې کول، ليکن د ترکمنانو غوندي يې په لاس ډوډۍ خوړله او د چايو پياله چي به خلاصه سوه نسکوره يې اېښوونه او له نوکرانو سره يې په تونده ترکي لهجه خبره کولې.

که څه هم چي ده خپله لوبه ښه سر ته رسوله خو زما باور راغلي چي اروپايي دی، يعني له خدايه مي غوښتل چي داغسي وسي، خپل ژغورون مي په ده کي ليدی، غوښتل مي چي د وحشت له ديو څخه د تمدن پرښتې ته پنا يوسم.

هو ! باور مي وکړ چي سرفراز خان اروپايي دی.

سهار و، لږ څه ساړه راننوتلې وه او غوښتل مي چي څه پوښتني وکړم په دغه شيبه کي يو ډنګر تور سړی چي بخارايي لنګوټه او لباس يې اغوستی و، کوټې ته راننوتی، يو وړوکی خورجين ورڅخه و، سترګي يې پر ما ولګېدې او تعجب يې وکړ.

سرفراز خان په انګليسي ژبه هغه ته وويل "ولې دوې روځي ناوخته راغلې؟" له ډېري خوښي څخه مي زړه په درزي سو.

هغه نفر چي له لهجې څخه يې ځرګنده وه چي انګرېزی نه و، په خواب کي ورته وويل چي کار ډېر ګران سوی و (جنرال کورسوسکي) شخصاً خپله کورته راغلی او د (جاکسن) د نابودی په باب يې منطقونه ويل او زه تر اوسه نه يم توانېدلی چي هغه ليکونه لاسته راوړم (پالکونيک خوتسو) ويل چي د ليکونو اخيستل کومه ستونزه نه ده مګر بايد نوري پاڼي په انګرېزي ليکل سوي وي، پر هغه ځای کښېښوول سي او تر څو چي داسي نه وي سوي نه سم کولای چي نوښتې ترکرم، ځکه چي ژوند مي په خطر کي لوېږي. د هغو پاڼو ترتيب او تهيه مي نه سوای کولای ښېله جاکسنه بل چاته ورکړم او د دې هدف لپاره مي بايد زندان ته هغه ته کاغذ او قلم رسولی وای.

(دنيکين) د محبس صاحبمنصب په بې اندازې ډول وطن پرسته و او ډاډ مي درلودی چي هيڅ ډول د خيانت وړانديز به ونه مني، بلکي برعکس که چيري زموږ په پلان خبر سوی وای، نو به کار ډېر خطرناکه سوی وای. تر ډېر فکر وروسته بيا هم کومې پايلې ته ونه رسېدو، تر څو مي بالآخره وړانديز وکړ چي (پاپف) هغه بل صاحبمنصب چي په خپل وار د محبس مامور کيږي، ځان پر ناروغي واچوي او زه وتښتم ځرنګه چي پاپف مريض دی نو به ما نه سي تعقيبولای.

په دې صورت کي به نو له ناچاريه صاحبمنصب دنيکين زما د نيولو مامور سوی وای او پاپف به يې پر ځای کښېناستلی وای او موږ پلان به عملي سوی وای. د دغې نقشې جوړولو يو ساعت وخت نه ونيوی، دنيکين زه په "پنځ ورسي" کي ونيولم او پالکونيک خوتسو ته يې بوتلم، تر يوولسو بجو يې دلايل راسره ويل تر څو مي يې بدګوماني ور ليري کړه او زه يې ايله کړم. په هغه ساعت کي نو د دنيکين کار خلاص سوی او خپل کور ته ولاړي.

د ليکلو اسباب جاکسن ته ورسېدل او د شپې تر ځلورو بجو پوري يې ځيني پاڼي ليکلي او چمتو کړي وې. هغه د اصلي پاڼو پر ځای کښېښوول سوې او هغه نوري پاڼي ما راوړې.

دغه مجلس ډېر وخت ونيوی او زه پوه سوم چي سرفراز خان سوداګر نه، بلکي په سياسي کارونو هم لاس وهي.

کله چي هغه مجلس خلاص سو نو سرفراز خان د هغه بل نفر په خواب کي چي زما په باب يې پوښتنه کړې وه، ورته وويل چي له ... څخه راتللو يو فرسخ ليري مو يو سړی وليدی چي زموږ پر لور راځغلي او په هغه پسي نور نفر پسي دي او تعقيبوي يې، ډزي وسوې، سپور او آس پر ځمکه غوځار سول، دغه ځوک دی چي اوس بيده دی مګر هغوی تر موږ ژر ور ورسېدل او ژوبل يې کړ، هغوی ويل چي د سارا نوکر دی او تښتېدلی دی له آس سره تښتېدلی دی، حاضر سوم چي سل تومانه د آس بيه ورکړم او دی راپرېږدي خو نه يې راسره منل او دوه زره تومانه يې غوښتل، بالآخره پر دې پرېکړه وسوه چي تداوي يې ور وکړم او بيرته يې هغوی ته ور وسپارم، ښېله منلو مي بله چاره نه لرله ځکه چي کليوال دود بايد مراعت سي، له هغو ترکمنانو څخه دوه کسه دلته پاته دي چي دغه خوارکی بوزي.

⊙ ⊙ ⊙

له ځايه راوغورځېدم او په انګرېزي مي ورته وويل چي د خدای ﷻ د رضا په خاطر د تمدن په خاطر ماته له دغي بلا نجات راکړئ، ما دغو ځناورو ته مه ور سپارئ، زه کليوال نه يم، ستاسو غوندي ښاري يم، او د دغو ځناورو په لاس ورغلي يم. که ويوهېږئ چي زما سره څه ډول کړنه سوې ده، نو ښايي په هر ډول فداکاري ما ځني آزاد کاندي. هر څونه پيسو ته چي اړتيا وي درکوم يې زما سره مرسته وکړئ.

د هغو دوو نفرو له اریانتیا او خیرو کتو څخه وډارېدم او چپ سوم، سرفرازخان وپوښتلم چي آیا هغه څه چي موږ وویل وادي روېدل؟ ورته ومي ویل هو ! هر څه چي مو وویل وامي روېدل، تاسو ته د وطن پرستی په دنده کي شاباسی درکوم او مقدس مو شمېرم ...

هغه تور سري وویل چي هغه چا چي دا خبري اروېدلي وي باید ژوندی پاته نه سي، ورته ومي ویل چي هو، ما ووژنئ، ما او زما خوارکی ښځه د انسانوژني تر هوس قربان کړئ او گناه د وطن پرستي پر غاړه ور واچوئ. له دې څخه چي زه غوږونه لرم او په انگرېزي پوهېږم او دلته په ناخوښتی سره ښکېل سوی یم، نو څه گناه مي ده؟ که ټمبلي سوې وي، نو ستاسو څخه سوې ده. ما ولي وژنئ، مگر ستاسو د عملونو جبران باید زه وکړم که دا خبري پر تاسو اغېز نه کوي، نو ماته امان راکړئ چي خپله ښځه د دغو وحشیانو له منگولو خلاصه کړم، په خپل شرافت سوگند کوم چي تر څو ژوندی یم له دغو خبرو څخه به یوه هم ونه کړم. او بیا نو د اضطراب له وجي بېهوښه سوم.

کله چي پر هوښ راغلم سرفراز خان مي د بالښت سره ناست و، ویل یې ستاسو ښځه چیري بندي ده او تاسو څوک یاست؟ خان مي ور وپېژندی او ټوله کیسه مي ورته وکړه، داسي و لکه له مجسمې سره چي مي خبري کولې، هیڅ اغېز یې نه باندي کاوه، وروسته له هغه چي چپ سوم، د یو څو شېبو لپاره یې راته کتل او بیا یې راته وویل : ستاسو ژمنه چي د هغو مطالبو د نه افشا کولو په باب مو وکړه، ومي منل، خو دا به ډېره ښه وای چي اول دي راته ویلي وای چي په انگرېزي پوهېږم. غوښتل مي چي ځواب ورکړم، خو وخت یې رانکړ او دباندي ووتی، تر څه ځنډ وروسته بیرته راغلی او راته ویې ویل چي هغه دوه ترکمنان چي ستا د بېولو لپاره دلته اوسېدله په زر تومانه مي راضي کړل او ولاړل، ستا د ښځي د پیدا کولو لپاره هم یو اقدام کوم.

له خپلو سپرو څخه یې دوه ترکمنان راوغوښتل او ماته یې وویل چي خپله کیسه ورته وکړه او د زړیانې نښاني ورته ووایه.

هر څه چي لازم ول، ورته ومي ویل او یو لیک مي ولیکی او هغو ته مي ورکړ چي زړیانې ته یې ورسوي لیک په دې ډول و :

"زما گراني زړیانې ! څونه سخت مرگی یم چي لا تر اوسه ژوندی یم، مگر هر څونه بد چي مي په وجود کي ول د خواریو په اور وسوځل او اوس ستا لمانځلو ته ډېر پاک یم، ببله تا بل شی نه غواړم او د وصال په شکرانه کي هغه ټول رنځونه او زحمتونه چي مي گاللي دي، دې نړۍ ته بخښمه. پوهېږم چي پر تا به څه تېر سوي وي، کله ستا څخه فارغه سوی یم، داسي اغزی دي په پښه نه دی ننوتلي چي هغه زما تر زړه نه وي وتلی. ستا د حالت کیسه هره شپه راته رنگ الوتي سپوږمۍ کوي، ستا د اوښکو څاڅکي له ستورو سره شمېرم او ستا ځانسوځونکي ناري د سهار په سپېدو کي اروم. په یاد دي دي چي تازه مو واده کړی و د پسرلي موسم وتر کامرانیه لاندي سارا کي گرځېدلو، غر مو له سپین ږیري پلار سره تشبیه کړ چي سر یې سپین سوی دی مگر ځواني یې لا نه ده هېره او د نورو عادتونه یې نه دي هېر کړي، شنه چپنه یې اغوستې ده چارزانو ناست دی او موږ ته وایي چي راسي زما په لمن کي عشقبازۍ وکړئ، دغه شوخۍ مو کولې او خوشحاله وو.

په یاد دي چي پوړنی دي له سره ایسته کړ، پر ما دي تکیه وکړه او پر لاري تللو، یو ځل ودرېدې او خپل شوخ لاس دي د غره لور ته ونیوی او ودي ویل : اې بوډا ! ته شاهد واوسه چي ما زړه او ځان اجمل ته ورکړ او بیرته یې نه ځني اخلم. زه بېواکه غوندي ستا څخه لیري سوم چي ښه ننداره دي وکړم، زلفي دي باد در ږمونځولې هر وېښته دي د لمر د شغلو په پېروۍ پسي تلې، له تېز باد څخه کالي دربانـدي موښتي ول او نـازک انـدام دي د یـوې ښکلـي مجسمې غوندي له ورایه ښکارېدی، سترگي دي د آسمان دوې تـوتې وې چي د طبیعت مجسمه جوړوونکي تـه پـور ورکـول سوي وي ... آیا کـولای سم ووایـم چي تـه زمـا پـه وړاندي څنگه ښکارېدې؟ پرښته وې چي له آسمانه رالوېدلې یې، بیا دي وویل چي :

دا څونه ښه سپین ږیری دی، تر خپلې بې حرکته څیرې لاندي مو ویني او زموږ له میني څخه خوند اخلي، کاشکي یې ژبه درلودلای، څونه ښه خبري به یې کولای ...

زه چي هم دغه لیک کاږم نو د یوه لوی سري په وړاندي ناست یم، چي په وقار را لوېي تر هغه غره کم نه دی او په ظاهره یې صورت بې حرکته خو د چوپو سترگو په ژورو کي مو ویني او زموږ مینه یې خوښه ده، خو څه نه وایي. زما ژغورونکی دغه بزرگوار دی، د ده تفصیل به بیایي د ملاقات په وخت کي درته ووایم، په پښه کي مي گولۍ موښتې او په اوږو کي ژوبل سوی یم، که نو خپله درتللم. د دغه لیک دروړونکي تا خلاصوي او راولي دي، د بېلتون تیاره شپه به پای ومومي، راسه چي پاته ژوند اختر وگڼو."

"ستا مهجور اجمل"

نور بیا ...




## اداره

❁ یکشنبه د غبر ګولي لومړۍ :

د کندهار په فرهنګي حوزه کښي د فرهنګي چارو د یو خپلتوب او تفاهم د هڅو په لړ کښي د کندهار راډیو تلویزیون په آمریت کښي په داسي حال کښي چي د اطلاعاتو او کلتور رئیس عبدالمجید بابي هم شتون درلود د مرکې د مشر ډاکټر طارق رشاد په مشري د لوی کندهار د کلتوري مرکې غونډه جوړه سوه .

د هیواد تکړه ډایرکټر عبدالاحد ژوند په دې غونډه کښي زېری ورکړ چي د افغان فلم شمله فرهنګي مرکز به هم د کندهار کلتوري مرکې سره یو ځای او مرکز به د کابله راوکوچوي . په غونډه کښي عبدالاحد ژوند او انجینر یحیی فرید د لوی کندهار و کلتوري مرکې ته د یو شمېر نورو لیکوالو تر څنګ د مرکې اجرائیه جرګې ته او پنځه تنه نور د مرکې د کړنلاري و مسودې لیکني ته غوره سوه .

❁ یکشنبه د غبر ګولي لومړۍ :

د پوهني رئیس حیات الله رفیقي د پوهني د مدیرانو غونډه راوبلل او د ښوونځیو د هر اړخیزه سمون د جوړېدو له پاره یې د یوه پراخ پلان د جوړېدو پر لارو چارو باندي غور وکړ .

❁ دوشنبه د غبر ګولي دوهمه :

د ولایتي جرګې غونډه د دې جرګې د رئیس احمدولي کرزي په مشري د جرګې د ټولو غړو په ګډون د ښاروالی د غونډو په لویه خونه کښي جوړه سوه . لومړی د ټولټاکنو د ځانګې د مشر تابه له خوا جرګې ته څرګندوني وړاندي سوې، هغوی وویل : د نوم لیکني مهال پای ته ورسېد او تر ۲۰۰ تنو پوري د دې ځایه خلکو ځانونه کاندید کړي چي په هغو کښي ۸ تنو ښځو ولسي جرګې او ۳ تنو نورو ولایتي جرګې ته ځانونه کاندید کړي دي .

هغه وویل : د نوم لیکني او کارت اخیستني چاري به د چنګاښ پر څلرمه پیل او د دې میاشتي تر ۳۱ مي پوري به وغځېږي، هغه وویل : په کندهار ښار کښي (۶) مرکزه په پام کښي دي چي (۳) یې د ښځو لپاره دي . همدارنګه په هره ولسوالی کښي یو ښځینه او یو د نارینه ؤ مرکز پرانستل کیږي خو د بولدک په ولسوالی کښي به دا شمېر د څلورو په شمېر وي .

بیا د A.D.A موسسې پر دندو چې د عامه پوهونې په برخه کښې دې تر پوښتنې لاندې راغلې، په غونډه کښې د امنیتي څرګندتیاوو په لړ کښې د امنیت آمر جنرال سالم وویل : په تېره اونۍ کښې عبدالرحیم، عبدالودود او محمدنادر د روربات په سیمه کښې چې د څارندویانو جامې یې اغوستې او خلک یې ځورول نیول سوي دي .

هغه وویل په تېره اونۍ کښې د خواجه ملک ښوونځي ته دښمن اور اچولی، وروسته د نورو مسئلو تر څنګ غونډې د کوبۍ په سیمه کښې پر دولتي مځکو د بلوڅانو او سلېمان خېلو د تېرونو تر منځ شخړه هم وڅېړل چې پکښې درې تنه مړه او(۷) تنه ټپیان دي .

۞ ۳ شنبه د غبر ګولي ۳ یمه :

د ښوونکي ورځ د پوهنې ریاست د ټولو ښوونکو، زده کوونکو او دولتي چارواکو په ګډون د نوي ښار په خوشبخت تالار کښې د یوې پراخې غونډې په ترڅ کښې ولمانځل سوه . غونډې ته د پوهنې رئیس حیات الله رفیقي پخپلو خبرو کښې څرګنده کړه چې د پوهنې چارو ته به پاملرنه وکړي او د خوارځواکو اړخونو په بداینه کې به یې زیار وباسي، بیا کندهار والي ګل اغا شېرزي د پوهنې ټولو اړوندانو ته د پوهنې د چارو د پیاوړتیا په موخه د خپلې هر ډول مرستې ژمنه وکړه .

وروسته د پوهنې ریاست مرستیال عبدالصمد خاورین، د ولایت مقام مرستیال ډاکټر غلام جیلاني همایون او استاد خلیق هم ویناوې واورولې . په غونډه کښې عبدالاحد نهضتمل او محمد شعیب وفا د ښوونکي په اړه شعرونه واورول .

په غونډه کښې د ښځو چارو د وزیري پر پیغام سربېره د سیدجمال الدین افغان د ښوونځي د زده کړیانو لخوا د پوهنې ترانه هم ولوستل سوه او د کندهار ننداري لخوا په دې اړه د ناټک یوه ننداره هم وړاندې سوه .

وروسته ډاکټر طارق رشاد څه څرګندونې واورولې او په پای کښې د غونډې خبرنه د اطلاعات، کلتور او ګرځندوی رئیس عبدالمجید بابي لخوا وسوه، هغوی د دې ورځې مبارکي وړاندې کړه، غونډه یې ډېره لوړه او د ښه خوند رنګ څخه ډکه وبلل . د غونډې وروستۍ برخه سوغاتونو ته بېله سوې وه چې زیاتو ښوونکو ته وړاندې سوه .

۞ ۳ شنبه د غبر ګولي ۳ یمه :

د کندهار ښار د ترافیکي زیګنال د جوړېدو لپاره کندهار والي ګل اغا شېرزي سره د ایران د اسلامي جمهوریت سرقنسل زین الدین شیخ د منډیګک په ماڼۍ کښې وکتل .

کندهار والي لومړي د ایران د هیواد د سوو مرستو څخه مننه وکړه، وروسې سرقنسل په کابل کښې د ایران د اسلامي جمهوریت د سفارت د مشر تابه مننه چې په کندهار کښې ورته تود هر کلي ویل سوی وړاندې کړه .

وروسته شیخ د دواړو ګاونډیو هیوادو تاریخي او فرهنګي اړیکي یادې او ژمنه یې وکړه چې د کندهار په جوړ کښې به برخه ولرو، او په لړ کښې به یې د ترافیکو د زیګنال جوړول هم پر غاړه واخلو .

۞ ۵ شنبه د غبر ګولي ۵ مه :

په اداري غونډه کښې چې د کندهار والي او سلاکار وزیر ګل اغا شېرزي په مشرۍ د منډیګک په ماڼۍ کښې جوړه سوه د جوړو سوو سړ کانو پر ساتنه ټینګار وسو . ښاغلي شېرزي وویل : دا سړ کان د ټولو ګډه شتمني ګڼل کېږي، ګمرک ریاست ته دنده ورکړه سوه چې د بار وړونکو وسایلو د بار کچه ځانګړې او د هغه پر ته پر سړ کانو د تېرېدو څخه ور ګرځول سي .

همدارنګه د ناولو اوبو د ایستلو پر چارو هم خبرې وسوې، او د ښار او کور جوړولو ریاست ته دنده ورکړه سوه چې په دې اړه پروګرامونه جوړ کړي . د بې اسنادو موټر سایکلانو د ګرځېدو پر بندیز هم خبرې وسوې او پر یکړې تر سره سوې .

۞ ۵ شنبه د غبر ګولي ۵ مه :

په ښوونځیو کښې د لوست د چارو د ښه والي په موخه د ښوونځیو زده کړیانو او ښوونکو د کندهار والي ښاغلي ګل اغا شېرزي سره د منډیګک په ماڼۍ کښې وکتل .

سلاکار وزیر او کندهار والي د ښوونکو زیار وستایه، بیا د پوهنې رئیس حیات الله رفیقي پخپلو خبرو کښې د کندهار والي د مرستو او پاملرنې څخه مننه وکړه، وروسې څو تنو ښوونکو هم خبرې وکړې او بیا ټولو ښوونکو د ښاغلي شېرزي لخوا په جوړه سوې مېلمستیا کښې برخه واخیسته.

په دې غونډه کښې ټولو ښوونکو ته د شېرزي لخوا سوغاتونه ور کړه سوه .

۞ ۵ شنبه د غبر ګولي ۵ مه :

د سهېل لوېدیځ سمت د ملي پولیسو روزنیز مرکز ۸۶ نور روزل سوي سرحدي پولیس ټولنې ته وړاندې کړه .

په دې اړه يوه غونډه هم جوړه سوې وه چې د دې حوزې د ملي پوليسو د روزنيز مرکز قومندان مل پاسوال نصر الله ظريفي د ويناوالو د ډلي څخه مشر ويناوال و چې د دې چارو د بشپړتيا پر اهميت ورغږېد .

❁ شنبه د غبرګولي ۷ مه :

د څغاستي په لوبو کښي چي د بدني روزني د آمريت د لوري يې سيالي رابلل سوې وه او په کندهار لوبغالي کښي تر سره سوې برياليي په (۱۲) دقيقو کښي څلور سوه متره واټن وواهه او لومړۍ درجه يې تر لاسه کړه . همدارنګه محمد ګل په (۲۰) دقيقو کښي د پنځه سوه متره واټن په وهلو سره دوهمه درجه وګټل سو او د بدني روزني د آمر لخوا کپونه او سوغاتونه ورکړل سول .

❁ يکشنبه د غبرګولي ۸ مه :

د علماو شورا رئيس مولوي عبدالله فياض د خپل کار په دفتر کښي د سړک څخه د دوو تنو موټر سيکل سپورو لخوا ووژل سو . مولوي فياض د خرقې شريفي په جومات کښي ځورخي وړاندي د ملي يووالي د ټينګتيا په موخه د شلو ولايتونو د علماوُ يوه غونډه رابللې وه او هلته مولوي فياض فتوا صادره کړه چې نور د ملا عمر فتوا د منلو وړ نه ده، او د افغانستان قانوني مشر حامد کرزی دی .

❁ ۳ شنبه د غبرګولي ۱۰ مه :

د کندهار د علماو شورا رئيس مولوي عبدالله فياض د فاتحې مراسم د خرقې شريفي په جومات کښي د زرګونو تنو هيوادوالو په ګډون تر سره سوه .

مولوي فياض وړه ورځ پخپله دفتر کښي د ناپېژندل سوو سړو لخوا په شهادت ورسېد، د فاتحې په مراسمو کښې سلاکار وزير او کندهار والي ګل اغا شېرزي، د ولايتي جرګې رئيس احمدولي کرزي، مولوي جنابي، ګڼ شمېر ديني عالمانو، دولتي چارواکو، پوځي او امنيتي لوړ پوړو سړو ګډون وکړ . چي په ترڅ کښي يې د والي لخوا د ولسمشر حامد کرزي او قاضی القضات د ډاډ ګيرنې او خواشينې پيغامونه واورول سول .

ښاغلي شېرزي ژمنه وکړه چې د مولوي فياض وژونکي به نيسي او د قانون منګولو ته به يې سپاري، سبا به د مولوي فياض فاتحه د مولوي عبدالرب فياض په جومات کښي واخيستله سي .

❁ ۳ شنبه د غبرګولي ۱۰مه :

د کندهار په روغتيايي پولي کلينيک کښي دډاکټرانو د ټولني لخوا د تنباکو پر ضد نړيواله ورځ ولمانځل سوه دې غونډې ته د ډاکټرانو ټولني مشر ډاکټر پاينده محمد ارغنداوي، د نړيوال روغتيايي سازمان مسئول ډاکټر شاه ولي پوپل، د عامې روغتيا مرستيال ډاکټر عبدالجبار او د څو تنو نورو ډاکټرانو د موضوع په اړه خبرې وکړې . د غونډې په وروستيو برخو کښي پرېکړه وسوه چې د تنباکو د کاروني د مخنيوي په برخه کښي به د ډاکټرانو ټولنه خپل ټول وس پکار اچوي .

❁ ۴ شنبه د غبرګولي ۱۱ مه :

د مولوي عبدالله فياض د فاتحې په دوهمه ورځ چې د ښکارپر بازار د مولوي عبدالرب فياض په جومات کښي اخيستل کېده د يوه ځانمرګي بريد له امله قابو (۲۰) تنه د فاتحې برخه وال شهيدان او نور تر (۵۰) پوري مسلمان هيوادوال ټپيان سوه .

په شهيدانو کښي د کابل د امنيې قومندان جنرال محمداکرم خاکرېزوال او د ده دوه تنه ساتونکي هم شهيدان سوي دي .

❁ ۴ شنبه د غبرګولي ۱۱ مه :

ځورخي وړاندي په شاوليکوټ کښي د ملي اردو او طالبانو تر منځ تر سختو نښتو وروسته ملي اردو د بشپړ برياليتوب خبري کړي، او وايي طالبانو ته يې ماته ورکړېده .

❁ جمعه د غبرګولي ۱۴ مه :

د هندوستان هيواد څخه په بر ښنايي توکيو بار موټر باندي د زابل ولايت د شاه جوی په سيمه کښي د کندهار ـ کابل پر لويه لار د يو شمېر کسانو لخوا بريد وسو . په موټر کښي يو تن مړ او بل ټپي سوی دی او موټر سوځل سوی دی، دغه سامان د کجکي د بر ښنايي سيستم د بيا رغوني لپاره ځانګړی سوې وه .

❁ شنبه د غبرګولي ۱۴ مه :

د کابل د امنيه قومندان جنرال محمداکرم خاکرېزوال جنازه د کندهار د خاکرېز په ولسوالي کښي په درناوي سره خاورو ته وسپارل سوه . د جنازې د ښخېدو پر مهال سلاکار وزير او کندهار والي ګل اغا شېرزي، د جمهور سلاکار وزير ځدراڼ، د جمهوري رياست د ځانګړي دفتر رئيس جنرال محمد سرور صالحي، د لوی څارنوالی لومړي مرستيال اسحق الکو، د بلخ ولايت امنيه قومندان جنرال خان محمد مجاهد، ملا نقيب الله اخندزاده، د هرات د لوا قومندان جنرال محمد صالح، د کندهار امنيه قومندان مل پاسوال محمدايوب

سـنگین، بشـیر بغلانـي، جنـرال عبدالسـتار، د فاریـاب، جوزجان، سرپل، هرات او بغلان د ولایتونو یو شمېر استازو او د کندهار ولایت په سلګونو خلکو او د شهید خاکر بزوال دوستانو او مینه والو ګډون درلود.

خاکر بزوال تېره چارشنبه د مولوي عبدالرب اخندزاده په جومات کښي د مولوي عبدالله فیاض د فاتحې په غونډه کښي د ځان مرګي برید په ترخ کښي د (۱۹) تنو نورو هیوادوالو سره یوځای شهید سو.

د جنازې په مراسمو کښي د جمهور رئیس د خواشینۍ او ډاډ ګیرنې پیغام ولوستل سو، بیا ځینو مشرانو او د ولایتونو استازو هم د خاکر بزوال د کارنامو او ژوندانه په اړه وینا وکړې او د هغه د ارواد خوښۍ لپاره دوعاوي تر سره سوې.

۞ یکشنبه د غبر ګولي ۱۵ مه:

د کابل ولایت د امنیه قومندان جنرال محمداکرم خاکر بزوال فاتحه د خرقې مبارکي په جومات کښي د زرګونو هیوادوالو په ګډون واخیستل سوه.

جنرال محمداکرم خاکر بزوال د غبر ګولي پر ۱۱ مه نېټه په هغه بمي چاودنه کښي چي د مولوي عبدالرب فیاض په جومات کښي د مولوي عبدالله فیاض د فاتحې په ورځ د یوه نامعلومه کس لخوا تر سره سوه شهید سو.

په دې برید کښي ۲۲ تنه د فاتحې برخه وال د خاکر بزوال په ګډون شهیدان او ۶۰ تنو په شاوخوا کښي ټپیان دي.

۞ دوشنبه د غبر ګولي ۱۴ مه:

د سهېل لوېدیځ سمت د بشر د حقوقو سیمه ایز دفتر د یوې اعلامیې په ترخ کښي هغه ناوړه پېښې چي په ترخ کښي یې د علماو شورا رئیس مولوي عبدالله فیاض او بیا جنرال محمداکرم خاکر بزوال د ګڼ شمېر نورو ښاریانو سره په شهادت ورسېدل په کلکه غندلي دي. هغوی د شهیدانو د ارواخوښۍ او پاته کسانو ته یې د صبر غوښتنه کړېده.

۞ یکشنبه د غبر ګولي ۱۵ مه:

د عامې روغتیا وزیر ډاکټر سید محمدامین فاطمي په داسې حال کښي چي کندهار والي ګل اغا شېرزي، د ولایت مقام مرستیال ډاکټر همایون او یو شمېر امنیتي مسئولین ورسره ملګري وه په میرویس روغتون کښي د وروستي ځانمرګي وژني له امله د هغو ټپیانو څخه چي په همدې روغتون کښي بستر دي لیدنه وکړه. د عامي روغتیا وزارت مخکښي هم د دې پېښي د ټپیانو د درملنې لپاره څه اندازه درمل او سامان آلات د یوې ډلې ډاکټرانو سره رالېږلي وه. چي د منډیګک ماڼۍ کښي د کندهار والي لخوا د عامي روغتیا د وزارت دا هڅي وستایل سوې.

ښاغلي فاطمي د عامي روغتیا د رئیس او د دې ریاست د اړوند ډاکټرانو او کارمندانو سره هم په جلا لیدنه کښي د هغوی د ستونزو د هواري په موخه وکتل.

۞ یکشنبه د غبر ګولي ۱۵ مه:

د لوی کندهار فرهنګي مرکې نوبتي غونډه په داسې حال کښي چي د اطلاعات، کلتور او ګرځندوی رئیس عبدالمجید بابي هم شتون درلود د همدې مرکې د مشر ډاکټر طارق رشاد په مشري د NDI د غونډو په خونه کښي جوړه سوه. په دغه غونډه کښي پر کړنلاره خبرې وسوې او پرېکړه وسوه چي د برخوالو څخه دې د مسودې په توګه مواد راغونډ او وروسته به غور پر وسي. د میاشتنیو مشاعرو لپاره چي بنسټ یې د اطلاعاتو او کلتور ریاست له لوري ایښوول سوی بیا دې هم د همدې ریاست د راډیو تلوېزیون په آمریت کښي د میاشتي په وروستي یکشنبه تر سره سي.

۞ ۲ شنبه د غبر ګولي ۱۶ مه:

د ولایتي جرګې غونډه د همدې جرګې د رئیس احمدولي کرزي په مشري د منډیګک په ماڼۍ کښي جوړه سوه. لومړی د ټولټاکنو د تنظیم د ګډ دفتر مسئول وویل د کاندیدانو لست د نورو ځانګړتیاوو سره برابر او د نیوکو او انتقاداتو لپاره به د خلکو کتني ته وړاندي سي. هغه زیاته کړه چي: هغه ستونزه چي د کاندیدانو په اړه د A.D.A په مؤسسه کښي منځته راغلې وه هغه هواره سوې ده.

بیا په دې اړه نوري څرګندوني هم وسوې او وروسته د جرګې برخوالو هم د دې دفتر په چارو کښي نیمګړتیاوي په ګوته کړې. ورپسې د امنیت آمر محمدسالم احساس د امنیتي چارو په اړه معلومات وړاندي کړه، هغوی د مولوي فیاض د مړیني او بیا د هغه په جومات کښي ځانمرګي په اړه وویل:

د ولایت مقام په دروازه کښي ۶۰ تنه د ملي امنیت د ریاست لخوا ټاکل سوي وه د قومنداني ساتونکي نه د ده د مرګ په ورځ او نه بل وخت وه دغه د امنیت ملي نفر د وژلو پر مهال پر پهره حاضر نه وه.

او د جومات په اړه یې وویل: موږ هلته د شپې لا امنیت خوندي کړی و، تلاښي او ځار په ښه توګه کېده، خود

خاکر بزوال د راتګ پر مهال د تلاشي بهیر ګډوډ او د دښمن ګټه پورته کړه او خپل کار یې وکړ .

❁ دوشنبه د غبرګولي ۱۶ مه :

د ولایتي بیا رغوني ټیم د بشر د حقوقو د سیمه ایز دفتر سره د (۷۵) زره ډالرو په ارزښ د وسایطو او سامان آلاتو مرسته کړېده .

چې په هغه کښې (۲۰۰۵) ماډل پراډو موټران، کمپیوټران، جنراتور او د عکاسي کمرې شاملې دي .

❁ ۳ شنبه د غبرګولي ۱۷ مه :

د کندهار ـ سپین بولدک د لویې لارې په اوږدو کښې دوه تنه پاکستاني اتباع چې د کندهار په هوایي ډګر کښې یې میشتو هوایي ځواکونو ته د سونګ توکي راوړل د ډبرې په سیمه کښې د شپې پر ۷ بجو د طالبانو له لوري برید سوی او دواړه یې وژلي او ټانکر ته یې چې تیل یې په هوایي ډګر کي خالي کړي وه اور اچولی .

❁ ۴ شنبه د غبرګولي ۱۸ مه :

د ډاکټرانو د ټولني د رپوټ ور کولو عمومي غونډه په داسې حال کښې چې د ولایت مقام مرستیال غلام جیلاني همایون هم شتون لاره د همدې ټولني د غړو او یو شمېر دولتي چارواکو په ګډون جوړه سوه . په غونډه کښې ډاکټر عبدالجبار په تیرو ۳ میاشتو کښې د ټولني د کار رپوټ وړاندي کړ .

هغوی وویل : تر اوسه په دې تولنه کښې ۶۷ تنو ګډون تر لاسه کړی، او د دې ټولني بنسټیزه موخه د طبي چوپړونو غښتلتیا ده .

❁ ۵ شنبه د غبرګولي ۱۹ مه :

د ولایت اداري غونډه د ولایت د مرستیال ډاکټر همایون په مشرې جوړه سوه او د کندهار د چاپېریال ساتني، ترافیکي چارو سمون او اداراتو کښې د چارو د سمون لپاره پکښې پر بکړې وسوې .

❁ دوشنبه د غبرګولي ۲۳ مه :

د سهار د نهو بجو په شاوخوا کښې د کندهار د ولایتي بیا رغوني ټیم کارکوونکي چې د سیمي د خلکو سره د بیا رغوني په چارو بوخت وه د میرویس میني او میرویس نیکه زیارت تر منځ په لویه لاره د دوی د سپرلیو د کاروان سره یوه سراچه موټر چې چاودېدونکي توکي پکښې ځای پر ځای سوه وه وجنګاوه . چلونکی د یوه مخه له منځه تللی او ورسره په همدې کاروان کښې څلور تنه امریکایي اتباع ټپیان سوي دي چې د یوه روغتیایي حالت خطرناک سوول سوی دی .

❁ دوشنبه د غبرګولي ۲۳ مه :

د ایران د اسلامي جمهوریت به د سواد زده کړې د پراختیا په لاره کښې مرسته وکړي . دغه ټکی په هغه غونډه کښې چې د ایران د اسلامي جمهوریت د سرقنسلګرۍ د سرپرست رعنا قاسمي لخوا په همدې قنسلګرۍ کښې د پوهني د رئیس حیات الله رفیقي، د اطلاتو، کلتور او ګرځندوی رئیس عبدالمجید بابي د ولایت مقام د انسجام کمېټې د مسئول محمد شعیب وفا او د مېرمنو د ټولني د رئیسې صفیه عمه جاني سره په ګډه غونډه کښې څرګند کړ .

همدارنګه ژمنه وسوه چې د ښوونځیو د نجونو د لوبو لپاره به په زرغونه انا لیسه کښې جمنازیوم هم د ایران د اسلامي جمهوریت لخوا جوړ سي .

❁ ۳ شنبه د غبرګولي ۲۴ مه :

کندهار ښاروال زمري عثمان وویل : کندهار ښاروالي ۱۶۰۰ متره مکعب خځلي د ښار د بېلابېلو برخو څخه په ۱۱۳ موټرو کښې د ښاره ایستلي دي .

❁ ۳ شنبه د غبرګولي ۲۴ مه :

د مور ورځ په مېرمنو ټولنه کښې د یوې پراخې غونډې په ترځ کښې ولمانځل سوه .

په غونډه کښې زیات شمېر میندو، مېرمنو او خوندو ګډون درلود، غونډې ته د ولایت مقام مرستیال غلام جیلاني همایون، د مېرمني ټولني رئیسې صفیه عمه جاني او د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی رئیس عبدالمجید بابی د مور د لوړ مقام په اړه ویناوې وکړې، غونډه میندو ته د سوغاتونو په ورکولو سره پای ته ورسېده .

❁ ۴ شنبه د غبرګولي ۲۵ مه :

د ۲۰۵ نمبر قول اردو قومندان تورن جنرال محمد مسلم عامر وویل : د میانشین او دره نور په سیمو کښې د تیرو ورځو په پوځي خوځښتونو کښې ۱۵ تنه مخالفین نیول سوي دي . هغه وویل : زموږ د پلټني چاري پرون پای ته ورسېدې، هغه وویل په میانشین کي ۱۱ تنه مخالفین نور هم ژوندي نیول سوي او ۷ تنه وژل سوي او ۱۰ تنه یې ټپیان سوي دي .

هغه زیاته کړه : چې ۴ تنه سرتیري هم ټپیان سوي دي .

❁ ۵ شنبه د غبرګولي ۲۶ مه :

د ګونګو د يوه ځوان او ځوانيمرګ شاعر بارګامي د شعرونو د لومړۍ ټولګې څخه (۱۰) ټوکه نن د هغه د يو تن دوست لخوا د عامه کتابتون لپاره د اطلاعاتو، کلتور او ګرځندوی رئيس عبدالمجيد بابي ته وسپارل سوه، چې په خوښۍ او د کورودانۍ په ډيلو سره ومنل سوه .

❁شنبه د غبرګولي ۲۸ مه :

د سپين بولدک ولسوالۍ په مرکز کښې د اوبو رسولو پروژه بشپړه او د ولايت مقام د مرستيال غلام جيلاني همايون لخوا په داسي حال کښي چي د ولايتي رغوني، امنيې قومنداني، قومو او يمو استازو هم برخه لرله د پټې په پرې کولو سره پرانستل سوه . د دې پروژې مالي لګښت د ولايت بيا رغوني د ټيم لخوا تر سره سوی او د بازار ټولو دوکان لرونکو، او دولتي موسسو ته به د څښلو پاکي اوبه ور کړه سي .

❁يکشنبه د غبرګولي ۲۹ مه :

د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی رياست او لوی کندهار د کلتوري مرکې لخوا د هيواد د اوسمهال پياوړي ليکوال او خبرونکي محمدمعصوم هوتک په وياړ د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی رياست د راډيو تلوېزيون په آمريت کښي يوه پراخه شعر غونډه جوړه سوه .

په پيل کښي شعرغونډي ته د اطلاعاتو کلتور او ګرځندوی رئيس عبدالمجيد بابي وينا وکړه او د ښاغلي محمدمعصوم هوتک د لوړ علمي شخصيت او دې ډول فرهنګي هڅو پر ارزښ وړغېدی، بيا د لوی کندهار د کلتوري مرکې مشر ډاکټر طارق رشاد د هوتک پر آثارو وړغېد . وروسته ګڼ شمېر شاعرانو خپل شعرونه واورول چې په ترڅ کښي يې خپله ښاغلي هوتک هم د شعر غونډې برخوالو ته خپل څو ټوټې شعرونه ولوستل او د غونډې د رابلونکو څخه يې مننه وکړه .

❁ ۵ شنبه د چنګاښ دوهمه

د ولايت مقام اداري غونډه د سلاکار وزير او کندهار والي ګل اغا شېرزي په مشري د منډيګک په ماڼۍ کښي جوړه سوه .

په غونډه کښي د سمينټو او پخو خښتو د بيو لوړوالي تر غور لاندي ونيول سو او وروسته د ښار او کورو جوړولو . ښاروالۍ، کار او ټولنيزو چارو، کانو او صنايعو رياستونه توظيف سوه څو په دې برخه کښي تر بشپړه غور وروسته راتلونکي غونډې ته ځرګند تيا برابره کړي .

❁جمعه د چنګاښ ۳ يمه :

د ارغنداو په ولسوالي کښي د ملي اردو د سرتېرو او ميوند ولسوالۍ د امنيه قومندان عبدالحکيم د نفرو تر منځ په تېروتنه سره په شخړه کښي د هره اړخه يو يو تن وژل سوي دي . دا نيښته هغه مهال پيل سوه چي د ميوند ولسوالۍ امنيه قومندان په ناګهان کښي و خپل کور ته راغلی و .

❁ شنبه د چنګاښ ۴ مه :

د جمهوري رياست سلاکار وزير او کندهار والي ګل اغا شېرزي، د ولايتي جرګې رئيس احمدولي کرزي او د زابل والي الحاج ارمان د ميانشين ولسوالۍ د خلکو په پراخه غونډه کښي برخه واخيسته چي په لړ کښي يې د دې ولسوالۍ د يني عالمانو او د خلکو استازو د دې ولسوالۍ د وروستيو پيښو په باب ځرګندوني واورولې او د ملي اردو، ملي پوليسو او ائتلافي ځواکونو د مرستي څخه يې مننه وکړه .

وروسته ښاغلي شېرزي د موضوع په اړه وينا واورول او د دغو وروستيو ناوړو پيښو په کلکه غندنه يې وکړه . د يادوني وړ ده د وروستيو جګړه ايزو عملياتو وروسته د ۱۰۰ کسو طالبانو د مړيني او د ملي اردو د ځواکونو د (۸) کسو د مړيني په اړه هم ځرګندوني وسوې .

❁شنبه د چنګاښ ۴ مه :

د پارلماني ټولټاکنو لپاره د رايو ور کولو د کار ټونو تر لاسه کول په سهېل لوېديځ سمت کښي په ۸۴ مرکزونو کښي پيل سوه .

❁شنبه د چنګاښ ۴ مه :

د ميانشين پوځي کړني پای ته ورسېدې . دا کړني تر هغه وروسته پيل سوي چي طالبانو د دې ولسوالۍ د ولسوال ملک نورمحمد په مرسته د هغه ولسوالۍ امنيه قومندان نانی اغا او ۷ تنه نور ساتونکي پوليس غرغره کړل .

په دغو پوځي کړونو کښي ۱۷۸ تنه مخالفين وژل سوي او ۸۰ تنه نور ژوندي نيول سوي دي .

❁ ۲ شنبه د چنګاښ ۶ مه :

د جمهور رئيس سلاکار وزير او کندهار والي ګل اغا شېرزي د کندهار د سپين ږيرو، ولايتي جرګې د استازو او رئيس احمدولي کرزي، د پوهني د رئيس، ښوونکو، اداري کسانو او اړوندانو، ښاروال او د ښار د مخورو، ديني عالمانو او ملي سوداګرو سره د منډيګک په ماڼۍ کښي په مخه ښه وکړه او د خبرو په ترڅ کښي يې ووېل : زما په اړه جمهور رئيس وړ ګڼلي ده چي د ننګرهار ولايت د والي په توګه مې

وټاکي . افغانستان ټوله زموږ کور دی، زموږ هيله د وران افغانستان ودانول دي .

د وينا په بله برخه کښي يې وويل : که څوک زما څخه زهير سوي وي بخښنه غواړم . ده وويل : ما په کندهار کښي د ۲۰ ميليونو ډالرو په لګښت پروژې پيل کړي چي انشاء الله پر مخ به ولاړي سي .

وروسته سيد عبدالظاهر آغا، احمدولي کرزي، او کمال الدين اخوندزاده پخپلو خبرو کښي د ښاغلي شېرزي چاري وستايلې .

۞ ۲ شنبه د چنګاښ ۶ مه :

د کلو د پراختيا رياست له لوري د ډنډ ولسوالي په مربوطاتو کښي د دې سيمي د مشرانو په ګډون دوې نوي پروژې پرانستل سوې .

د کليو د پراختيا رئيس احمدشاه پيرعلي وويل : د دغو پروژو لګښت چي د برښنا جنراتور او د چښلو اوبو امکانات دي يو نيم ميليونو افغانيو ته رسيږي .

۞ ۲ شنبه د چنګاښ ۶ مه :

د ولايت مقام اداري مرستيال غلام فاروق فرهمند د شاوليکوټ ولسوالي د ګمبدي د کلي د خلکو سره وکتل هغوی خپلي سيمه ايزي ستونزې په ځانګړې توګه د طالبانو لخوا د ورتګ او هلته د خلکو د ځورولو په اړه ښاغلي فرهمند ته څرګندوني وکړې .

۞ ۳ شنبه د چنګاښ ۷ مه :

د کندهار د ډنډ ولسوالي د ۱۱۷ تنو کليوالي شوراګانو د مسئولينو دوه ورځني ورکشاپ د کليو د پراختيا د رياست او هبيتات مؤسسي په مرسته په ميوند هوټل کښ جوړ سو چي په هغه کښي به د کليوالي شوراګانو د مسئولينو واکونه او د منظور سوو پروژو په اړه څرګندوني وړاندي سي .

۞ ۵ شنبه د چنګاښ ۹ مه :

د سهېل لوېديځ سمت د ملي پوليسو د روزنيز مرکز څخه نور ۳۶ تنه افسران د ټاکلي مودې تر روزني وروسته فارغه او اړوندو قطعاتو ته ولېږل سول . په دې اړه جوړې سوي غونډې ته د نورو برخوالو تر څنګ د همدې روزنيز مرکز قومندان مل پاسوال نصرالله ظريفي هم وينا وکړه، او د دوی څخه يې د رښتيني خدمت کولو غوښتنه وکړه .

۞ يکشنبه د چنګاښ ۱۲ مه :

د کندهار بل نامتو ديني عالم د عالمانو د شوری غړی مولو محمدنبي مصباح چي د کندهار ښار د نوي کارتې د جامع جومات امامت يې هم پر غاړه و کور ته د تللو پر مهال د ناڅرګندو سړيو لخوا د توپک په ډزو سره شهيد کړه سو .

مولوي مصباح چي په هوايي ډګر کښي رغوتون ته لېږدول سوی و همهلته يې ساه ورکړه د وژونکو ګولی د هغه پر زړه لګېدلې وه .

مولوي مصباح د مولوي عبدالکريم زوی د کندهار ولايت اوسېدونکی و . د ۴۵ کلونو واو د ژوندانه ډېره برخه يې په ديني زده کړه او د هغه په څرګندولو کښي تېره کړې وه، د ده جنازه به سبا د طالبانو په هديره کښي خاورو ته وسپارل سي .

۞ يکشنبه د چنګاښ ۱۲ مه :

د هغو کسانو لپاره چي د ټولټاکنو د ګډون او رايي ورکوني کارټونه يې ورک يا يې ۱۸ کاله عمر بشپړ کړی او يا د خپل ولايت لپاره يې د همهغه ولايت په نوم کارټ تر لاسه کوي په کندهار کښي مرکزونه پرانستي دي او ځايونه يې په لاندي ډول دي :

د محمود طرزي لېسه : د نارينه ولپاره .

عينو لېسه : د ښځو لپاره .

د ښوونکو عالي مؤسسه د نارينه و او ښځو لپاره .

د شهيد عظيم الله لومړني ښوونځی : د نارينه او ښځو لپاره .

د ډنډ ولسوالی د ده باغ فرقه : د نارينه او ښځو لپاره .

د شاه وليکوټ ولسوالی مرکز د نارينه او ښځو لپاره .

د ارغنداو ولسوالی د بابا صاحب کلينيک : د ښځ ولپاره .

په خاکرېز ولسوالي کښي د نارينه او ښځو لپاره .

د غورک په ولسوالۍ کښې کلینیک : د نارینه و لپاره، او مرکزي کلینیک د ښځو لپاره .
د میوند په ولسوالۍ کښې د ښځو او نارینه و لپاره .
د ژړۍ ولسوالۍ مرکز د نارینه لپاره، هلته د موټرونو پلورنځی د ښځو لپاره .
د پنجوايي د نجونو ښوونځی د نارینه او ښځو لپاره .
د ریګ ولسوالۍ مرکز د نارینه او ښځو لپاره .
د ښوراوک ولسوالۍ مسجد د نارینه و لپاره، او دلته د حاجي محمد لاجورد کور د ښځو لپاره .
د سپین بولدک ولسوالۍ د غازي عبدالله خان لېسه د نارینه و او ښځو لپاره . د سپین بولدک د حاجي نیکه ښوونځی د نارینه و او ښځو لپاره . د دې ولسوالۍ د کاک نیکه ښوونځی د نارینه و لپاره .
د ملک کبیر ښوونځی د ښځو لپاره .
د مخابراتو مدیریت د نارینه و او ښځو لپاره .
د تخته پل ولسوالۍ دولتي کور د نارینه و لپاره . د همدې ځای د قومندان کور د ښځو لپاره .
په ارغستان کښې د محمد نیکه لېسه د نارینه و او ښځو لپاره .
د نېش په مرکز کښې د نارینه و او ښځو لپاره .
همدارنګه په دامان، ارغنداو، ژړۍ او پنجوايي ولسواليو کښې یو یو مرکز د کوچي هیوادوالو لپاره پرانستل سوي دي .
۞ ۲ شنبه د چنګاښ ۱۳ مه :
د سهېل لوېدیځ سمت د ټولټاکنو د تنظیم ګډ دفتر د یوه خبري کنفرانس په لړ کښې څرګنده کړه چې په هیواد کښې تر ۶۰۰۰ تنو پوري ولسي جرګې او ولایتي جرګو ته ځانونه کاندید کړي دي . د ګیلو له مخي ۶۶۵ تنه بیرته د لنډ مهال لپاره د نوم لیکنو د پاڼو څخه ایستل سوي دي . همدارنګه د ۲۰۸ تنو وسله والو یا قومندانانو نومونه هم د لستونو څخه لیري سوي دي همدا ډول د ۱۲ کاندیدانو سندونه نیمګړي، ۱۲ تنو په دولتي چوکیو کښې کار کاوه او یو تن هم چې د ټولټاکنو په دفتر کښې یې کار کاوه ګوښه سوي دي .
هغوی څرګنده کړه په کندهار کښې ۳۱ ـ اعتراضونه پر ۲۱ تنو کاندیدانو سوي چې (۷) تنه یې د لست څخه ایستل سوي دي . د لست لوېدلي کسان کولای سي د چنګاښ تر ۳۰ پوري د ځان دفاع وکړي .
۞ ۲ شنبه د چنګاښ ۱۳ مه :
د ښځو له پاره جوړ سوي پنځه بابه حمامونه چې د ملګرو ملتو د پراختیایي اداري HNDP لخوا جوړ سوي وه د کندهار والي اسدالله خالد لخوا په داسي حال کښې چې د ننګرهار والي او د ولسمشر سلاکار وزیر ګل اغا شېرزی هم حاضر و پرانستل سوه .
۞ ۳ شنبه د چنګاښ ۱۴ مه :
کندهار والي اسدالله خالد د دولتي ادارو د مسئولینو سره د پېژندګلوۍ په غونډه کښې چې د منډیګک په ماڼۍ کښې تر سره سوه برخه واخیسته .
په دې غونډه کښې رئیسان یو په بل پسې ښاغلي والي ته ور وپېژندل سوه او بیا هغوی ته د همکارۍ ډاډ ور کړه سو .
بیا کندهار والي د هغوی د همکارۍ او ښه کار کولو څخه مننه وکړه او غوښتنه یې وکړه چې راسئ د ثبات د تأمین او د قانون د حاکمیت له پاره لاسونه سره ورکړو . په خبرو کښې هغوی د ګل آغا شېرزي د هڅو ستاینه هم وکړه .
۞ ۴ شنبه د چنګاښ ۱۴ مه :
د امنیتي چارو د سمون مرکز په داسي حال کښې چې د ائتلافي قواوو قومندان، د ۲۰۵ نمبر قول اردو او امنیه قومنداني قومندان د ملي امنیت رئیس او د کابل کندهار د لویي لاري مسئولینو هم شتون درلود د کندهار والي اسدالله خالد لخوا د پټۍ په پرې کولو سره پرانستل سوه . په دې مرکز سره به په راتلونکي کښې ټول امنیتي مسائل د ټولو امنیتي ارګانونو او مسئولینو سره د تفاهم له لاري تر سره سي .
۞ ۵ شنبه د چنګاښ ۱۶ مه :
د نیول سوو ورانکارو په اړه کندهار والي د خبریالانو پوښتنو ته د منډیګک په ماڼۍ کښې ځوابونه وویل .

کندهار والي اسدالله خالد وویل یو دري کسیزه ګروپ درې ورځې مخکې د لوی ویالې په سیمه کښې د څلورو ماینونو او سندونو سره نیول سوی دی او دوه تنه نور د پولې ځخه د رااوښتلو پر مهال د رایي ورکونې په مرکز کښې نیول سوي دي .

۞ ۵ شنبه د چنګاښ ۱۶ مه :

د ولایت اداري غونډه د منډیګک په ماڼۍ کښې د کندهار والي اسدالله خالد په مشري جوړه سوه . په غونډه کښې د کندهار د نخي نساجي فابریکې د بیا پکار اچولو په برخه کښې هر اړخیزه خبري وسوې دا چي په دې برخه کښې یو سوداګر د ۳۰ زرو ډالرو لګښت ته چمتو سوی غونډې پریکړه وکړه چي دا مبلغ دي د ولایت مقام لخوا برابر او د سوداګر سره دي د قرار داد له مخې دا چاري مخته یووړه سي .

۞ ۵ شنبه د چنګاښ ۱۶ مه :

د ارواښاد رحمت الله کرزي د فاتحې مراسم د زرګونو هیوادوالو، اداري، امنیتي او پوځي چارواکو او اړوندانو چي کندهار والي اسدالله خالد او قیوم کرزي هم ګډون پکښي درلود په سره جامع کښي تر سره سوه .

ارواښاد کرزی چي د ژوندانه ډېره برخه یې د ژورنالیزم او مطبوعاتو او نشراتي هڅو په برخه کښي تېره کړې وه د ورپیښي ناروغی له امله په دې نژدې و کښي د امریکا د متحده ایالاتو ته سفر کړی خود بده مرغه هلته یې د نړۍ څخه ستر ګې پټې او جنازه یې هیواد ته په راوړلو سره پرون په کرز کښي د دوی پخپله پلرنۍ هدیره کښي خاورو ته وسپارل سوه .

۞ ۵ شنبه د چنګاښ ۱۶ مه :

کندهار خلکو خبر تر لاسه کړ چي د همدې ورځي په لومړیو ګړیو د سهار د نهو بجو په شاوخوا کښي د ارواښاد علامه رشاد بابا کشر ورور استاد عبدالقدوس نجیب د ۸۳ کالو په عمر د امریکا د متحده آیالاتو د کلفورنیا ایالت د لاس انجلس د ښار د ویب هیل په روغتون کښي تر روغتیایي عملیاتو وروسته په حق ورسېد .

۞ ۲ شنبه د چنګاښ ۲۰ مه :

د ولایتي جرګې غونډه د جرګې د رئیس احمدولي کرزي په مشري د منډیګک په ماڼۍ کښي جوړه سوه .

غونډي ته ښاغلي کرزي د کندهار والي اسدالله خالد د ژمني څرګندونه وکړه چي هغوی ورته ویلي زه په ټول توان د جرګې ملاتړ کوم ورپسې د ټولټاکنو د دفتر د بهرنیو اړیکو مسئول تیرنس وایټ د پارلماني ټولټاکنو له پاره د نوم لیکنې د بهیر څخه خوښي څرګنده کړه خو د ښځو لږه برخه اخیستنه په غونډه کښي د ترانسپورټ ستونزي وبلل سوې .

همدارنګه د محمد حسین د کباړي په ساحه کښي د خپل سرو دوکانو د جوړوني په اړه د هغه د کورنۍ عرضپاڼه او د ښاروالۍ ستونزي وڅېړل سوې .

۞ دوشنبه د چنګاښ ۲۰ مه :

د ملي پوستون د پروګرام اړوند د ارغنداو، دامان او ډنډ ولسوالیو کښي په ۳۷ کلیو کي د بیا ودانولود ورکړل سوو پروژو د ښه سرته رسېدني او د سیمه ایزو شوراګانو د ښه ورتیا له امله د کلیو د پراختیا ریاست او هېبتات مؤسسې لخوا ستاینلیکونه ورکړه سوه .

۞ شنبه د چنګاښ ۲۵ مه :

د پارلماني ټولټاکنو له پاره په سهیل لوېدیځ سمت کښي ۱۵۲ زرو او پنځو تنو نارینه وًاو ښځو خپل نومونه لیکلي او د رایي کارټونه یې تر لاسه کړي دي .

د دې ډلي څخه ۶۸۶۸۱ د کندهار ولایت څخه دي .

۞ یکشنبه د چنګاښ ۲۶ مه :

د پنجوایي ولسوالۍ د شمس الدین کاکړ لېسه او د دې ولسوالۍ د بازار د اوبو رسولو پروژه د کندهار والي اسدالله خالد لخوا پداسي حال کښي چي تېرنیو مشرانو، دیني عالمانو، د بیا رغوني ډلي څخه کرنل بال او د پوهني رئیس حیات الله رفیقي هم شتون درلود پرانستل سوه .

لومړۍ د پنجوایي ولسوال نیازمحمد سرحدي ښه راغلاست ووایه ورپسې د کندهار ولایت د پوهني

رئیس، د بیا رغوني د اداري څخه مننه وکړه او ورپسې ځرنل بال د لامرستو ژمنه وکړه ورپسې د پنجوايي ولسي شوری مشر حاجي آغا لالي او د دې ولسوالی ښاروال نورمحمد اوبیا ملا محمد اسمعیل خبري وکړې په وروسته کښې کندهار والي اسدالله خالد خلکو ته د هغوی د ستونزو د هواري ژمنه ورکړه او د روانو حالاتو په اړه یې هر اړخیزه خبري وکړي. پروژه د (۱۳۵۰۰۰) ډالرو په لګښت پای ته رسېدلې ده.

۞ دوشنبه د چنګاښ ۲۷ مه:

د ملکي مامورینو د زده کړي او ارزيابۍ روزنیز ورکشاپ د ملګرو ملتو د پرمختیايي اداري په مالي مرسته او د اداري اصلاحاتو د خپلواک کمیسیون له لوري د منډيګک په ماڼۍ کښي جوړ سو.

په دې ۳ ورځني ورکشاپ کښي د سهېل لوېديځ سمت ۱۳۰ تنه مامورینو ګډون درلود.

۞ چهارشنبه د چنګاښ ۲۹ مه:

د یونیسف اداري (۶) میاشتني چاري د یوې غونډې په ترخ کښي چي کندهار والي اسدالله خالد د سهېل لوېديځ سمت د پوهني، کلیو د پراختیا کار او ټولنیزو چارو رئیسانو او د ملګرو ملتونو د اداري یو شمېر کسانو هم شتون درلود وڅېړل سوې، غونډې ته د (۶) میاشتو په ترخ کښي د کوچنیانو د ښه راتلونکي په برخه کښي د دې اداري رپوټ وړاندي سو.

او د برخوالو له لوري تر وړاندیزونو وروسته په ګډه د همغاړیتوب ژمنه تر سره سوه.

۞ ۴ شنبه د چنګاښ ۲۹ مه:

د انتخاباتو له پاره د ډاډمن امنیت د برابرولو په موخه د سهېل لوېديځ سمت د والیانو ګډه غونډه د ائتلافي ځواکونو د مسئولینو په ګډون د هوايي ډګر په تالار کښي جوړه سوه.

تر څنګ یې د امنیتي ستونزو په اړه هم تر غور وروسته پریکړې وسوې، وروسته د کندهار والي اسدالله خالد، د هلمند والي ملا شېر محمد اخندزاده، د زابل والي ارمان او د روزګان والي جان محمد د خبریالانو پوښتنو ته ځوابونه وویل.



## شین سترګي مستخدمین په افغانستان

۱۵. سفرنامه ... ۲۴۳ مخ.

۱۶. وګورئ Under the absolute Amir ۱۳۰، ۱۸۲، ۱۸۵ مخونه. د فرانک مارتین په باب دي د همدې لیکني شپږم مخ ته مراجعه وسي.

۱۷. هماغه اثر - ۲۹۵ مخ.

۱۸. ستیفن ویلر - ۲۲۴ مخ. پاته په ( ) مخ کي

۱۹. سفرنامه ... ۳۷۷، ۳۷۸ مخونه.

۲۰. ستیفن ویلر The Amir Abdur Rahman ۲۲۴ مخ. جالینوس او بقراط د لرغوني طب دوه مشهور طبیبان وو.

۲۱. هماغه ځای، هماغه مخ.

۲۲. هماغه اثر ۲۳۵ مخ.

۲۳. دغه نوم په سفرنامه ... او پښتو تاج التواریخ کي "کلمنتیس" ثبت سوی، چي زما په خیال سم نه دئ. د (کلیمینس) په شکل لیکنه یې ما د ډاکټرګرې له کتابه واخیستله. (هوتک).

۲۴. اې د کورټ آف د امیر _ ۴۷۱، ۴۷۲ مخونه.

۲۵. هماغه اثر ۴۷۶ مخ.

۲۶. د افغانستان تاریخي پېښلیک ۱۸۰ مخ.

۲۷. هماغه اثر ۸۳ مخ.

۲۸. ستیفن ویلر The Ameer Abdur Rahman ۲۲۵ مخ.

۲۹. د ده نوم په سفرنامه ... او پښتو تاج التواریخ کي "دالتر" چي د والتر ناسمه لوستنه ده او د "والتر" په نامه کي د "واو" توري له مغشوشي لیکني څخه پېښه سوې ده.

۳۰. سفرنامه ... ۳۵۴ مخ.

۳۱. ستیفن ویلر The Ameer Abdur Rahman _ ۲۲۵ مخ.

۳۲. اې د کورټ آف د امیر _ ۴۴۱، ۴۷۶ مخونه.

۳۳. سفرنامه ... ۳۸۲ مخ، پښتو تاج التواریخ _ ۲۹۴ مخ.

۳۴. فرانک مارتین Under the Absolute Amir ۱۷۵ مخ _ ۱۹۰۷ م.

۳۵. جیویټ An American Engineer in Afghanistan _ ۸ مخ.

۳۶. فرانک مارتین _ ۱۸۵ مخ.



د ځینو ماخذونو د نستوالي له وجې مې ونه سوای کولای چې په عمومي ډول پر پښتو لنډې کیسې نظر څرګند کاندم، ځکه مې نو خپلې لیکنې ته (په افغانستان کې پښتو لنډه کیسه) نوم ورکړ، چې په دې لیکنه کې به د هغو لیکوالو په باب یادونه وکړم چې په افغانستان کې یې پښتو لنډې کیسې ته کار کړی دی. البته دا لیکنه تحلیلي بڼه نه لري بلکې په لنډ ډول د هغو لیکوالو ذکر پکښې سوی دی چې د پښتو لنډې کیسې په پرمختګ کې یې ونډه لرلې ده، د نورو ماخذونو د پیدا کېدو په صورت کې به له افغانستان څخه د باندې لیکوالو د کیسو یادونه هم وسي او دغه اوسنۍ لیکنه چې په افغانستان کې پر پښتو لنډې کیسې یو ځغلند نظر دی، بڼه ترا پراخه سوې او تحلیلي او څېړنیزه بڼه به یې هم پیدا کړې وي.

پټیال ـ ۱۸ وری ۱۳۸۴ ل

## لومړی څپرکی

**الف ــ لومړۍ دوره (معاصره لنډه کیسه)**

په پښتو کې د نوي معاصر نثر د پیدا کېدو څرکونه موږ د مولوي نورمحمد نوري افغاني په ورو حکایتونو کې لیدلای سو او د ده لیکلي واړه حکایتونه د دې لړۍ د نثر لیکنې په لومړنیو تجربو کې شمېرل کېږي.

مولوي نورمحمد نوري افغان د غنچه روه په وروستیو برخو کې د اوولسو په شاوخوا کې واړه ـ واړه حکایات په ډېره خوږه ژبه کښلي او د خپلو خلکو له محاورې سره سم او د پښتو د کندهارۍ لهجې سهي مطابق یې لیکلي دي. مولوي نورمحمد نوري غنچه روه په ۱۲۸۰ هـ ق کال کې بشپړ کړی دی (د پښتو ادبیاتو تاریخ 'لرغوني او منځنۍ دوره' د سرمحقق زلمي هیوادمل. ۲۷۵ مخ. ۱۳۷۹ ـ د پېښور چاپ).

دغه راز د دغه بهیر بل سرلاری د هشنغر د تنګي مولوي احمد (۱۲۶۱ ــ ۱۳۰۰ هـ ق) دی، ده په نظم او نثر ډېر آثار کښلي او ژباړلي دي. د ده نثرونه د پښتو نثر لیکنې د دغه اصلاحي جریان بشپړوونکي او د پښتو هنري نثر لیکنې له پاره د بنسټ په توګه دي.

د مولوي احمد په منثورو آثارو کې یوه د آدم و درخانۍ کیسه ده چې په ډېر روان نثر کښل سوې ده، دا کیسه په ۱۸۷۲ م کال کې په لاهور کې چاپ سوې ده او د سرمحقق هیوادمل په وینا د مولوي احمد د نثر لیکنې ټول کمال سړی د همدې کیسې په نثرونو کې لیدلای سي. د مولوي احمد بل مهم اثر ګنج پښتو دی چې ۴۹ پښتو حکایتونه پکښې راغلي دي. دا حکایات زیاتره له نورو حکایتي آثارو څخه ژباړل سوي دي او له مثنوي معنوي څخه یې هم ډېر حکایات را اخیستي دي.

د مولوي احمد (۱۲۶۱ ــ ۱۳۰۰ هـ ق) د ګنج پښتو د یوې قصې یوه لنډه بولګه په دې ډول ده:

یوه ورځ شاګردانو وغوښتل چې په خپل استاد چې دوی ورنه په تکلیف وو او دوی سره یې ښه روش نه کاوه ملنډې ووهي او څو ورځې د دې بدګذران استاد نه ځان خلاص کړي نو داسې مصلحت یې په خپل منځ کې سره وکړ چې موږ ټول به په جدا جدا توګه استاذ ته ووایو چې استاده! نن دې رنګ ډېر خراب دی او بڼه دې ژیړه ده لکه چې مریض یې، کله چې استاد راغی نو هر یوه ورته په خپل وار وویل: نن دې ولې رنګ ژیړ دی؟

څرنګه چې استاذ د خپلو شاګردانو نا آرامي او اخلاص ولید نو وار یې خطا سو او دا خبره یې زړه ته ولوېده چې ربښتیا ناروغه یم هماغه وو چې کور ته ولاړ او په بستره کې وغزېد، شاګردانو ته دې پیښې ښه موقع په لاس ورکړه چې چټې چټې په کوڅو او بازارونو کې وګرځي (پښتو هنري نثر، د ګ. ف ګیرس، مترجم سرمحقق معتمد شینواري، ۲۰ مخ، ۱۳۶۵ ل کال د کابل چاپ).

تر مولوي احمد وروسته د نوي نثر په دوره کې میراحمدشاه رضواني (۱۸۶۳ ــ ۱۹۳۷ م) دی چې د پښتو نثر په هنري کولو کې یې زیاته ونډه اخیستې ده او ځیني حکایتي آثار یې هم کښلي دي. د میر احمدشاه رضواني په (شکرستان افغاني) کې یوه قصه د (بوډۍ غوا) په نامه ده چې وړه بولګه یې په دې ډول ده:

یوه ورځ بوډۍ څه کار پسې له کوره ووته اتفاقاً له یوې خوا غوا له موږي نه خلاصه سوه او له بلې خوا د کوټې دروازه بیرته وه، غوا کوټې ته ننوته. لږ بره وګرځېده او د ورو کولپې مخې ته ورغله، دې غوښتل چې اوړه وخوري. مګر موفقه نه شوه او کولپې یې په ښکرونو کې ونښته او په اوړو یې سر ککړ سو او یو عجیب شی ور نه جوړ شو. کوم وخت چې بوډۍ بیرته کور ته راغله، چې ګوري یو عجیب شی د دې سترګو ته ورغی. بوډۍ ته غوا ور یاده شوه. مګر د غوا سره یې مشابهت نه درلود. دې یقین وکړ چې دا پیری ده، نو د چغې په حال کې د وره نه ووته. وروسته ښکاره سوه چې غوا ده او کولپې یې په ښکرونو کې نښتې دی اوس د دې دپاره چې کولپې څه رنګه خلاص کړي او څه چاره ورته وسنجوي نو (اوقی) یې د کومک دپاره ور وغوښت، اوقی غوا حلاله کړه مګر کولپې هم په دې کش او ګیر کې مات شو، په دې وخت کې اوقی وژړل او بیا یې وخندل. یوه هزاره ورنه پوښتنه وکړه چې ولې دې وژړل او ولې دې بیا وخندل. ده ځواب ورکړ چې ومې ژړل ځکه که چیري زه درکې نه وای نو تاسې به څه کول او

ومې خندل ځکه چې زه په دې تصادف پوه نه سوم چې ولې غوا ولاړه او هم کولپې مات سو (یاد سوی اثر، ۲۱_۲۲ مخونه).

د حضرت خوشال خان خټک (۱۰۲۲ _ ۱۱۰۰ هـ ق) او د ده د کورنۍ او پیروانو تر نثري سبک را وروسته په لومړي قدم کې مولوي احمد، میراحمد شاه رضواني، منشي احمدجان (۱۸۸۲ _ ۱۹۵۱ م)، میا حسیب الله کاکاخېل (۱۰۳۵ هـ ق مړ)، میا محمد یوسف کاکاخېل او بیا په ترتیب سره قاضي رحیم الله او استاد راحت الله زاخیلي د پښتو نثر په هنري کولو کې برخه اخیستې ده (ښکلا مجله، ۱۳۸۲ ل کال د دوهم کال لومړۍ گڼه، په پښتو کې نظم ته ډېره اړتیا ده که نثر ته" د عبدالقدیم پتیال مقاله، ۳۳ مخ).

دغه راز د عبدالرؤف نوشهروي او محمد یوسف کاکاخېل (یو څو تاریخي افسانې) هم د یادوني وړ دي چې د استاد حبیب الله رفیع په قول د پښتو ادب یوشهکار دی (وگوره: پښتو پانگه د حبیب الله رفیع، لومړی ټوک ۱۳۸ مخ).

پورتنیو کسانو په پښتو نثر کې یو نوی بدلون راوستی او په تېره د حکایتي آثارو په برخه کې یې ډېر کار وکړ. موږ که د پښتو پر نوي هنري نثر ږغیږو، نو یاد سوي ټول کسان یې په مؤسسینو کې شمېرل کیږي.

دغو کسانو د پښتو پر نثر یو نوی وړ پرانیست چې بیا وروسته پسې وپالل سو. مگر په لومړي قدم کې خو دغه کسان ډېر حقداره دي. ځکه چې موږ چې نن روخ د پښتو هنري نثر پر هر فورم ږغیږو، نو دا خو د دوی برکت و چې هنري نثر لیکلو ته یې لاره هواره کړه.

د لنډې کیسې په برخه کې د استاد راحت زاخیلي (۱۳۰۲ هـ ق زوکړه) تر ټولو د لومړي مقام خاوند دی او موږ که په عمومي ډول پر پښتو لنډې کیسې ږغیږو. نو استاد زاخیلي په پښتو کې د په ټول پوره کیسې مؤسس بللای سو. د استاد راحت زاخیلي نتیجهٔ عشق پښتو ناول او پښتو افسانې آثار د پښتو په داستاني برخه کې د خورا درانه مقام درلودنکې دي او د دوی پښتو کیسې د پښتو لنډې کیسې لومړنۍ بیلگې بللای سو. که یو وخت پوښتنه وسي چې په پښتو کې بشپړه لنډه کسیه د لومړي ځل له پاره چا کښلې ده؟ نو په ځواب کې به ورته ووایو چې استاد راحت زاخیلي.

د استاد راحت زاخیلي لومړنۍ لنډه کیسه د (شلېدلې پڼه) او دوهمه یې د (کونډه نجلۍ) په نامه ده چې د معاصرې لنډې کیسې پر ټولو اصولو برابرې کیسې دي. (نوې ادبي تیوري، د محمدنبي صلاحي، ۱۶۸ مخ، ۱۳۶۸ ل کال د کابل چاپ).

مگر په افغانستان کې د لومړنۍ پښتو لنډې کیسې د لیکلو تاج د لوی استاد علامه عبدالحی حبیبي رحمه الله پر سر ور اینبوول کیږي او لکه څنگه چې د ادب په بېلابېلو برخو کې د بنسټ اېښوونکي رول لري. دغسې د پښتو لنډې کیسې بنسټ هم دوی اېښی دی.

په ۱۳۱۲ ل (۱۹۳۳ م) کې د کندهار د طلوع افغان جریدې په گالنۍ کې د علامه حبیبي رحمه الله یو داستاني نثر خپور سو. د دغې داستاني طرحې سرلیک و "د سرو زرو گېند (توپ)" او د ښاغلي زرین انځور په وینا سره له دې چې دا یوه لنډه کیسه نه ده. خو د فولکلوري روایتونو او حکایتونو په ډول یو نوی هنري داستان دی. ښاغلی انځور زیاتوي چې په دغه دستان ډوله لیکنه کې د معاصري لنډې کیسې ځیني ابتدایي څرکونه وینو (سپېڅې مجله، ۱۳۷۱ ل کال د دریم کال دوهمه گڼه د زرین انځور مقاله، ۱۷۴ مخ).

لوی استاد د خپلې یوې بلې کیسې په پیل کې داسي لیکي

د ادبیاتو په اقسامو کې روایي او قصصي اشعار په دې عصر کې خورا مهم دي. د دې لاندېنۍ کیسې په نشر کې مقصد دا دی چې پښتانه د قصصي شعر په خوند وپوهېږي. په دې قصه کې د پښتنو ساده او د حماسته ډک احساسات تصویر سوي دي چې د پښتنو پسیکولوژي "روحیات" ښه څنې ښکارېږي (ښکلا مجله، د ۱۳۸۲ ل کال پنځمه گڼه، د عبدالقدیم پتیال مقاله، ۲۷ مخ).

له پورتنۍ یادوني څخه اوڅاریږي چې لوی استاد داستان لیکنې ته پوره ځیر و او دا یې احساس کړې وه چې پښتانه او پښتو ادب حکایتي آثارو ته زیاته اړتیا لري. ځکه یې نو په دغه برخه کې تر ټولو گام مخکې کړ او په افغانستان کې یې په لومړي ځل داستان لیکنه را پیل کړه، که څه هم ځیني کسان د "سرو زرو گېند" بشپړه لنډه کیسه نه بولي، مگر په افغانستان کې د پښتو کیسه لیکنې پر لور لومړنۍ هڅه ده.

لوی استاد خپله د سرو زرو گېند کیسه په دې ډول راپیلوي

سهار لا لمر نه و راختلی چې دوه تنه دهقانان راغله. په هغه مزرعه کې چې زما تر کوټې لاندې واقع وه. په کار او یوې بُخت سوه. چې سترگې مې اړولې په نتیجه کې د دوه گړې زیار یې. وچه کلکه مځکه سره سمه او شدیاره کړه. ما پر دې قوت د مروند او ذوق د زیار د دوی رشک وخوړ. په ټولو حواسو. د دوی حرکاتو ته متوجه سوم. دې یوه ملگري بل ته داسي خوږ نقل وکړ

"په قدیمه زمانه کې یو پاچا و چې د گورداری (تاهل) څخه یې بد راتله او په نظر د نفرت یې ورته کاته. د دې پاچا عادت و چې دپاره د تفتیش د رعیتو د حال به د شپې په ښار

کې گرزېدې. څو شپې پاچا په يوه کوډغله چې توره تياره به وه راغلی او له دننه څخه به يې په کټکې خندا واورېدو. پاچا په چرت کې و آيا دا سرور او نشاط چې په عالي ماڼيو کې د پاچهانو هم نه ميندل کېږي، په دې توره ورانه کوډغله کې يې څنگه ځای نيولی دی؟ دا فقر او مسرت، دا خواري او سرور؟

بله ورځ پاچا د دې کور خاوند ور وغوښت، سبب د هغه خوښۍ او خنا او مسرت يې ځنې وپوښتی. د کور خاوند چې يو خوار دهقان و په ډېر ادب يې جواب ورکړ، چې موږ په کور کې د سرو زرو گېنډ لرو. ماښام چې له زحمته د کار ووزم په خپله کوډغله کې د خپلې خوږې ماندينې سره لوبې په کوم او ساعت په تېروم. خاندم. ډېر مې وخت په ښه دی.

پاچا او ملگرو يې خيال وکی چې البته دا به يو خارق العاده اثر او خاصيت د داسې گېنډ وي اما وروسته تر هغه چې تجربه يې وکړه او څو شپې يې د خپلو ملگرو سره ورغړاوه. نې هغه مسرت وليدی او نه هغه بشاشت. بيا يې هغه دهقان راوغوښتی ... (د استاد ياد، د زرين انځور مقاله، ۱۸۴ ـ ۱۸۵ مخونه، ۱۳۶۳ ل کال د کابل چاپ).

د پورتنۍ کيسې له دغې بولگې څخه موږ دا معلومولای سو چې دا په افغانستان کې د لومړي ځل له پاره د لنډې کيسې پر لور يوه هڅه ده چې البته بشپړه لنډه کيسه نه سو ورته ويلای مگر يوه هڅه يې ضرور بللای سو. موږ که په افغانستان کې د پښتو هنري نثر په باب مطالعه وکړو نو دا به را ته څرگنده سي چې دغه کيسه د لومړي ځل له پاره لومړنۍ ليکنه ده، که څه هم ځينو ښاغلو د ارواښاد عبدالهادي داوي خاطرت په لنډه داستان نومولي دي. يا يې د ارواښاد صالح محمد هوتک ځينې ادبي طرحې د کيسې په نامه يادې کړې دي. مگر دا خبرې لږ څه د تامل وړ برېښي. ځکه هغه په هيڅ صورت لنډې کيسې نه سو بللای. بلکې خاطره ورته ويلای سو. مگر د ارواښاد لوی استاد علامه حبيبي رحمه الله د "سرو زرو گېنډ" لومړنۍ هڅه ده چې د لنډې کيسې پر لور کيږي. که څه هم ځينې فوکلوري حکايات تر علامه حبيبي وړاندې هم د ځينو کسانو لخوا کښل سوي دي مگر هغه موږ فوکلوري حکايات بللای سو او د معاصرې لنډې کيسې خطاب نه سو ورته کولای.

د "سرو زرو گېنډ" تر کيسې وروسته د لوی استاد علامه حبيبي رحمه الله بله لنډه کيسه د "توريالی پښتنه" په نامه ده چې دا په افغانستان کې لومړنۍ بشپړه پښتو لنډه کيسه گڼل کيږي، لکه څنگه چې په کوزه پښتونخوا کې ارواښاد راحت زاخيلي د لومړنۍ لنډې کيسې مؤسس دی، دغسې لوی استاد علامه حبيبي رحمه الله د "توريالی پښتنه" د کيسې په ليکلو سره په افغانستان کې د لومړنۍ بشپړې لنډې کيسې مؤسس بلل کيږي. څنگه چې په اوسني ليکوال کې دغه کيسه د ډرامې په نامه بلل سوې ده، مگر دا به سهوې وي چې په دغه کيسه کې ډراماتيک اثر سته، اما دا بشپړه لنډه کيسه ده او په ځينو کيسو کې موږ ډراماتيک آثار ليدلای سو. څو موږ دغه کيسه په افغانستان کې د لومړنۍ لنډې کيسې په نامه بللای سو.

په دغه کيسه کې تراژيدي برخه هم د هېرولو نه ده او په تراژيدي ادب کې ښايي پوره ځای ورکول سي. دا کيسه د لنډې کيسې پر اصولو برابره په څورا خوندور ډول راپيليږي

تقريباً اتلس کاله دمخه يوه شپه چې د پسرلي د آخرينو گلو بويونه د ربگ د تالو څخه پورته کېده او سپوږمۍ ځلېده، د قندهار د سپين بولدک په يوه کلي کې چې وېش ته نږدې و. د رېدي خان چې يو ځلمی اڅکزی و. د واده دريمه شپه وه. "توريېکی" يوه ښکلې او مروچه پښتنه نجلۍ چې د واده پسول په پوري او ساده کالي يې اغوستي وه. ناوې وه چې سپوږمۍ يې په حسن کې شرموله. ريدي خان هم يو پښتون گلالی شل کلن ځلمی و. د کړدی پر اړخ تر ځلاندې سپوږمۍ لاندې د "توريېکی" سره ناست او د عشق او محبت په وينااوو بُخت و. که چا په هغه شپه دا دوه زړو ته سره تېر يو ځای سره ليدلي وای نو ويل به يې چې لمر او سپوږمۍ سره يو ځای سوي دي.

د واده دريمه شپه او د وصال لا لمړی تاپې و ...

ريدي خان پنځه کاله پردېسې گلولې وه. بيرته خپلو کړديو ته راغلی او نوی واده يې کړی و. خوږې شپې او ورځې وې.

## د استقلال د غزا کال

دا کال چې د رېدي خان د واده شپې پکښې وې هغه کال و چې پښتنو د خپل استقلال د گټې دپاره سر پر ميدان اېښی و. په ټوله وطن کې د جهاد او غزا ډنډوره گرزېدلې وه. د واده په دريمه شپه چې رېدي خان د خپلې محبوبې "توريېکی" سره د خپلې کړدی اړخ ته په خوږو مرکو بُخت و، ناببره د ده سپين ږيري پلار (زمري خان) پر را ږغ کړه:

"رېديه! ... رېديه زويه! (په رېږدېدلي ږغ) اوس کلي ته خبر راغلی چې سبا سهار پرنگي پر سپين بولدک راځي ... او هلته هم فقط دوه درې سوه تنه سپاهيان سته. نور هيڅ نسته.

زويه! کلی ټوله بار سو. ځلمي جنگ له تيار سوه. اوس به ژر ځې چې تر سهاره سپين بولدک ته د خپلو ورونو کومک ته ورسېږې! ...

زويه! زويه رېديه! دا دی د ننگ وخت، دا دی د توري وخت، دا دی هغه وخت چې ما په دې اويا کاله عمر کې غوښت. غزا ده، شکره خدايه! ... تر پايه (اوسني ليکوال ـ

لومړی ټوک. د اروابناد استاد عبدالرؤف بېنوا. ۲۳۲ ـ ۲۳۳ مخونه ـ ۱۳۴۰ ل کال. د کابل چاپ).

ښاغلی انځور د دغې کیسې په باب خپل نظر داسې ځرګندوي:

په ۱۳۱۵ هـ ش (۱۹۳٦ ع) د طلوع افغان د څوارلسم خپرنې کال په لومړۍ ګڼه کې د "توریالی پښتنه" په نامه د استاد حبیبي یوه حماسي کیسه خپره شوې ده چې موږ یې په افغانستان کې د پښتو معاصري کیسه لیکنې یوه بشپړه لومړنۍ نمونه بولو (سپېدې مجله. ۱۳۷۱ ل کال. د دریم کال دوهمه ګڼه ـ د زرین انځور مقاله. ۱۷۴ مخ).

لکه چې وړاندې مو وویل چې لوی استاد علامه حبیبي رحمه الله د دغو کیسو په لیکلو سره پښتنو لیکوالو ته د کیسه لیکنې لاره خلاصه کړه. مګر دغه کار څونه چې ښایېدی. هغونه ونه پالل سو. ځکه پر هغه مهال په افغانستان کې پښتانه لیکوال د ګوتو په شمار وو او ټولو هڅه کوله چې په تحقیقي ډګر کې کار وکړي، ځکه چې په هغه وخت کې تر تخلیق و تحقیق ته ډېره اړتیا لیدله کېده. که څه هم تر علامه حبیبي رحمه الله وروسته اروابناد استاد الفت، اروابناد استاد خادم، اروابناد پوهاند رښتین، اروابناد استاد بېنوا او بیا په ترتیب سره اروابناد پژواک، اروابناد علامه رشاد بابا، اروابناد ژواک او ځینو نورو هم په تحقیقي او هم تخلیقي اړخونو کې د قدر وړ کارونه وکړل، مګر داستان لیکنې ته چنداني پاملرنه ونه سوه. که څه هم اروابناد استاد خادم او اروابناد استاد الفت تر علامه حبیبي رحمه الله را وروسته ځیني کیسې وکښلې. مګر بیا هم هغه تشه نه سوه ډکه.

اروابناد خادم په ۱۹۴۵ ع کال کې په کابل مجله کې یوه کیسه (د تقدیر لاس) په نامه وکښله چې مضمون یې داسې و:

په یوه وخت کې دوه د وړوکتوب دوستان سره مخامخ سول. پخوا دوی یو ځای سبق ویلو. یو ځای به یې لوبې کولې. بیا د مکتب نه فارغ سول او سره جلا شول. وروسته له ډېرو کلنو دا دی دوی بیا سره دوباره ولیدل. دغه یوه دوست بل دوست ته بلنه ورکړه چې بېګاه ته زما مېلمه یې. دا کوربه د ډېر د ثروت څښتن و. ډېر ښه کور یې درلود. ډېر اعلی باغ یې درلود. مګر دغو شیانو نه خوشحالاوه او غمګین معلومېدی. بالآخره دغه کوربه خپل حال ورسره شریک کړ او د خپل ژوند سرګذشت یې ورته داسې بیان کړ:

د تحصیل نه وروسته ډېر کارونه چې لازم وو ما وکړل. ډېرې چوکۍ مې اشغال کړې او حتی د ګورنر رتبې ته دا دی راورسېدم. پیسې ډېرې دي. عزت ډېر دی. لویه دارایي لرم. ډېر کورونه مې وران او خپل مې آباد کړل. یوه پېغله مې ځانته انتخاب کړه. مګر د واده په اوله ورځ زما په لاس او پښو ګوزڼ ولګېد او چې هر څومره ډاکترانو باندې وګرځېدم تر اوسه پورې لا هماغسې دی او نه ښه کېږي او د زړه داغ مې ورځ په ورځ تازه کېږي... (پښتو هنري نثر ـ د ګ. ف. ګیرس، مترجم معتمد شینواری. ۴۵ ـ ۴٦ مخونه، ۱۳٦۵ ل کال د کابل چاپ).

اروابناد استاد خادم دغسې داستان ډوله لیکنې ډېرې کړې دي. مګر موږ د لنډې کیسې د اصولو او فنونو له لحاظه بشپړه لنډه کیسه نه سو ورته ویلای. که څه هم د کمیت په لحاظ استاد خادم ځینې فوکلوري حکایات په نوي هنري ډول ډېر کښلي دي، مګر په دغه کار کې ډېر پر مخ نه ولاړی او خپل ادبي سیر یې بل لور ته سیخ کړ.

تر علامه حبیبي رحمه الله وروسته سره له دې چې ځینو لیکوالو د ادبیاتو په دغه صنف کې څه نا څه کار وکړ. مګر ډېر لږ کسان وینو چې پښتو لنډې کیسې ته یې بنسټیز کار کړی وي. ډېرو لیکوالو له خپلو نورو بوختیاوو سره ـ سره لنډې کیسې ولیکلې چې په هغو کې د استاد الفت، سراج الدین سعید، عبدالقدوس پرهېز، مولانا محمدشریف حبیبي، عبدالرحیم هاتف، غلام محی الدین زرملوال، ننګ یوسفزي، امان الله سېلاب، محمدصدیق روهي، نصرالله حافظ، ګل محمد نورزي، محمد یوسف ساپي او ځینو نورو نومونه یادولای سو (وګورئ سپېدې مجله د دریم کال دوهمه ګڼه ۱۳۷۱ ل کال. د زرین انځور مقاله ـ ۱۷۵ مخ).

په دغه دوره کې استاد ګل پاچا الفت هم ځیني کیسې ژباړلې دي او ځیني فوکلوري آثار یې هم په کیسه ییز ډول منځته راوړي دي او په دې برخه کې یې خپله هم د لنډې کیسې پر لور هڅه کړېده.

لکه موږ چې وړاندې وویل تر علامه حبیبي رحمه الله وروسته لنډې کیسې ته په بنسټیزه توګه کار ونه سو، نو فکر کوم چې دا پرېکړه به مو پر ځای وي، ځکه دغه لیکوال چې موږ یې نومونه یاد کړل. د ادبیاتو په نورو صنفونو کې بوخت پاته سول او کله ـ کله به یې دانه مانه لنډه کیسه وکښله، په دغه برخه کې به زما په فکر د استاد الفت صاحب نوم هم د یادولو وړ وي چې ځیني کیسې یې کښلي دي.

د استاد ګل پاچا الفت یوه کیسه چې ماخذ یې فوکلوري روایت دی او نوم یې (درې هیلې) دی. په ډېر ښه انداز لیکل سوې ده:

د ژمي شپه وه. یو فقیر له خپلې ښځې سره د اور په غاړه ناست و او د خپل یوه ګاونډي د نېکمرغۍ په باب ګړېدل. سړي وویل

که ما څه پیسې درلودلې، نو ما به تجارت کاوه او ډېر ژر به مې ډېره ذخیره پیدا کړې وای. ښځې یې د هغه له خولې خبره واخیسته او وې ویل: چې زه په دې نه راضي کېږم چې یوازې پیسې ولرم، بلکې زما په زړه کې نوري اسرې هم شته، زه غواړم چې یو لوی کور ولرم. چې په خوا کې یې ښه لوی باغ هم وي او لویه ویاله پکې بهیږي.

کاشکې اوس هم یوه داسې ښاپېرۍ وای چې زما هیلې یې تر سره کړې وای. په دغه وخت کې چې دوی دواړه د اسرو او آرزوگانو په یو بل عالم کې گرځېدل. یوه ښکلې ښځه دوی ته څرګنده شوه او ورته یې وویل:

چې زه ښاپېرۍ یم او له تاسې سره وعده کوم چې هر څه چې تاسې غواړئ هغه حاضر کړم. مگر په دې شرط چې ستاسې هیلې له درېو هیلو څخه زیاتې نه وي.

ښاپېرۍ دا وویل او ورکه سوه. مېړه او ښځه هک پک پاتې شول او لږ څه وروسته ښځې وویل که زما په غوښتنه څه کېدلی ما به خواهش کړی و چې زه ښکلې شتمنه او هوښیاره ښځه وای. نو زه به ډېره نېکمرغه او بختوره وم. مېړه یې وویل:

که یوازې همدغه شیونه موږ ته راکړی شي امکان لري چې کله ناروغه شو او په ځوانۍ کې مړه شو. نو دا به ښه وي چې روغتیا، خوشحالتیا او ډېر عمر وغواړو. ښځې ناړې کړې چې بې پیسو ډېر عمر څه په کار دی. موږ باید ښه فکر وکړو او بیا څه وغواړو. ښځې د نغرې اور ولاړه او سکروټې یې تازه کړې. مگر له خولې یې ووتل:

چې کاشکې اوس یو چرگوړی وای چې په دې اور کې مو کباب کړی وای. دا خبره لا تمامه نه وه چې یو پاک کړی چرگوړی په اور کې ولوېد او سړی خپلې ښځې ته په قهر سو چې دغه دی یو خواهش دې له لاسه ووت. هغه هم په یوه چرگوړي، که زما له لاسه کېدلای دا چرگوړی به مې ستا په وچولي پوري درنښلولای. د ده د خبرې سره سم چرگوړی د ښځې په وچولي پوري کلک ونښت او ښځې په ژړا لاس پوري کړ چې دا دې څه وکړه.

له ما ځینې خو ته احمق وې او ستا خواهش خو زما له خواهش ځینې ډېر بې ځایه و، که دریم خواهش زما خوښې ته پرېږدې، خو ښه او که نه وي نو زه خپل ځان له بامه غورځوم او ځان وژنم. هغه و چې سړي دریم خواهش خپلې ښځې ته پرېښود او ښځې یې وویل چې زه بې له دېنه چې چرگوړی مې له وچولي نه ولوېږي نور څه نه غواړم او نه بل خواهش لرم، دا خواهش هم سم د لاسه قبول سو او چرگوړی یې له وچولي نه ولوېد، د دوی درې واړه هیلې ومنل سوې، مگر بې له دې نه چې یو چرگوړی لاس ته ورغی نو رڅه یې په سترگو ونه لیدل

(پښتو هنري نثر ـ د گ. ف. گیرس ـ مترجم معتمد شینواري، ۵۵ ـ ۵۶ مخونه، ۱۳۶۵ ل کال د کابل چاپ).

لکه چې موږ وړاندې هم یادونه وکړه چې په افغانستان کې د لنډې کیسې لومړنۍ دوره د علامه حبیبي رحمه الله په کیسو راپیلیږي او په دغه برخه کې تر دوی وروسته که څه هم اروانښاد استاد خادم، اروانښاد استاد الفت، اروانښاد استاد بېنوا، اروانښاد استاد رښتین او ځینې نور برخه اخلي. مگر د دې نورو لیکوالو کیسې فوکلوري روایتونه دي چې د کیسې په شکل سره یې راوړې دي او یا که فوکلوري روایات نه وي نو خپله کیسې یې د اصولو له لحاظه بشپړې لنډې کیسې نه بلل کیږي، که څه هم د علامه حبیبي رحمه الله (د سرو زرو گیند) لنډه کیسه هم بشپړ لنډ داستان نه دی او هلته هم له فوکلوري روایت څخه گټه اخیستل سوې ده، مگر "تورپالی پښتنه" حماسي کیسه یې موږ بشپړ لنډ داستان بللای سو. د اروانښاد استاد الفت پورتنۍ کیسه هم یو فوکلوري روایت دی او په نوې ژبه کې لیکل سوی دی. یا د اروانښاد استاد بېنوا دغه کیسه چې لنډ داستان نه سو ورته ویلای مگر ځینو کسانو د کیسې په نامه معرفي کړې ده، دا کیسه (نامراده نجلۍ) نومیږي چې ښاغلي گ. ف. گیرس یې هم د قصې په نامه یادوي. د استاد بېنوا (نامراده نجلۍ) نومې کیسه په دې ډول کښل سوې ده:

یو پلار خپله پنځلس کلنه لور زاړه سړي ته په پنځه زره افغانۍ ورکړه او په دې سبب سره یې د هغې ټولې آرزوگانې او هیلې تر پښو لاندې کړې. دا پېغله به ورځ په ورځ ډنگره کېدله او د مخ نه به یې خاورې دوړېدې.

یوه ورځ د خپل مرگ څخه مخکې د پلار کره ورغله او ورته یې وویل:

پلاره! زه خو ستا گرانه او په زړه پورې لور وم او ما گومان کاوه چې ته زما مربي او حقیقي غمخور یې، نو دا په څه تا زما ټولې هیلې او د ځوانۍ ارمانونه خاورې کړل. آیا تا نه غوښتل چې زه په دې نړۍ کې نور ژوند وکړم او ښې شپې پکې سبا کړم. تا زه د ځوانۍ نه محرومه کړم او ستا نه هم نا امیده سوم. ستا د دې نا مناسب کار له امله چې خپل اولاد دې خرڅ کړی دی، زما د خوشحالۍ په عوض خپگان او د نېکمرغۍ په عوض غمونه راغلل، ما گومان کاوه چې ته به زما ژوند لا نور هم نېکمرغه کړې مگر تا په داسې تنگه او ژوره ځاه کې ور واچولم چې هیڅ د سترگو غړولو شان نشته او د ژوند د تېرولو تصور نه کیږي، نه پوهېږم دا ولې؟ هو! پوه شوم دا کار د پیسو محبت کړی دی، پلاره! تا دومره سپک او په حقارت راته وکتل چې د پیسو په مقابل کې دې د لورتوب نه وویستلم، آیا پلارنۍ مینه همداسې وي، آه! دا دی ستا د

لاسه په داسي حال کي چي زړه مي د ځوانۍ له آرمانونو ډک دی مرم. خوشحاله اوسه او هغه ولور چي پر ما دي اخيستی دی په جيب کي کلک وساته او زه به په تورو خاورو کي پرته يم (ياد سوی اثر، ۷۳ _ ۷۴ مخونه).

که څه هم د استاد بېنوا پورتنی نثر په خپل وخت کي واقعاً ابتکاري اړخ لري او د ښاغلي ګيرس په وينا په دغه نثر کي يې نوي جريانات منعکس کړي دي، مګر پورتني نثر ته ښايي په ډېر احتياط لنډه کيسه وواېو.

**نتيجه**

په افغانستان کي د معاصري لنډي کيسي د لومړۍ برخي په مطالعه کي موږ دې پايلي ته رسېږو چي تر علامه حبيبي رحمه الله وروسته د لنډي کيسي د ليکلو بهير تقريباً ودرېدی او کوم اساسي کار نه ورته وسو. د لنډي کيسي تاداو د علامه حبيبي رحمه الله په قلم کېښېښوول سو او تر دوی وروسته نورو ځينو پياوړو ليکوالو څه نا څه لنډي کيسي وکښلې. مګر هغونه کار چي ښايېدی نه وسو او دغه لړۍ تر ۱۳۳۰ لمريز کاله پوري په ټپه ودرېده. تر څو بيا تر ۱۳۳۰ لمريز کال وروسته لنډي کيسي ته په نوي او ماډرن شکل کار وسو.

**ب ـ لومړی پړاو**

تر ۱۳۳۰ لمريز وروسته د لنډي کيسي درېدلی بهير بيا په حرکت کي سو او پښتو لنډي کيسي ته ډېر پوخ کار وسو. په دغه پړاو کي حبيب الله تږی، نورمحمد تره کی، عبدالرؤف قتيل، ميراجان سيال، سعدالدين شپون، غوث خيبري، محمدموسی شفيق، دوست شينواري (که څه هم سرمحقق دوست شينواري وروسته خپله ټوله پاملرنه څېړنيزو او ژبنيو کارونو ته واړوله) او بيا په ترتيب سره محمدآقا متين خوږياني، سليمان لايق، نېک محمد پکتياني، محمدګلاب ننګرهاري، محمدحسن کاکړ، علامه عبدالشکور رشاد بابا (اروانباد علامه رشاد بابا به کله نا کله دانه مانه لنډه کيسه کښله او په دغه برخه کي يې د کميت په لحاظ ډېر کار نه دی کړی، البته د لنډي کيسي د ژباړي په برخه کي يې ډېر کار کړی دی)، سيد احسان الله هېر (په دغه پړاو کي سيد احسان الله هېر تر بل هر ليکوال ډېري کيسي کښلي دي)، عبدالله بختاني، محمددين ژواک، کبری مظهري، محمدابراهيم عطايي، محمدموسی معروفي، محمدظاهر اُفق، ډاکټر مجاوراحمدزيار، سيد محمود کارګر، امين افغانپور، رازقي نريوال، حبيب الله رفيع، عبدالرازق پالوال، حبيب الله زړه سواند شينواري او ځيني نور هغه ليکوال دي چي د لنډي کيسي په لومړۍ مرحله کي يې فعاله ونډه اخيستې ده او په اصطلاح ځيني يې د دغي مرحلي سرلاري او سرغندويان بلل کيږي.

د لنډي کيسي دغه پړاو چي زه يې په افغانستان کي د لنډي کيسي دوهمه دوره بولم، هغه مهال دی چي لنډي کيسي ته د ځينو کسانو له خوا داسي بنسټيز کارونه وسول چي واقعاً يې لنډ داستان ته يوه نوې روح ور وبخښله او ننني لنډي کيسي د دغي مرحلي برکت دی چي په پښتو کي کيسي محبوبيت پيدا کړ او نوې لاره ورته وټاکل سوه. که څه هم په دغه پړاو کي لنډي کيسي ته د کميت په لحاظ ډېر کار نه دی سوی، مګر د لومړي ځل له پاره ځيني داسي کيسي وکښل سوې چي موږ يې د پښتو لنډي کيسي ور بللای سو چي بيا وروسته ليکوالو دغه لار تعقيب کړه او لنډه کيسه يې يوه ځای ته ورسوله.

زه غواړم چي د دغي برخي د ځينو ليکوالو لنډي کيسي د بولګي په ډول راوړم. څو زموږ خبره په زيات رسېدلې وي او يو ډول موافقه هم سوې وي.

**حبيب الله تږی**

د لومړي پړاو په کيسه ليکوالو کي ښاغلي حبيب الله تږي هغه څوک دی چي نوم به يې په ډېر درانه ډول ياديږي، که څه هم دوی د لنډو کيسو ټولګه نه لري، مګر په هغه وخت کي يې ځيني کيسي په متفرق ډول خپري سوي دي. که څه هم په دغه مرحله کي ځينو ليکوالو يوازي د کيسي موضوع ته ډېره پاملرنه کوله او د کيسي په هنري کولو کي يې چنداني ری نه واهه، مګر د ښاغلي تږي لويه ځانګړنه دا ده چي په کيسه کي يې هنري اړخ ته ډېره پاملرنه کړې ده او دا په هغه وخت کي يو ابتکار بلل کيږي. موږ که د لنډي کيسي د دغي برخي آثار تر مطالعې لاندي ونيسو، نو دا به راته څرګنده سي چي ښاغلي تږي د کيسي په هنري کولو کي ډېر زيار ايستلی دی او د دوی کيسي د دغي دورې په کيسو کي د مخ په کتار کي درېدلای سي.

زه به د ښاغلي تږي يوه لنډه کيسه چي د (جړاوربل) په نامه ده د بولګي په ډول راوړم چي د ښاغلي انځور په وينا د کابل د کليوالي ژوند ډېره ښکلې داستاني او هنري تصويرګري لري.

**جړاوربل**

د سهار رڼا ښايسته خپره سوې ده، سوړ باد روان دی زه د خپلي کوټې بام ته د واوري د توږلو دپاره ختلی يم. خو څرنګه چي د هلکتوب شپې ورځې دي نو د واوري د پينډو د غورځولو سره سم کله کله خپلي شاوخوا ته هم سترګي اړوم. د برايې شپې "بادکوبيې" لاري بندي کړي دي، په کوڅو کي

څوک نه ښکاري، یوازې ملا بانگی له کاله څخه وتلی او په څاپو څاپو د ماجت خوا ته روان دی. رسول کاکا زموږ نږدې گاونډي خپلې څو کلنې جرابې چې د زړښت څخه غار غار او بیا په ډول ډول ټوکرانو پیوند سوي دي اغوندي.

د خامتا د پرتاگه پایڅې تنگې پکښې نغاړي او په یوه شلېدلي پرتوگاښ یې دپاسه تړي.

هغه زړه ریتاره چې ښایي یو وخت به د کاکا پټکی و، را اخلي او د ملا وستني په توگه یې تر ملا پېچي. د واسکټ څنډې کلکې کلکې پکښې را اړوي. د پټکي یوه خوا چې یې اوږده شمله بولي پر سر خپروي او د بلې خوا یې ورو ورو په کوپړۍ پورې پېچي. له څټ نه تر وروځو پورې ټوله ککرۍ پکښې تاووي، تیمبوزکه وهي او غوږجل ته ور ننوځي، خپله خړه خره د غوږجل نه باسي او کته کوي ئې.

د لرگیو بار چې ئې برابې تړلی دی، د کنډوالې دېوال ته دروي او "سپوږمۍ" ته غږ ورکوي. سپوږمۍ چې ښه ترټه پېغله او د کاکا یکې یوه لور ده په منډه د کوټې نه راوځي، نږدې لوڅه لپره ده، سرې او سپینې پونډۍ یې د تنکیو متیو سره د ورایه ښکارېږي، ځای ځای یې ورنونه او د گردیو تیو څنگونه هم تر هغې مرداري ځولۍ لاندې چې د کمیسه په نامه یې اغوستې ده داسي بریښي لکه د پنبې غوزې چې نوې خپله خوله پرانستلې او تازه پنبه ور څخه رابرسېره سوې وي.

پروني نه لري، لوڅ سر راځي او د کاکا تر څنگه درېږي، ول ول اوږدې جړاوربل یې پر مخ خپور شوی دی.

د لرگیو د بار یوې خوا ته د لښتي په دود ورکړېږي او پخپلو نریو منگولو ئې ټینگ نیسي. (اوش ' ) وایي او بار د خپل سپین ږیري پلار سره اوږه په اوږه خرې ته ور پورته کوي. د بار د پورته کولو سره سم یې د ژمي سوړ باد په مخ ورمښلي او ول ول اوربل ئې یو خوا بل خوا د مخ څخه اړوي. د پنځلسم سپوږمۍ ته ورته څېره ئې گرده راڅرگندېږي، اما څه ډېر مهال هسې نه پاتې کېږي، بلکې اوربل بیا ځان غورځوي او ورباندې خپرېږي. مگر نه پوهېږم چې د رخې له مخې او که د مینې؟

کاکا خپل زوړ څادر د چوترې له څنډې څخه را اخلي او په اوږو ئې اچوي. "سپوږمۍ" د کلا ور چې ئې بادارانو د خپل ځان یا مال د ساتنې دپاره ډېر کلک جوړ کړی دی په تکلیف سره بېرته کوي او کاکا د خرې سره ورڅخه وځي. روانېږي او غواړي بازار ته ولاړ شي ځکه لرگي که ونه پلوري نو د خپلو ماشومانو د شپې د شومې دپاره به هک حیران ناست وي. ځي او شمېرلي شمېرلي گام اخلي.

"سپوږمۍ" څو گامه په کاکا پسې گوري او د اوښکو دوه رانه رانه څاڅکي ئې د بارخوگانو دپاسه راولېږي، داسي لکه پرخه چې د گلاب پر مخ پرېوتلې او بیا په حرکت راغلې وي.

آیا دا پېغله د خپل سپین ږیري پلار نږدې کړوپه ملا، نرۍ څادر، شلېدلي جامې، زړې څپلۍ او له واورو نه ډکې کوڅې ویني، ژړا ورځي او که ئې هسې د سېلۍ د شدت نه د سترگو اوبه رابهېږي؟

ور پراضستلی پرېږدي او بیرته د تناره د کوټې خواته خوځېږي. مگر دا پلا "سپوږمۍ" یوازې نه ځي، بلکه زما خیال هم ورسره روانېږي او د دغې بدمرغې پېغلې حال داسي راته ترسیموي ... تر پایه (اوسني لیکوال، لومړی ټوک، داستاد عبدالرؤف بېنوا، ۱۹۳ _ ۱۹۴ مخونه، ۱۳۴۰ ل کال د کابل چاپ).

د ښاغلي حبیب الله تږي د دغې کیسې له دغې ورې بولگې څخه چې وړاندې مو کړه، دا راته څرگندېږي چې په دغه پړاو کې پښتو لنډې کیسې ډېر پرمختگ کړی دی او په هنري لحاظ له ځینو مخکنیو کیسو سره هیڅ نه سي پرتله کېدلای، ځکه چې د تږي (جړ اوربل) کیسه بشپړ لنډ داستان دی، هم د اصولو په لحاظ او هم له هنري پلوه.

د ښاغلي تږي په کیسه کې ځیني پېښې په ډېر ژوندي ډول انځور کړه سوي دي. لکه

"نږدې لوڅه لپره ده، سرې او سپینې پونډۍ یې د تنکیو متیو سره د ورایه ښکارېږي، ځای ځای ئې ورنونه او د گردیو تیو څنگونه هم تر هغې مرداري ځولۍ لاندې چې د کمیسه په نامه ئې اغوستې ده، داسي بریښي لکه د پنبې غوزې چل نوې خوله پرانستلې او تازه پنبه ورڅخه رابرسېره سوې وي".

موږ وړاندې هم وویل چې تر علامه حبیبي (رح) وروسته چې ځینو لیکوالو کیسې کښلې په هغو کې ډېر پام یوازې پیغام او د کیسې هدف ته کېدی او نور نو د لنډې کیسې هنري کولو ته هیڅ پام نه کېدی، نه به تلوسه پکښې وه، نه غوټه او خوندور پیل او پای، مگر د ښاغلي تږي کیسو دغه ځیني کلیشه یي چوکاټونه مات کړل او په نوي ډول یې کیسه لیکل پیل کړه، هم یې د کیسې پیل ته پام وکړ، هم اوج، هم پای او هم تلوسې او هم هغو ټولو شیانو ته چې لنډه کیسه یې غواړي. که څه په کیسه کې د "مرداري ځولۍ" یادونه ماته په اروایي لحاظ خوند نه راکوي او هغه بیا هم له پېغلې سره.

**نورمحمد ترکی**

د لنډې کیسې په لومړۍ مرحله کې نورمحمد تره کی هغه نوم دی چې هیڅکله له یاده نه سي لوېدلای او نه یې څوک پر کیسو سترگې پټولای سي، که څه هم په ایډیالوژیک لحاظ به ډېر کسان ورسره مخالف وي، مگر پر کیسه ییز هنر یې پښنه نه سي اینښوول کېدلای.

د لنډې کیسې په دغه برخه کې د کمیت په لحاظ تر ۱۳۴۰ ل کال وړاندې نورمحمد تره کی تر ټولو لیکوالو ډېري

لنډي کيسې کښلې دي او په دغه برخه کې يې ځانته يوه ښېله لاره ټاکلې ده.

ارواښاد استاد بېنوا د دوی په اړه کاږي:

"په تېره بيا لـه ۱۳۲۹ هـ کال راپه دې خوا د ده د ليکلو په طرز او هدف کې ځرگند تغير راغلی دی او تل يې د خلکو د حقيقي او طبقاتي ژوند ځرنگوالی په لنډو لنډو ليکنو او ناولو کې ليکلی او د اولس ژوند ئې ځرنگه چې دی هغسې تمثيل کړی دی. د ده لنډ نکلونه چې شمېر يې دېرشو ته رسيږي اکثر په کابل مجله کې خپاره شوي دي او په دې نکلو کې زياتره د خلکو پر کليوالي ژوند رڼا اچولې سوې ده (اوسني ليکوال. لومړی ټوک. د استاد عبدالرؤف بېنوا ـ ۱۸۱ ـ ۱۸۲ مخونه. ۱۳۴۰ ل کال د کابل چاپ)".

د نورمحمد تره کي تقريباً ټولي کيسې د فيوډالي طبقې پر ضد او د خوار، غريب او بزگر د ژوند د روښانولو پر لور راچورلي، د "غوايي لاندې" کيسـه يې هم پر همدغه روحيه کښلې ده."

**د غوايي لاندې**

لاس و پښې چاودي. مخ سپېره. شونډې وچې. يو کوچنی پېټی غنم پر شا را اړوي او پـه ستمي د کـور پـر لـور را روان دی. بشپړي ۹ مياشتې يې خواري کښلې او منتونه يې وړي دي تر څو چې په آخر دوبي نوي (۹۰) منه غنم لـه بزگرۍ نه ورغلل. پـه دې کښې ئې ۹ منه غـنم مـلا صـاحب تـه زکـات ورکړل. ۳ منه ئې پښې ته ورکړل او څلور منه هم (رقبه) ترېنه يـووړل. ۶۰ منـه ئې هم د هغـو دوو زرو افغـانيو پـه سود کـې ورکړل چې ده د پلار د مرگ د خيرات او اسقاط لپاره د يوه سودخور نه په شپېته منه گټه راوړي وې.

پـه کور کښې د ده مايـنه او مـور او څلور ماشومان د ده لاره څاري او ماشومان ئې لـه کـوره راوتلي او د هغـې لارې خواتـه پـه ډېره اسره گوري پرکومـه لار چې د دوی پـلار اوس کـور تـه راځـي او د رشـې غـنم راوړي. د ده مـور او مـايـنې د سږکال د محصولاتو په شاوخوا کښې خورا ښې خوږې قصې کولې او هيله ئې وه چې گونډي سږ بـه يـو څـو ورځـې پـه نـس ماړه شي. پـه دې وخت کـې يـو پـه بـل پسې د کـور لـورې تـه رازغلي او نارې وهي چې بابا راغی او غنم ئې په شا دي، بزگر هم پېټی په شا کور ته راننه ووت او پېټي يې د خوني له مخه کښېښوده. مور او ماينې يې له الوتو ښو ترېنه د رشې احوال پوښته، چې په دې وخت کښې يو سړی ترازو او کانې پـه لاس په انگړ راکښېووت او په کلک ږغ ئې ورته وويل چې: "تا خو ويل پر راشه به غنم د پور په عوض کښې درکوم او تا ټول غـنم خپـل کـور تـه راوړل" ـ خانصاحب خورا پـه قهر وويل چې "دا څلور پنځه مياشتې کيږي چې تا نه "کورغم" ورکړی او نـه دې "سړي غم" ادا کړی دی، روپۍ خو نلرې. ژر غـنم راوتلـه. مور يې چغې کړې چې: "دا څو دانې چې تـه يوسې نو موږ بـه څه خورو؟". ده ورتـه وويـل چـې "خاوري". سمدلاسـه يې انـډي راواړاوه او ټول غنم يې ځنې وتلل ... تر پايه (اوسني ليکوال لومړی ټوک. د استاد بېنوا. ۱۸۳ ـ ۱۸۴ مخونـه. ۱۳۴۰ ل کال د کابل چاپ).

کـه څـه هـم د نورمحمد تـره کـي ځينې کيسـې لـه هنري لحاظه کمزوري ايسي او يا هم د لنډې کيسې د قانون له مخې يې ځيني کيسـې بشپړې لنډې کيسې نه بلل کيږي، مگر ډيرې کيسې يې بيا بشپړ لنډا داستان گڼل کيږي.

د پورتنـی کيسـې پـه دغـه برخـه کـې ځينـې منطقـي کمزورۍ سته. لکه:

"بزگر هم پېټی په شا کور تـه راننه ووت او پېټی يې د خوني له مخه کښېښووه، موراو ماينې يې په الوتو ښو ترېنـه د رشې احوال پوښتـه"، دې تـه موږ پـه کيسـه کـې ځکـه منطقي کمزوري وايو چې کله چې يو بزگر په مياشتو مياشتو لـه کـوره ورک وي او بيا چې پسله ډېره وخته کور تـه راځي. نو دا بـه زه چې وايم بيخي له پښتني او افغاني کلتور څخه ليرې خبره وي چې تر هر څه مخکې دې يې مور او ماينه د رشې پوښتنه ځني کوي.

د نورمحمد تـره کـي د "بزگر لـور" نـومې کيسـه د لنډې کيسې د لومړۍ مرحلې په کيسـو کې يوه لـه شهکارو کيسـو څخه بلل کيږي، په دغه کيسـه کې بيا هم د يوه غريب بزگر د ژوند حال بيان سوی دی

**د بزگر لور**

د "بختورې" داريه په لاس او په خورا خوشحالۍ سره دا وايي:

**سبا اختر دی زما کالي کړه راته نور دوبي**
**له خياله ډکه يم غوږې ورکړه څلور دوبي**

هو! سبا اختر دی. لوی او واړه هغه تـه خوشحالي کوي. کوچنيان لاس زيړه کوي چې د نکريزو رنگ ښه واخلي او سهار ئې لاسونه تر هر چا ښه وايـسي او په دې دول د لاس سره کېډو مسابقه وگټي. پلار ئې په بې انگړه خونه راننووت او بختورې سمدلاسه داريه يوې خوا تـه کښېښودلـه او ورمنډه ئې کړه. د پلار پـه غـاړه کښـې ئـې دواړه لاسـونه واچول او ورپـوري تـال سوه. پـه ډېره مينه يې ورتـه وويل

"بابا جانه! اوس مې د ... خان لـور وليده چې پـه اوربـل باندې ئې درې لړه سپيني روپۍ قطار کړي وې او هم ئې ويل چې پلار ښه اميل او يو سور پېزوان ورتـه ښيلی دی چې د اختر پـه سهار ځان پرې ښايسته کړي. نو دا تـه ولې ماتـه څـه شی نـه راوړې؟ تل وايې چې غـاړگۍ بـه درتـه جـوړوم خـو نـه دې کـړه

راجوړه. هغه بله ورځ دي ویل چي نن باید په تنکۍ رشقه گوزاره وکړم او ونه ژاړم. نو بیا به راته اوړه راوړې او غلمینه ډوډۍ به راکړې خو نن دي بیا څادر تش راووړ او داسي برېښي چي هيڅ شی دي نه دي موندلي. راته ووايه بابا جانه!

خان ولي خپله لور او زامن داسي ښه ساتي او د اوربل دپاره ئې تکي سپيني روپۍ چي له ورایه رونې ځلېږي راوړي، خو ته ئې ما ته نه راوړې؟ زه دریاندي گرانه نه یم که څرنگه؟

د پلار ئې په سترگو کي اوښکو وگرزېدې او دې معصومانه پوښتنو او دا چي وروسته له دومره سرگردانيو څخه ئې بیا هم يو کټوری او یو څه نکریزي ندي موندلي ټول ځان ئې په جوش راغلی او نژدې و چي لویه کریکه ئې تر خولې ووځي. بزگر په خورا تکلیف (چي تا به ویل چي ستوني کي ئې لو دانه ختلې ده) ورته وویل:

"زویه! هغه ئې لري چي ورته راوړي ئې. زه خوار ئې له کومه کړم؟"

بختوره: نو ته ئې ولي نه لرې چي هغه ئې لري؟

پلار: وایي چي هغه ته خو خدای ﷻ ورکړي دي زویه!

بختوره نو خدای ئې ولي موږ ته هم نه راکوي؟

هله ژر شه راته ووایه، ولي ئې خدای ﷻ موږ ته هم نه راکوي. درځه چي ورسه او ورته ووایو چي موږ ته ئې هم راکړي ... تر پایه (اوسني لیکوال د استاد عبدالرؤف بېنوا، لومړی ټوک، ۱۸۵ _ ۱۸٦ مخونه، ۱۳۴۰ ل کال د کابل چاپ).

د نورمحمد تره کي تقریباً ټولي کیسې د فیوډالي طبقې پر ضد لیکل سوي دي او د لنډي کیسې په دغه دوره کي نورمحمد تره کی هغه لیکوال دی چي تر ټولو لیکوالو یې ډېره پاملرنه د طبقاتي او فیوډالي ټولني پر ضد لیکنو ته کړې ده.

ښاغلی حبیب الله ولس یار د دوی په اړه کاږي:

"البته په دې کي شک نشته چي د کیسو ځیني مثالونه په افغاني ادب کي د ځه پخوا مهال څخه هم ښودل کېدلای شي اما په واضح او ریالیستي بڼه دا برخه هلته څرگنده ده چي په غربي ژبو پوه افغاني لیکوال هم میدان ته راوزي، او په دې لاره کي څوک چي سره له یوه لفظي کمزورتیا د اولیت حق لري هغه نورمحمد تره کی دی، ځکه دی نه یوائې د وخت او مهال په لحاظ دمخه دی، بلکه په افغاني لیکوالو کي یوازنی لیکوال دی چي ئې ادبي لاره یوازې همدا لاره ده او بس (له اوسني لیکوال لومړي ټوک څخه. ۱۸۲ مخ).

زما په شخصي نظر سره نورمحمد تره کی د لنډي کیسې په لومړۍ مرحله کي واقعاً ځانته د خپل سبک څښتن دی او په کیسه لیزه برخه کي یې پر خپل وخت هم تر نورو افغاني لیکوالو ډېر کار کړی دی او هم ئې ځانته یوه بېله لاره ټاکلې ده.

که څه هم ښاغلی زرین انځور د دوی په اړه کاږي چي

" د ډېرشمو کلو په اوږدو کښي او بیا را وروسته نورمحمد تره کي د ځینو ناولونو تر څنگ یو شمېر لنډي کیسې هم ولیکلې. د هغه مشهوري لنډي کیسې موچي. د غوايي لاندي، د بزگر لور او ځیني نوري دي. د "موچي" په نوم یې یوه کوچنۍ مجموعه په جیبي قطع هم خپره سوې ده. د نورمحمد تره کي کیسې په افغاني ټولنه کي د طبقاتي توپیرونو افراطي تصویر دی او په طبقاتي تحلیلونو کي له بشپړي مبالغې څخه کار اخیستل سوی دی. دا هغه "کتابي. کلیشه یي او چوکاټي کیسې، پیښي او کرکټرونه دي چي د اروپا د مارکسیزم او کمونیزم د اجتماعي تحلیلونو له کلیشو څخه را اخیستل سوي او په وچ زور پر افغاني ټولنه، پیښو او کرکټرونو تحمیل سوي دي، تراژیدي یې مصنوعي دي او د خان. ملک، ناظر، ملا. بزگر او دغه راز نورو کرکټرونو په باب د اروپا د فیوډال. سرف (؟). پاپ او داسي نورو کرکټرونو د کتابي خصوصیاتو د پلي کولو هڅه سوې ده. البته دغه کیسې له گڼ شمېر هنري او داستاني نیمگړتیاوو سره سره په پښتو کیسه لیکنه کي د دا ډول طبقاتي مسایلو د بیان په برخه کي له لومړنیو آثارو څخه گڼلی شي (سپېدې مجله. د زرین انځور مقاله د درېیم کال دوهمه گڼه، ۱۳۷۱ ل کال _ ۱۷٦ مخ).

زما څخه که څوک پوښتنه وکړي. نو ښایي چي زه تر هر چا له نورمحمد تره کي سره په عقیدوي لحاظ مخالف واوسم او ځیني نظریې او مفکورې یې منفوري وبولم مگر زه خپله نورمحمد تره کي ته د کیسه لیکني په برخه کي مناسب ځای ورکوم. ځکه په هغه وخت کي هم د کمیت په لحاظ او هم د کیفیت په لحاظ نورمحمد تره کی هغه لیکوال و چي پر ځای کیسې یې کښلي وې. دا به سمه وي چي د نورمحمد تره کي ځیني کیسې د طبقاتي ټولني افراطي تصویر دی، اما زه دا هیڅکله نه سم منلای چي تراژیدي یې مصنوعي ده او یا ځیني کرکټرونه یې کلیشه یي او چوکاټي دي، البته ځیني کیسې یې داستاني نیمگړتیاوي لري.

**سعدالدین شپون:**

سعدالدین شپون هغه کیسه لیکوال دی چي موږ یې د پرون او نن کیسه لیکوال بللای سو او په اصطلاح د پله حیثیت لري. استاد سعدالدین شپون هم د لنډي کیسې په لومړۍ مرحله کي او هم په اوسني پړاو کي ځانته یو جوت مقام لري.

د لنډې کيسې په لومړي پړاو کې د استاد شپون کيسې ځانګړی مقام لري او په هغه دوره کې يې په دغه برخه کې بېله لاره لرله او په اوسنۍ مرحله کې هم ښاغلی شپون د پښتو کيسه ليکوالو د سر په کتار کې ځای لري.

که څه هم د لنډې کيسې په لومړۍ مرحله کې استاد شپون د کميت په لحاظ لږ کيسې کښلې دي. مګر د هنري او داستاني ځانګړنو له پلوه يوه خاصه لاره پکښې تاکل سوې ده او تقريباً له هغه مهال ليکوالو څخه يې په بېل انداز کې کيسې کښلې دي.

د ښاغلي شپون د بنګي غاړه په نوم کيسه د دغې مرحلې له نوموتو کيسو څخه شمېرله کېږي.

**د بنګي غاړه**

زموږ کلي ته دوې لارې وې. يوې ته به يې خلګو د ښې ورځې لار ويلې. دا د سرکاري سړک نه چې دوه ميله لمرخاته ته پروت و په شواخون. زموږ کلي ته راسره شوې وه. کليوالو په اول سر کې د هغې په جوړولو آمنا وکړه خو چې د اشر ورځ راغله نو لارې ته ور ځرمه خلګو ناغېرې راواخيسته. چا به هغه پورې خوا پوله ښودله چې لاره دې وربانديې تېره شي ځکه چې د ده پټې ژوبل نه شي. چا به بانه کوله چې د ده مځکه په اصل کې د صغير ده او دی شرعي حق نه لري چې لار وربانديې پرېږدي. چا به ويل چې څاروي به د لارې څنګ پټيو ته ورننوځي. چا به ويل د ده کلا لارې ته نژدې ده تور سرې به بيا سابو ته نشي راوتلی.

ايساک اکا چې د کلي فيلسوف و، ويل "سړک دې ورک شي. ګاډۍ دې لاړې ورکه شي. بايسکل دې ورک شي. کور کوري (قره قلي) خولۍ دې ورکه شي. دا ټول کلي ته بېغيرتي راولي. ماسل راولي. حاکم راولي. ګرافون راوړي. مکتب راولي. تېر شئ د دې سودا نه".

د ايساک اکا خبره رښتيا وختله. د پسرلي ختې وې او د آسونو او خرو منډونو د لارې نه حلواه جوړه کړه. په اوړي بيا يو زنګون خاورې وې. بيا اشر جوړ شو او د پورې للمې نه ورته شګې او کاڼي راوچلول. کال پسرلی، لا يو څه د ګوزارې وه. خو چې اوړی راتلو نو د سرکاتب ستار بګۍ چې تر اوسه په ښار کې چلېده، د اول ځل دپاره کلي ته راغله. د څارويو ستونزه لا حل نه وه. موږ چې به مازيګر مالونه د پادې نه بېل کړل نو په لار کې به خرونو او غواوو هر طرف خولې اچولې او شولې او غنم به يې سرکپ کړل. بيا به نو جرګې وې. هياهيوی به و. د دوو خرو پکې لکۍ غوڅې شوې او د ګلواري ببو د موره يو زوی، محمداجان ګل، د قادر ماماد يامه په څټه يو څه زخمي شو. بيا اشر شو او د لارې دواړو خواوو ته د خټو دېوالونه چې تر نامه رسېدل جوړ شول. لار به چې د هر چا په

مځکه تېرېده د دېوال جوړول د هماغه کار و. نو همدا وجه وه چې دېوال ټول يو برابر نه و. چا لا د اغزنو سنځلو ځانګې د دېواله په سر لګولې وې چې پسل له څارويو نه پنا کړي. خو دا بيا په اوله دړه که کې. چې لا شنې وې خرو وخوړې او باقي نور، په منې کې هغه وخت تا شوې چې کوچيان د اوښانو سره د کټې (د ميو د پروړې) پسې کلي ته راغلل.

خو د دې ټولو ستونزو سره. کليوال په خپلې دې نوې دارايۍ خوشحال وو او چې به د جمعې يا اختر په ورځ د کلي په جومات کې ډله جوړه شوه او کليوال به بيا په جمعه. د ښار خوا ته روان شول. نو چې سرکاري سړک ته به ختل او د نورو کلو د خلکو سره چې هغوی به هم جوړې جوړې له خپلو کلو سړک ته راووتل. يو ځای شول. زموږ کليوالو به په وياړ خپله لار په هغوی پاسليله.

مرزا ستار خو به د ورونو سره په بګۍ کې سپور روان و. د آس د ګاڼې ګونګروګان به يې شرنګېدل او د ګلاباتون ځونډيو به يې پړه کاختله او کله به يې يو نيم سړي ته ست کولو چې د ده سره سپور شي. دا د کليوالو دپاره هم يو افتخار او نورو لارويو ته به يې کتل چې ګوره. خدای په تاسو ټولو کې يواځې زه دې مرتبې ته راوستلم. خو ورسره به يې يوه شرميندوکې موسکا هم په شونډو وه چې کليوال داسې ونه انګېرې چې دی مرزا ستار ته خوشامندې لري. دا ځکه چې زموږ کلي هم د خبرو او غيبت ګوډی و. په تېره يو څو کليوال خو بېدو د خبري آژانسونو په شان د هر کور د غوټو غوړېشو نه خبر وو. چې څوک څومره روپۍ لري. څومره پورورې دي. څو يې په ګروۍ اچولي. څو لونې لري او څوک يې شوقمن دي. پای (د بنګي غاړه، د استاد سعدالدين شپون د لنډو کيسو ټولګه. ۵۵ ـ ۵۶ مخونه. ۱۳۷۷ ل کال د پېښور چاپ).

که څه هم ښاغلی استاد شپون د (بنګي غاړه) د ناول غونډې کښلې. مګر دوی پخپله د دغه کتاب په سريزه کې وايي چې

د دغو کيسو يوه ځانګړتيا دا ده چې يوه د بلې پورې هم لګېږي او په عين حال کې هره کيسه ځانته په پښو ولاړه ده او بېله لنډه کيسه ده. سره لګېږي ځکه چې ټولې زما د کلي د ژوند تجربې دي او بيلې يې ځکه بولم چې هره يوه يې د ژوندانه د يکې يو اړخ انځور دی (ياد سوی اثر، د سريزې الف مخ).

پورتنۍ کيسه د استاد شپون ليدلې صحنه ده چې د کيسې په شکل سره يې لوستونکو ته وړاندې کوې. يو وخت ما "پټيال" ته يوه ملګري ويل چې د ښاغلي شپون ټولو کيسو ته لنډې کيسې نه سو ويلای. بلکي ځينې يوازې خاطرې دي.

ځکه چې نه داسې ځانګړې تلوسه پکښې وي. نه تصادف او ټکر او نه کوم پای لري. مګر دا د ښاغلي استاد شپون ځانګړی سبک او طريقه ده او دغسې کيسې موږ په نورو ژبو کې خورا ډيرې لرو چې ځيني پيښې په طبيعي ډول پر مخ ځي او همداسې پای ته رسيږي.

زه بېله شکسته نفسۍ څخه وايم او فکر کوم چې قسم ته به هم اړتيا نه وي چې وايې خلم، چې زه هيڅ ګون دا توان نه لرم چې د استاد شپون غوندي ليکوال پر لنډو کيسو وږغيږم، مګر دونه وس خو نو په رښتيا لرم چې ووايم چې د استاد شپون کيسې واقعاً بيلې کيسې دي او بېله لاره لري او د دوی د کيسو تر د ځانګړي پاملرنې وړ دی. په تېره طنزيه انداز خو يې هيڅ د هېرولو نه دی.

**غوث خيبري**

ښاغلی غوث خيبري په پښتو کې د تاريخي کيسه ليکنې او ناول ليکنې په برخه کې د کميت په لحاظ لومړی مقام لري. په پښتو کې خو ما بل کيسه ليکوال او ناول ليکونکی نه دی ليدلی چې د ښاغلي خيبري په اندازه دې يې تاريخي کيسې او ناولونه کښلي وي. د هغه د لنډو کيسو لومړی مجموعه "هغه وژړل" او بيا څو کلونه وروسته يې بله ټولګه د "ګوګامنډه لېوان" په نامه او بله کيسه ييزه ټولګه يې د "پردېس" په نامه ده. د هغه تقريباً ټولې کيسې تاريخي بڼه لري او کله ـ کله خو د ښاغلي انځور په وينا هنري او داستاني ځانګړنې له لاسه ورکوي او يو ډول تاريخي ليکنه ګڼنې جوړيږي، مګر په عمومي ډول د تاريخي کيسه ليکنې په برخه کې د ښاغلي خيبري کيسې خپل ځای لري او موږ يې پر پښتو يوه اضافه بللای سو.

تر ۱۳۳۰ لمريز کال وروسته ښاغلي غوث خيبري د تاريخي کيسو ليکلو ته ملا وتړله او همدغې لړۍ ته يې په دوامداره توګه ادامه ورکړه، د هغه "کپتان د ښځو په جامه کې" لنډه تاريخي کيسه د لومړۍ مرحلې په کيسو کې د يادونې وړ ده.

**کپتان د ښځو په جامه کې**

دا د ۱۸۴۱ کال د نومبر د مياشتې يوولسمه نېټه وه، د انګرېزي استعمار لښکري په ټول افغانستان کې په ډېره تنګسه او مشقت شپې سبا کولې ... مجاهدو او ننګياليو پښتنو سره د هغوی شخړې ګرانو او سختو مرحلو ته رسېدلې وې ... قحطي او ولږه پرې د يوه خونړي سېلاب په څېر ورګډه شوې وه ... سپاهيانو د يوې خيتې ډوډۍ په ارمان ساړه ساړه اوسېلي او ښکل او ژبې يې په شونډو راکښلې تر دې چې حتی خپله اليور OLIVER دومره نا اميدۍ ته رسېدلی ؤ چه يوه ورځ يې د غنمو د زياتو کڅرو د رارسېدلو سره وويل چه دا عبث کار دی ... په دې څوک له مرګ او نيستۍ څخه نشي خلاصېدای، په "بي بي مهرو" کښې د استعماري پوځونو ځينې کرنيلان د څه اوړو او جوارو د را پيدا کولو په هڅه کې ؤ ...

په دې سخت وخت کې يوه بله ډله، د شاه شجاع د څو تنو سپاهيانو سره څو کسه سياسي بنديان د لفټننټ کرافورت، د ساتنې لاندې را روان کړي او د کندهار په لياره د کابل خوا ته را درومي.

کوم ظلمونه او وهل چې دغه بنديانو د دښمن له لاسه په لياره وخوړل او کومې سختۍ چې په قصدي طور سره لفټننټ په هغو تيرې کړې هغه د موجوده کرښو څخه زيات وخت او شرح غواړي.

اکثره ځايونو کې هغوی وږي پاته ؤ، پښې ابله پښې ورته يوه عجيبه شکنجه وه په لياره کې د تيږو، اغزو او کاڼو سره هغوی دومره لګېدلې وې چې کترې کترې ور نه بيلې سوې وې.

کپتان "سندرسن" او کپتان "سکنر" هم په دې لياره کښې د لفټننټ کرافورت سره يو ځای ؤ ... دوی به په لاره مستې کوله او په جګ آواز به ئې په قهقهه خندل ... ټوکې به يې کولې او کله کله به يې قيديانو ته تکليف ورکاوه. بنديان به يې يو بل ته ښودل او په تمسخر به يې ويل

اوه ... دوی ډېر خطرناک دي ... بې وسلې ور نه وېره په کار ده، ښباکه دي په ځان ډيل نه دي ... بل خو ورته له سره ... تر پايه (هغه وژړل ـ تاريخي لنډې افسانې. غوث خيبري. ۱۰ ـ ۱۱ مخونه، ۱۳۴۴ ل کال د کابل چاپ).

تاريخي روايات يا تاريخي مستندې پيښې د نړۍ ډيرو ليکوالو د کيسې يا ناول په فورم کې ليکلې دي، اما له ځينو څخه صرف يوازې يوه تاريخي پېښه جوړه سوې وي او هغه د کيسې او ناول څرک له منځه پکښې تللی وي. د ښاغلي خيبري ځيني کيسې هم دغسې سوې دي. چې يوازې يوه تاريخي ليکنه ګڼنې جوړه سوې وي او داستاني ځانګړتياوې يې له لاسه ورکړې وي، د پورتنۍ لنډې تاريخي افسانې له يوې بيلګې څخه موږ دا څرک لګولای سو چې هنري او داستاني رنګ بيخي پکښې پيکه سوی دی او نه يې پيل، نه تلوسه او نه اوج او نه پای او نه داستاني ځانګړنې لري.

خو په هر صورت ښاغلي غوث خيبري د لنډې کيسې په دغه برکه کې د کيسې په پرمختيايي يون کې خپله ونډه په نه ستړې کېدونکې ډول اخيستې ده او د دغې دورې په مطالعه کې يې موږ تر نامه نه سو تېرېدلای.

**شهيد موسی شفيق**

شهيد موسی شفيق د لنډې کيسې په لومړي پړاو کې په اول کتار کې ځای لري او آن د دوی د کيسو د ځينو ځانګړنو

له وجي شهيد شفيق هغه کيسه ليکوال دی چي په اوسني مرحله کي هم ځينو د ګوتو په شمار ليکوال د دوی غوندي کيسې کښلي دي او د ايمل پسرلي په وينا خو :

دغــه ډول کيســې (مطلب يــې د شــفيق کيســې دي "ليکوال") په رښتيا چي موږ لږ لرو او کمي يې زموږ د کيسو خوند او ښايي اهيمت هم کوي. په زړه پوري خبره دا ده چي له نه څلور لسيزي وړاندي د شهيد شفيق په څلورو کيسو کي د کابل د ښار څرکونه وينو. خو له هغوی نه وروسته چي دغه ښار لا ډېرې لوړې ژورې وليدې، کيسه ليکوال يې لکه د ښاريانو له شماره ووتل. ګڼ آثار يې چاپ شول. موږ بيا داسي کيسې ونه ليدې او يا مو لږ تر سترګو سوې چي کابل يې راپېژندلی او د هغه ښار کوم وګړی يې راته درولی وي (د شهيد موسی شفيق د کيسو انځورونه، د ايمل پسرلي مقاله ښکلا مجله، د ۱۳۸۲ کال درېيمه ګڼه، ۵۰ مخ).

شهيد موسیٰ شفيق په پښتو او دري ژبو کيسې کښلي دي او د "عبقريان" په نامه يې يوه د لنډو کيسو ټولګه په ۱۳۴۶ ل کال کي چاپ سوې ده. د دې ټولګي څلور پښتو لنډې کيسې هفته کوک، ډاکټر صاحب، د تمي کاروان او برکت په کابل کي ليکل سوي دي.

د شهيد شفيق کيسې يو خاص انځوريز شکل لري او د کرکټرونو په ښوولو او معرفي کولو کي ځانته جلا ځای لري. د دوی (ډاکټر صاحب) نومې لنډه کيسه زموږ دخبري ذبات کولای سي.

### ډاکټر صاحب

*(۳)

ډاکټر صاحب د خپل ملک په پايتخت کي اوسيږي. دا ښار هم د ده د ملک د نورو ښارو او علاقو او هم د دنيا د نورو ښارونو نه ډېرو خواصو بېل کړی دی اول خو دا ده چي دلته يو ډېر قوي طبقاتي امتياز موجود دی. مګر د پردې لاندي په دې ښار باندي د غربي تمدن د ظواهرو داسي چپه راغلې ده چي نور ټول معيارونه او مقياسونه ئې د ځان لاندي کړي دي. د ژوندانه د تقليدي او پخواني نظام د ځينو اساساتو سوء استعمال او د هغې نه سوئ استفادې پخپله هغه نظام د خلګو په نظر کي بد کړی دی.

دا چي د ځينو نورو عواملو سره يو ځای شوي نو ئې د دې ښار اوسېدونکي د خپل ثقافت د بنياد او د خپل ژوندانه د نظام اساس نه يوازي بېګانه کړی. بلکه د هغه نظام او هغه ثقافت پر ضد ئې د دوی سره يوه عجبه بدبيني، کرکه او تېښته پيدا کړې ده. د بره چي هر څه راځي هغه ښه دي او دلته چي هر څه شته هغه بد دي. دا د دې ښار د اوسېدونکو د تفکر د طرز اساس دی او ډاکټر صاحب د بره چي تازه راغلی دی په همدې اساس ښه دی او هر څوک ئې قدر او عزت کوي. که څه هم پخپله ډاکټر صاحب لا تر اوسه په دې سره پوره نه دی پوهېدلی.

(۴)

ماښام تياره ده. د پاخه سړک اړخ ته چي کوم کورونه په ناموزون ډول قطار شوي دي. د هغوی په منځ کي د محبوبه جاني کور هم د څلورو نسبتاً جګو دېوالونو دننه پروت دی. محبوبه جانه اوس پنځوس کلنۍ ته ور نږدې سوې ده او د داسي يوې لويي کورنۍ لور ده چي يوه ورځ ئې هر غړي مځکې ته ويل "ته څه او زه نه څم" محبوبه جانه بېشماره وربرونه، وربرې، خوريونه، خورزې، د تره لوڼي لمسي او دغسي نور خپل خپلوان لري. د مېړه د مرګ ئې تقريباً شل کاله کيږي او د هغه نه ورته يو دوه کورنه پاتي شوي چي د خارجيانو ته يې په کرايه ورکړي او ښايسته ښې پيسې ورله د مياشتي راځي چي ګوزاره ئې پرې برابره ده. دا پيسې دومره لږې هم نه دي چي محبوبه جانه وربانديي د يارانو دوستانو د جومي شپه ګرمه نه کړې شي او دومره ډېري هم نه دي چي د هغوی د سوغات تحفې او يو نيم کومک ورباندي بيخي بې نيازه شي. يعني ګويا د محبوبه جاني ژوندون د کور په کرايه ولاړ دی او هغه هم بايد خارجيانو سره په کراوي او خارجيان خو اول د سره محبوبه جاني سره چي په هيڅ خارجي ژبه نه پوهيږي بلد نه دي او چي بيا کوم يو نيم ورسره بلد هم شي. نو هغه خو دا ابد دپاره په دې ښار کي نه اوسيږي، ضرور به ځي د دې معنی دا ده چي تقريباً هر کال محبوبه جاني ته د خارجيانو د آشنائي مشکل تازه کيږي. د دې دپاره محبوبه جاني پېش بيني کړې چي د دوستانو، آشنايانو په حلقه کي داسي څوک هم شامل کړي چي هغه د خارجيانو سره نږدې رابطه او تعلق ولري. د خپلو خپلوانو نه هيڅ خبر نشته. هغوی همېشه په خپلو خولو کي ډوب وي او چي کومک دي ترې وغوښت بيا ستا په کار کي دومره مداخله کيږي چي پخپله خبره دي پښېمانه کړي. نو ځکه د محبوبه جاني په کور کي د آشنايانو، دوستانو شمار همېش که د خپلو خپلوانو نه زيات نه وي کم هم نه دی. د محبوبه جاني هم دا خبره په طبعه ډېره برابره لګېده چي د دوستانو اشنايانو حلقه ورنه تاو وي. صفت ئې کوي، سخاوت او ښه طبعه او کله کله ئې جمال هم ستايي، د ښار نوي زړې ورته راوړي او د هري افواه، هر خبر او هري پيښې نه ئې خبروي. ډېر خلګ دي چي د دغه ښار په نسبتاً تنګ محيط

* څرنګه چي د ټولي کيسي رانقلول د ليکني د اوږدوالي سبب کيږي نو مي کيسه له سره رانه وړل او يوازي يې د منځ ځيني برخي راوړم، البته تر پايه يې نه رانقلوم . "ليکوال"

کې د بل ځای سره نه شي یو ځای کېدی، نو هغوی هم دا غنیمت ګڼلې چې دلته سره ګوري. د هغه ځلمي هغه پېغله خوښېږي مګر بل ځای سره نه شي راټولېدلی ... دواړه کوښښ کوي چې محبوبه جانه وپېژني او بیا د هغې د جومې د شپې په ټولنه کې شریک شي. هغه څوک چې غواړي چې د هغه چا د پیښو یا نفوذ نه استفاده وکړي. دواړه د محبوبه جانې د دربار لمن نیسي او مراد ته رسیږي. ځینې داسې د پاخه عمر معتبر کسان هم شته چې بل ځای نه شي کولای خپله تنده ماته کړي هغه هم همدغه دربار ته راځي ... ترپایه (اوسني لیکوال دوهم ټوک، د استاد عبدالرؤف بېنوا، ۷۷۷ ـ ۷۷۸ ـ ۷۷۹ مخونه. ۱۳۴۱ ل کال د کابل چاپ) .

د شهید شفیق د پورتنۍ کیسې په دغه وړه نمونه کې ښايي دا راته اوښاره سوې وي چې هغه د کیسې د کرکټر د اروايي اړخ په بیانولو کې یو خاص مهارت درلود او په دغه وړه بېلګه کې یې موږ ته محبوبه جانه ښه ترا را پېژندلې ده، چې څنګه طبیعت او کړه وړه یې لرل. د دغې کیسو لیکل په پښتو کې بالکل یو ابتکار دی او په تېره د کیسې په لومړۍ مرحله کې موږ دغسې کیسې نه لرو او یا ښايي بیخي لږ یې ولرو چې زموږ سره دې د کرکټر په پېژندلو کې دونه مرسته وکړي.

د شهید شفیق په کیسو کې ځینې ځانګړنې په خاصه توګه د یادونې وړ دي.

د هغه د کیسو نثر ډېر روان او خوږ دی او یو په زړه پوري داستاني رنګ لري دغه راز د هغه په لنډو کیسو کې طنزیه انداز یو بل جالب خصوصیت دی. په کیسو کې یې د ښکلا د زیاتوالي لپاره ځای ځای د طنز مالګه ورګډه سوې ده، د هغه په کیسو کې طنز په خپل دقیق او ژور مفهوم راغلی دی. دغه طنزیه برخې یوه ترخه خندا لري چې تر شا یې د خپل وخت ډېر ژور مسایل، نیمګړتیاوې او ستونزې راڅرګندوي. د شهید شفیق د کیسو توصیفي اړخ هم د پاملرنې وړ دی. همدا رنګه د کرکټر د رواني اړخونو په زړه پوري تحلیل هم پکښې راتر سترګو کیږي. (سپېدې مجله د درېیم کال دوهمه ګڼه، د زرین انځور مقاله، ۱۷۷ مخ، ۱۳۷۱ ل کال) . که څه شهید موسٰی شفیق د کمیت په لحاظ ډېرې کیسې نه دي کښلې، مګر د کیفیت له پلوه یې کیسې ځانګړی ځای لري او تل به یې یادونه کیږي.

**سید احسان الله هېر**

د څلوېښتمو کلو په اوږدو کې سید احسان الله هېر د کمیت په لحاظ تر ټولو ډېرې کیسې کښلې دي. د ده د لنډو کیسو لومړۍ ټولګه د "رنځور" په نامه په ۱۳۴۶ ل کال په کابل کې چاپ سوې ده او (۹) لنډې کیسې یې پکښې راغلې دي (که څه هم ښاغلي انځور د لسو کیسو یادونه کړې ده، مګر په دغه ټولګه کې (۹) کیسې دي "پتیال") .

د ښاغلي هېر پر "رنځور" نومې ټولګه د استاد ګل پاچا الفت، استاد عبدالرؤف بېنوا او ښاغلي عبدالله بختاني تقریظونه راغلي دي. استاد ګل پاچا الفت د دوی په باب کاږي:

"د ګران سید احسان الله هېر لنډې کیسې د خوارانو او غریبانو د رنځورانو او بدبختیو یو ربښتیانی زړه دردونکی تصویر او تفسیر دی چې د رحم او عاطفې په پیدا کولو او ژوندي کولو کښې ډېره اغېزه لري" (رنځور، د سید احسان الله هېر د کیسو ټولګه، ۱۵۷ مخ د استاد الفت تقریظ او نظر) .

په ربښتیا هم د ښاغلي هېر د هرې لنډې کیسې څخه د خوارانو او غریبانو د بېوزلۍ بوی راولاړیږي او هره لنډه کیسه یې د بېوزلانو سره د خواخوږۍ یوه ربښتینې بولګه ده.

د دوی په کیسو کې د خوارانو سترې او له ستونزو ډک ژوند په خورا ښه ډول انځور سوی دی. د ښاغلي هېر لنډې کیسې ځانته بېله هنري ځلا لري او پر همدې توسن استاد عبدالرؤف بېنوا کاږي:

"د ښاغلي احسان الله "هېر" (د بلا دې هېر سي) څو لنډې کیسې مې په یو نظر وکتلې دا کیسې له څو جهته د قدر او ستاینې وړ دي:

۱. لومړی دا چې د اوسنۍ دنیا په نوي ادب کې د لنډو کیسو لیکل د یادولو وړ لوړ مقام لري او ځانته هنر باله سي. څنګه چې زموږ په هیواد کې دا هنر ډېر رواج نه دی موندلی. په تېره بیا په پښتو ژبه کې خو بیخي نوی ګام دی. نو ځکه باید د دې حساس ځلمي لیکونکي دې اثر ته په درنه سترګه وکتل سي.

۲. بل دا چې په دې کیسو کې د اروپايي ځینو شهوت انګېزو کیسو په شان ګمرا کوونکي مطالب نسته، بلکه ټول د پښتني او افغاني دنیا د حقیقي پیښو انعکاس دی چې د خپل اولس د ناوړو دودونو د اصلاح په غرض او د کورنیو، کلیو او سیمو او قبایلو له منځ نه د ناروا ظلمونو، تېریو، بدبینو تربګنیو او طبقاتي ناجایزو امتیازاتو د محو کولو په نیت لیکلې سوي دي (یاد سوی اثر ـ ۱۶۰ مخ، د استاد بېنوا نظریه) .

د ښاغلي هېر په (رنځور) نومې د کیسو ټولګه کې د لومړي معاش، بې کچکوله سوالګر، ناکامه مینه، تربګني، بوډا، مېړمن، پیمانه، شهید او رنځور په نامه کیسې چاپ سوي دي او بیا په همدغه ټولګه

کې د ښاغلي هېر ځیني لنډې کیسې په دې ترتیب معرفي سوې دي.

۱. مرمریني ډبرې (د کابل په مجله کې).
۲. ناجو (د کابل په مجله کې).
۳. د انا لور (د کابل په مجله کې).
۴. دوه بنې (د کابل په مجله کې).
۵. د تورپېکۍ واده (د کابل په مجله کې).
۶. کونډه (د پوهني په مجله کې).
۷. د کونډې زوی (د پوهني په مجله کې).
۸. تحصیل پاتې سو ( " " " ).
۹. دوه ورونه ( " " " ).
۱۰. هیله مې نیمګړې سوه ( " " " ).
۱۱. میوند (د هیواد په ورځپاڼه کې).
۱۲. سنګر (د عرفان په فوق العاده کې).
۱۳. واده (د انیس په ورځپاڼه کې).
۱۴. میره (د هیواد په ورځپاڼه کې).
۱۵. زما ملګرې ( " " " ).
۱۶. دوه جنازې ( " " " ).
۱۷. کوچۍ او بزګر (د پوهني مجله کې).
۱۸. انګر (د پوهني په فوق العاده کې).
۱۹. ګیله له چا ده (د پوهني په مجله کې).
۲۰. د کلي خوار ( " " " ).
۲۱. پلار او ورور ( " " " ).
۲۲. غازي (د عرفان په فوق العاده کې).

او بیا ناچاپې کیسې په دې ډول معرفي کوي

۱. سوله
۲. نیا
۳. ناظر
۴. زندان
۵. ریبار
۶. بدل
۷. په بدو کښې
۸. د ژوندانه بې وفا ملګرې
۹. ماهي ګیر
۱۰. د کار په تکل کښې
۱۱. د پسرلي شپې
۱۲. له مدرسې نه تر کاره
۱۳. د حاکم زوی
۱۴. د مودو پردېس
۱۵. لوی ښار لا کوچنی و
۱۶. زما پېغلتوب
۱۷. له مکې تر ښاره
۱۸. وروسته له سو کالو
۱۹. زما ناکامي
۲۰. ښوونکی
۲۱. مجاهد وزیر
۲۲. قهرمان د مرګ په پرون
۲۳. څلور ورونه
۲۴. عبدالله جان ماما (رنځور _ د احسان الله هیر د لنډو کیسو ټولګه. ۱۶۴ _ ۱۶۵ _ ۱۶۶ _ ۱۶۷ مخونه. ۱۳۴۶ ل کال د کابل چاپ).

تر دغه وخته لا په افغانستان کې بل لیکوال د هېر صاحب په اندازه کیسې نه وې کښلې او د سید احسان الله هېر د کیسو پر کمي لحاظ سربېره د دوی ځیني لنډې کیسې په تول پوره او هنري او داستاني رنګونه لري. د دوی له ځینو کیسو څخه دا اوڅاریږي چې ښاغلي هېر د بهرنیو ژبو کیسې هم لوستلې دي. ځکه چې بعضې کیسو یې پوازې ولسي او محلي رنګ نه دی خپل کړی او په اصطلاح تش فولکلوري روایات نه دي.

دلته به زه د مثال په توګه د ښاغلي هېر د (غمجنه مېرمن) په نوم لنډې کیسې یوه ټولګه راوړم.

**غمجنه مېرمن**

د پورتنیو غاښونو ننښي او کرښې یې په وچو شونډو کښې بیخي ښکارېدې. ښکلې بڼه یې ډیرو اند ېښنو دومره زېړه کړې وه. چه سړي ګومان کاوه چې له سختې رنځورتیا نه پاڅېدلې ده. ډیري ورو خبرې یې کولې او د خبرو په منځ کښې به ترې موضوع ورکه ورکه سوه. هر څوک پرې پوهېدل چې غمونو ترې حافظه وړې او یاد یې ښه نه دی. مګر که هر چا لیدلې وای همدا ورته څرګندېده. چې د ځواني مېرمنې د ژوندانه په فضا کښې انساني بې انصافیو ډېر لوی انقلاب راوستی دی. کوچنۍ ماشومه لور یې ورته د ژوندانه یو زیاتي بار ښکاره کېده. د روغتیا او د جامو د پاکۍ خو یې هیڅ خیال نه ساته. مګر کله _ کله به چه یې د مورولۍ د فطري میني لمبه را تازه شوه او غوښتل به یې چې د میني په غېږ کښې یې ونیسي خو په همدغه وخت کښې به هغه ترخه یادونه او ترخې خاطرې ور یادې سوې چې دا یې د ځوانۍ په ښکلې دوره کښې په سختو غمونو اخته کړې وه. کله چې ما ورسره خبرې شروع کړې. نو د خبرو له ادا نه یې دا ښکارېده چه د ډیرو خبرو کولو توان او شیمه هم نه ده ور پاتې. په خبرو کښې ډېر ژر ستومانه کېده او له لږو خبرو نه وروسته به یې یوه اوږده ساه راکښله. مګر د فطرت په اقتضا یې د ستومانۍ سره سره غوښتل چې د خپل ستومانه ژوندانه نه ډیري ګیلې

وکړي او د محیط او ټولنې د خرافاتو د غندنې په لړ کښې دومره څه وواییې چې فضا له خپلو خبرو ډکه کړي. ماته سره د دې چې د دې او د فرید د ژوندانه د ناڅاپي او ډرامایي واده کیفیت لږ زیات معلوم و. مګر دومره تکې په تکې چه دغې دردېدلي مېرمنې راته د خپل ژوندانه ډرامه بیا نه کړه. نه وم خبر او په رښتیا چه له هغو لحظو نه یې زیات وزورولم چې د دغې خبرې په باب کښې مې له نورو څه اورېدلي و. ځکه هر چا د زرین او د فرید د ګډون او واده په برخه کښې د زرین په نه موافقه ماته څه ویلي وو. مګر بالآخره دغه لحظه هم راورسېده چې دغه دردناکه کیسه د هغه چا له خولې اورم چې د دغو ظلمونو درد یې په خپله زغملی دی. ځواني مېرمنې خپله د ژوند کیسه راته دا رنګ را واخیسته :



لا مې په ژوندانه کښې د آرزوګانو خیالي ماڼۍ ودانولې او د ځوانۍ دورې راته د ژوندانه د یوه نوي پسرلي زېرې راکاوه. چې د پلار په سر کښې د انسان خرڅولو هنګامه ګرمه شوه. ما ته هر څوک وایي چې د پلار له خبرې نه مخ اړول او د هغه له نظریو سره اختلاف کول ګناه ده. مګر نن زه د وجدان د مشورې په حکم دا خپله ګناه بولم که له هغو خرافاتو نه شکایت ونه کړم چې زموږ په هیواد کښې رواج شوي دي ....

تر پایه (رنځور. د سید احسان الله هېر د لنډو کیسو لومړۍ برخه. ۹۷ _ ۹۸ _ ۹۹ مخونه. ۱۳۴۶ ل کال د کابل چاپ).

که څه هم د لنډې کیسې په دغه برخه کې ښاغلی هېر ځینې ډېرې ښې لنډې کیسې کښلي دي. مګر ځینې کیسې یې له تخنیکي لحاظه کمزورې لري. لکه د پورتنۍ لنډې کیسې په دغه نمونه کې موږ وینو چې کیسې ته ډېره بې ځایه سریزه ورلوېدلې ده که څه هم د کیسې لومړۍ څو کرښې په ډېر ښه ډول را پیل سوي دي. مګر وروسته د کیسې له پیل څخه سریز جوړه سوې ده او پر لوستونکي یې لوستل غمیزي.

**محمددین ژواک**:

د لنډې کیسې په لومړي پړاو کې اروابناد محمد دین ژواک هم د یادولو وړ څوک دی په دغه برخه کې یې ډېرې کیسې کښلي دي چې بیا د (پرونۍ هنداره) په نوم ډېر کلونه وروسته خپرې سوې.

اروابناد ژواک د پښتو هنري نثر په برخه کې د قدر وړ کارونه کړي دي او د پښتو هنري نثر په ارتقا کې یې فعاله ونډه اخیستې ده، په دغه لړ کې یې ځینې لنډې کیسې هم کښلې دي چې پر پښتو کیسه لیکنې یوه ښه اضافه بلل کیږي.

د څېړنمل ژواک په (پرونۍ هنداره) نومې د کیسو ټولګه کې (۲۷) سرلیکه افسانې راغلې دي چې ځینو ته یې د فورم له لحاظه افسانه نه سو ویلای. لکه پر دغه کتاب د ښاغلي امین افغانپور د سریزې په یوه برخه کې چې لولو :

"د ژواک د پرونۍ هنداري په نامه اثر چې دی یې افساني بولي، د فورم له نظره هغه ادبي ډول ته ورته دی چې نن ورځ په معاصر ادب کي یې د طرحي یا اسکیچ، پلاټ په نامه یادوي چې البته ډېر زیات داستاني عناصر او د لنډ داستان عناصر پکښي شته دي (پرونۍ هنداره، د محمددین ژواک د افسانو ټولګه، د امین افغانپور سریزه، ب مخ، ۱۳۵۷ ل کال د کابل چاپ).

خو د څېړنمل ژواک ځینې طرحې د داستاني ځانګړنو په لړلو سره داستان بلل کېدای سي او دوی د یوه کیسه لیکوال په حیث هم معرفي کولای سو. زه به د دوی (مریمه) نومې افسانه د بولګې په توګه راوړم :

**مریمه**

د سره اهار توده لمبه د غرمې په رانژدې کېدلو ورو، ورو ډېرېدله. مریمه د منا څنګ او د سره نغري مخې ته ناسته. یوه یوه ترخه د نغري منځ ته اچوي. د مریمې د نریو ګوتو سرونه د مرغومې د سر په وینو لړلي دي. دا یو وار د مرغومې سر د نغري اور ته نژدې کړي. وروسته د سوو وژغونو په شکولو مشغوله سي. هلته لیري د غوجل څنګ ته د ملک ږغ سو :

مریمه څه سوه؟

د ملک د ږغ اورېدلو سره مریمې په ډېره وارخطایي د مرغومې سر د بلو لمبو خوا ته ټرمه کړو. د نغري د منځ څخه د اور لمبو د مریمې پر سپینکې مړوند الغه وهله خو ...

د مریمې د مړوند سوځلو ته ځکه پام نه سو چې د ملک بېروونکی ږغ یې تر غوږ سوی و.

ږغ د قهر سره ورو ورو پورته کېده.

ملک : مریمې ! تاته وایم مریمې !

راځې که درسم ... !

د (درسم !) د اورېدو سره مریمې پر سوي مړوند لاس را تېر کړ او را ولاړه سوه. بیا هم د ملک ږغ سو.

مریمې ! ها مریمې !

ولې نه راځې !

مریمه : دا دی درځم (پر سوي مړوند لاس تېروي) ملک اکا !

درغلم خو ...

ملک : ستا تر خولې ...

وایم ته هم ما !

هو ! وایم ما د دریو ماندینو خاوند بولي او وایي

زه دا ... دا سپین ږیری څنګه وکړم؟

ښه ! دا تا ته د یوه خوار شپانه کونډې ویلي دي؟

یعني ملک زوړ دی او نه یې کوم، دا ځکه چي په خولې کي غاښ نه لري او پر ملا کروپ دی!

منم چي تا ویلي دي خو زه!

بلي! زه (یارو ملک) یم!

ما تر اوسه پنځه کونډي وژلي دي د کوتک په زور زما دغه منګول ویني!

دې خوني لاس څو ښارګه پرې کړي دي!

ته خپلو هغه نریو ګوتو ته ګورې چي زما د خیرات کړي مرغوي د سر په وینو لړلي دي. مګر زما ګوتي نسي لیدلای چي تا غوندي ړنګو بنګو وینو ته تږي دي.

هو! ته حق لري ځکه ته لا نه وې زېږېدلې چي ما تا غوندي څو تاندي لښتي ماتي کړي دي او د نامرادی کندي ته مي اچولي دي!

منم، منم چي نن د (بورک) شپانه کونډه وایي زه (ملک یارو) هغه ملک چي د مریمي پلار یې په نم لوی سوی، نه کوم!

رښتیا ووایه! ستا خوله دومره لویه ګوله تېروي؟ او دا خبره ستا تر خولې وتلې ده؟

ووایه!! ژر! ما قول کړی دی چي د مریمي سر به د همدغه مرغومي په شان همدغه نغري ته ور اچوم او الویم به یې!

مریمه (مړوند موړې) ما؟

ما چاته ویلي دي. زه؟

زه به د دې ملا ماتي سپین ږیري پلار په زور وناز پېږم که د خپل ځوانیمرګ...

وایم که د خپلي لوږې او بې وسیلې ورځي په زور؟

ما نه دي ویلي (بیا هم خپل سوی مړوند موړې)، ملک اکا!

زه هیڅ نه وایم او هیچا ته څه نه وایم!

زه بدبخته یم او ډېره بدبخته، ځکه بورک څو میاشتي زما د واده وروسته ژوندی نه سو پاته او د ډوری په سیند کي یې د یوې میږې د ډوبېدلو له بیرې په خپله ځان ډوب کړ.

هغه څه ځواب و ستا.

وایم ستا بیرې د ډوری د سیند په غبږ وروست.

بورک ځوان و خو ستا بیرې یې زړه تر تلو واچاوه. اوس زه؟

وایم زه وایم دا کوم او دا نه کوم؟

ملک اکا! د ژوند او مرګ اختیار مي ستا دی...

بابا ډېر سخت ناروغه دی.

دی د مرګ سلګۍ وهي. هغه...

(ستوني یې ډک ډک کیږي) هغه ته...

ملک اکا!

هر څه چي وایي کولای یې سې (بیا سوی مړوند په لاس موړې) ما نه دي ویلي.

ملک وا چي بیا دي تر خولې دا خبره ونه وځي... ملک زوړ د څو ماندینو خاوند دی. خدای راکړي د خدای دا د دی او د ده پېرزو چي په اولادونو هم موړ یم. وا دي ورېدل!

مریمي! ښه یې واوره چي د مړژوندي پلار کفن پر ځان ونه دروې!

وا دي ورېدل تا ته وایم!

دا دی اوس ځم چي رښه اخیسته کیږي خو...! (پروني هنداره، د څېړنمل محمددین ژواک د افسانو مجموعه، ۸۰ ـ ۸۱ ـ ۸۲ او ۸۳ مخونه، ۱۳۵۷ ل کال د کابل چاپ).

د ارواښاد څېړنمل ژواک په پورتني کیسه کي ځیني انځورونه د خاصي پاملرني وړ دي لکه:

مریمه د منا ځنګ او د سره نغري مخي ته ناسته ده. یوه یوه ترخه د نغري منځ ته اچوي. د مریمي د نریو ګوتو سرونه د مرغومي د سر په وینو لړلي دي. دا یو وار د مرغومي سر د نغري اور ته نژدې کړي. وروسته د سوو وژغونو په شکولو مشغوله سي.

همدا ډول ارواښاد ژواک په کیسه کي د سپین ږیري ملک حالت پخپله د ملک له خولې په ډېرو لنډو جملو کي بیانوي چي دا په کیسه کي ځانګړې مهارت بلل کیږي. لکه

یعني ملک زوړ دی او نه یې کوم. دا ځکه چي په خولې کي غاښ نه لري او پر ملا کروپ دی!

خو په (پروني هنداره) نومې ټولګه کي ځیني داسي کیسې سته چي یوازي یې ادبي طرحي بللای سو او بشپړ داستان نه سو ورته ویلای، مګر په هر صورت څېړنمل محمد دین ژواک د لنډي کیسې په دغه برخه کي د یادوني وړ لیکوال دی.

**عبدالروف قتیل**

د لنډي کیسې په لومړي پړاو کي عبدالرؤف قتیل هم یوه غوره کیسه لیکوال دی او باید چي د دغي برخي په یادونه کي د دوی ذکر هم وسي.

د ښاغلي عبدالرؤف قتیل د "ارمان" په نامه د لنډو کیسو یوه مجموعه په ۱۳۴۴ ل کال په کابل کي چاپ سوې ده (وګورئ سپېدې مجله، د زرین انځور مقاله، د دریم کال دوهمه ګڼه ۱۳۷۱ ل کال، ۱۷۸مخ).

که څه هم ښاغلي قتیل تر ډېرشمو لمړیزو کلونو وړاندي ځیني کیسې د هیواد په ورځپاڼو کي چاپ کړي دي، مګر د دوی لنډي کیسې تر ډېرشمو کلونو وروسته بل رنګ پیدا کړ او په اصطلاح داستاني او هنري ځانګړني یې خپلي کړې.

په ۱۹۵۳ ع کال کي ښاغلي قتيل په (اصلاح) کي څو کيسي خپري کړي دي. د ښاغلي قتيل يوه کيسه چي (قاتل زه يم) او په ۱۹۵۳ کال د اکتوبر په مياشت کي خپره سوې ده. يوه لنډه بېلګه يې په دې ډول ده

**قاتل زه يم**

پوره نه بجې وې، هر څوک د خپل ماموريت په چوکۍ د وظيفې د انجامولو په کار بوخت سول. د (ج) د محکمې قاضي صاحب ناست دی. د (وزيرګل) د اعدامولو په باره کي د خپلو غړو سره مجلس کوي. (وزيرګل) چي نوی ځوانۍ ته رسېدلی او د (علي ګل) په مرګ متهم سوی دی. په اعدام محکوم سو.

دار ودرېد، د عدل د محکمې ټول اراکين د اعدام ځای ته حاضر سول او د (وزيرګل) د اعدام انتظار باسي.

قاضي صاحب پورته سو. د خطابې په لوړ ممبر ودرېده، حاضرينو ته داسي خطاب کوي چي

دا سړی چي تاسي يې د دار لاندي ژوندی وينئ. زر دی چي مړ يې ووينئ د دې سړي ګناه چي دی يې د مرګ خولې ته ورکړو دا ده چي د (علي ګل) ځوانيمرګ بيګناه او د خپلو شخصي اغراضو د تر سره کولو له پاره وژلی دی. موږ ته چي د نبوي شريعت وارثان يو هم دا ثابته سوې ده چي قاتل دا سړی دی کوم چي تاسي يې د دار لاندي وينئ او "وزيرګل" نوميږي. د هر سړي نه چي داسي جنايت صادر شي او يا په داسي ګناه مرتکب شي او وربانديي ثبوت ته ورسيږي، سزا به يې داسي وي لکه د "وزيرګل" چي اوس به يې وګورئ.

د قاضي صاحب وينا ختمه شوه. امر يې وکړو چي د دار د پړي حلقه يې په غاړه کي واچوئ. په مجرد د دې چي حلقه يې په غاړه کي ور اچوي. يو غټ او بېر سړی چي ډېر بده قواره لري. د اعدام ځای ته حاضريږي او همدا ناري وهي چي

"وزير ګل ملامت نه دی چټي متهم شوی دی. د علي ګل قاتل زه يم".

خلک په منډه قاضي صاحب ته ځان رسوي او د دې بېرسري سړي له واقعې نه يې چي تاماش نوميږي خبروي. خلګ په ډېره خوشحالۍ په دار باندي هجوم راوړي او پړي شکوي. وزيرګل له مرګه خلاصوي. قاضي صاحب تاماش ځانته رابولي او ابتدايي تحقيقات ورنه شروع کوي. د علي ګل د مرګ څرنګوالی چي ولي او په کوم ترتيب سره دی وژني ځانته معلوموي. تاماش د قاضي صاحب په مخ کي درېږي. لاسونه په تخرګ کي ږدي او د علي ګل ځوانيمرګ خونين داستان داسي شروع کوي ... تر پايه (پښتو هنري نثر، د ګ. ف. ګيرس د سرمحقق معتمد شينواري ژباړه، ۱۱۲ _ ۱۱۳ مخونه. ۱۳۶۵ کال د کابل چاپ).

زما دا نظر دی چي د ښاغلي قتيل پر کيسو ډېر څه ليکل کېدای سي او د دوی ځيني کيسې د دې دي چي بايد بشپړ تحقيق په وسي او ځيني اړخونه يې بيان کړه سي.

د ښاغلي قتيل د پورتنۍ کيسې په دغه وړه بېلګه کي ځيني داستاني ځانګړتياوي تر سترګو کيږي لکه پخپله د کيسې پيل په خورا ښو جملو سره سوی دی او موږ په کيسه کي دا يو ښه پيل بللای سو. ښاغلي قتيل تر دغسو ځينو لومړنيو کيسو وروسته نوري ډېري ښې کيسې کښلي دي او ځکه نو موږ دوی د لنډي کيسې په دغه جريان کي د يادولو وړ سړي بولو.

وړاندي هم موږ اشاره وکړه چي د لنډې کيسې په لومړي پړاو کي ډېرو ښاغلو لنډي کيسې وکښلې او د ځينو يادونه مو هم وکړه چي په دغه لړ کي ښاغلی غلام محی الدين ايوبي هم په يادولو ارزي چي د کندهار په طلوع افغان کي يې ډېري لنډې کيسې خپرې کړي دي. دغه راز آغلې نجيبه نژند هم د يادولو وړ ليکواله ده چي ځيني کيسې يې په طلوع افغان کي خپرې سوي دي. په دغه برخه کي بل د ډېر قدر وړ ليکوال ښاغلی امين افغانپور دی چي په ټول پوره کيسې يې کښلي دي او ښاغلی علي ارغنداوی هم د يادوني وړ څوک دی.

دغه راز استاد محمدصديق پسرلي هم په دغه جريان کي ځيني کيسې کښلي دي چي زه غواړم د دوی په باب د لنډې کيسې په بله مرحله کي يو څه په تفصيلي توګه يادونه وکړم.

**يادونه**

د لنډي کيسې د لومړۍ مرحلې په برخه کي چي د ځينو ليکوالو نسبتاً نوکي مفصله يادونه وسوه، دا معنا نه لري چي ګواکي هغه ځيني نور ليکوال چي تش يې د نامه ذکر سوی دی، حق نه لري او يا په مفصله يادونه نه ارزي بلکي يوه خبره خو دا وه چي د ماخذونو نستوالی و او آن د يوه ليکوال د کيسې يوه وړه بولګه هم په ګير رانه غله او بل دا چي دغه مقاله يوازي د دغو مرحلو د ليکوالو د نامه يادونه کوي او څېړنيزه بڼه نه لري.

**دوهم څپرکی**

**دوهم پړاو**

**الف _ د غوايي کودتا**

زه خو خپله د غوايي کودتا ته د علامه رشاد بابا په پيروي د "غوايي اړودوړ" وايم چي له ځانه سره يې بېلابېلي خوښي. له ستونزو ډکي او له هر ډول بدبختيو ډکي پيښي راوړي. د غوايي پر اړودوړ باندي رغبدل نه دلته زموږ موضوع ده او نه د دې ليکني حوصله دا زغملای سي چي پر دې اړودوړ باندي څه ووېل سي، خو يوه خبره خامخا د يادوني

ور ده چې د غوایي اړودوړ چې لکه څنګه زموږ ملي او کلتوري بېلابېل اړخونه جبراً او یا ځینې په اختیاري ډول تر خپلې شعاع لاندې راوستل. همداسې یې پر پښتو لنډې کیسې هم ډېر بد اغېز وکړ. که څه هم د غوایي تر اړودوړ وروسته په افغانستان کې د کمیت په لحاظ بېخي ډېرې کیسې وکښل سوې، مګر د کیفیت په لحاظ تش شعارونه او کلیشه یي جملې وې. په دغه دوره کې لنډې کیسې هم د ادبیاتو د نورو ژانرونو په څېر نمایشي او فرمایشي بڼه غوره کړه او د ځینو کیسه لیکوالو نظریات په وچ زور پر افغاني ټولنه تړل کېدل.

د غوایي د اړودوړ له پیلامې سره سم. ادبیات په رسمي او تشریفاتي شکل، د یوې وچې تبلیغاتي وسیلې په توګه استخدام سول. د رسالت او "مسوولیت" او "تعهد" له شعارونو څخه په استفادې سره یې هر څه د خپل ګوند تبلیغاتو ته وقف کړل. یو شمېر ګوندي شاعران او یو شمېر ځان ساتي په دغه سیر کې تر ټولو وړاندې سول. هر څه چې به د ګوند دستور و، هماغسې به یې لیکل. د لیکوال او شاعر په توګه د خپل انفرادیت هیڅ ډول څرک په دغه ډول آثارو کې نه لیدل کېده (وګورئ "د افغانستان اوسني ادبیات" د سیمینار ټولګه. د زرین انځور مقاله. ۱۹۰ ـ ۱۹۱ مخونه. ۱۳۶۹ ل کال د پښتو چاپ).

د غوایي د اړودوړ په لومړنیو کلونو کې دغه ډول حالت په خورا جوش او خروش روان و او تقریباً هر هغه څه چې د هیواد په خپرونو کې نشرېدل، ګوند او یوې ایډیالوجۍ ته وقف سوي ول او یوازې کلیشه یي الفاظ ول. اما په را وروسته کې بیا دغه حالت بل رنګ پیدا کړ او ادبیات یوازې د ګوند لپاره نه وه ځانګړې سوي، بلکې د ادبیاتو هر فورم ځانته نسبتاً هنري اړخ پیدا کړ چې په دغه لړ کې لنډه کیسه هم د زیاتې پاملرنې وړ ده او د ځینو لیکوالو له خوا خورا ډېرې لنډې کیسې ولیکل سوې.

که څه هم په ۱۳۵۹ ل کال کې د افغانستان د لیکوالو اتحادیه (بیا د افغانستان د لیکوالو انجمن) جوړ سو. مګر په لومړي سر کې د دغه انجمن ټول نشرات یوازې د ګوند د تبلیغ لپاره ول. خو وروسته په دغه انجمن کې ځینې کسان پیدا سول چې دغه سیر ته یې تغیر ورکړ.

په را وروسته کلونو کې د لیکوالو په ټولنه کې د پښتو لنډې کیسې لپاره بنیادي کارونه وسول او د ښاغلي زرین انځور په وینا چې "موږ نشو کولای چې د پښتو کیسه لیکنې د څېړنې په سلسله کې د دغو کارونو یادونه ونه کړو."

په همدغو کلونو کې د کره کتنې (نقد) ډېرې زیاتې غونډې جوړې سوې. د مشاعرو تر څنګ د لنډو کیسو د لوستلو ځانګړې محافل جوړ سول. د کیسه لیکنې په اړه ځانګړې علمي سیمینارونه جوړ سول او د لنډې کیسې ځینې مجموعې چاپ سوې.

په دغو کلونو کې د لنډو کیسو دغه مجموعې چاپ سوې دي:

۱. موسکا (۱۹۸۳ ع)
۲. د څپو پر وزرونو (۱۹۸۵ ع)
۳. اېلبند (۱۹۸۶ ع) د امین افغانپور
۴. تبنتېدلی خوب (۱۹۸۵ ع)
۵. ګیلې (۱۹۸۷ ع) د بریالي باجوړي
۶. لنډې کیسې (۱۹۷۹ ع) د بسم الله حقمل
۷. شلېدلي تارونه (۱۹۸۵ ع)
۸. سېل (۱۹۹۱ ع) د احسان الله آرینزي
۹. کوچې (۱۹۸۵ ع) د محمد عیان عیان
۱۰. شپې (۱۹۸۵ ع) د محمداکبر کرګر
۱۱. سینده څه سینده بهېږه (۱۹۸۸ ع) د محمداکبر کرګر
۱۲. د زماني سندره (۱۹۹۱ ع) د محمداکبر کرګر
۱۳. تانده غوټۍ (۱۹۸۷ ع) د بشیر دودیال
۱۴. دا سرونه دا رسمونه (۱۹۸۴ ع) د زرین انځور
۱۵. شاړې کوڅې (۱۹۸۷ ع) د زرین انځور
۱۶. سوزېدلې شمع (۱۹۸۸ ع) د عبدالمنان ملګري
۱۷. لېونۍ (۱۹۸۵ ع) د حبیب الله زړه سواند شینواري
۱۸. د نیمو شپو چیغې (۱۹۸۸ ع) د عبیدالله محک
(وګورئ سپېدې مجله. د زرین انځور مقاله. د دریم کال دوهمه ګڼه. ۱۳۷۱ ل کال. ۱۸۱ ـ ۱۸۲ مخونه).

دغه راز په دغو کلونو کې د هیواد په مختلفو ورځپاڼو او خپرونو او په تېره بیا په (ژوندون) مجله کې د ځینو لیکوالو له خوا ډېرې کیسې خپرې سوي دي او په متفرق ډول د لیکوالو داستاني آثار خپاره سول. لکه

مصطفٰی جهاد، شاه محمود حصین، جلات خان حکمتي، فدامحمد خواریکښ، خان محمد سینه، سهراب دیدار، شریفه شریف، ګل محمد نظري آریانا او ځینې نور.

د لنډې کیسې د معاصرې دورې په مطالعه کې د دغه مهال داستاني آثار د زیاتې مطالعې وړ دي، که څه هم د دغو آثارو په برخه کې ځینې یې تشې خبرې وې او داستاني او هنري ځانګړنې یې نه لرلې، مګر ډېر داسې داستاني آثار هم رامنځته سول چې واقعاً په زیاته یادونه ارزي لکه د ښاغلي امین افغانپور، بریالي باجوړي، احسان الله آرینزي، محمداکبر کرګر، زرین انځور او

ځینو نورو کیسې چې زموږ د معاصرې لنډې کیسې بنسټیز آثار ګڼل کیږي.

**امین افغانپور**

د غوايي تر اړودوړ وروسته امین افغانپور د معاصرې لنډې کیسې په برخه کې ډېر کار کړی دی او په دغه مرحله کې یې ډېر تخلیقات کړي دي چې ځینې مستقلې ټولګې یې هم خپرې سوي دي او بېلابېلې لنډې کیسې یې په ډېرو افغاني مطبوعاتو کې خپرې سوي دي. د اروابناد افغانپور ځینې کیسې له هنري لحاظه ډېرې اوچتې ګڼل کېدای سي او اروابناد افغانپور د لنډې کیسې په معاصره دوره کې د عمر په لحاظ هغه پوخ لیکوال دی چې په ډېر اصولي ډول یې کیسې کښلې دي او د کیسو داستاني او هنري اړخونو ته په خورا شعوري ډول ځیر و. د اروابناد افغانپور لاندنۍ کیسه د معاصرې کیسې لیکنې په لړ کې خورا ښه لنډه کیسه بلله کیږي.

**د مور سوړ پروني**

هره غرمه به همدا چې د کارخانې د ټولي غږ پورته شو، نو زه به په بېړه سره د رنګ رېږۍ ځانګې ته چې هلته پرېمانه تودې اوبه او اوږده د پخې خښتې په ځېر ژېربخون صابونونه وو، ورغلم او خپل غوړ لاسونه به مې پرېولل او بیا به مې د پلار دفتر ته ور وځغستل.

د ټولي کارخانې څخه به د تیلو او دوړو یو بوی لتېده، زما کالي به د نورو کارګرانو په ځېر پدغو غوړو او تیلو باندې غوړ و او یو سوی بوی به ترې لتېده.

پلار به د کارخانې په جومات کې له لمانځه سره سره د نفل لموځونه هم کول خو زما کولمې به د ولږې له زوره چوتېدلې. ما د خپل پلار په دفتر کې چې د کارخانې میرزا و یوځای د هغه سره ډوډۍ خوړله. یو غاپ ډوډۍ چې زه به د کار د بیا پیل کېدو سره سم وړی سوم، که څه هم چې د پلار د غاپ نیمايي ډوډۍ به ما خوړله او پلار به که نه مړېده هم بانه به یې کوله چې زما بس ده زه موړ سوم ته دي ډوډۍ وخوره.

دې کار زه سخت ځورولم او شرمولم. زما همزولو کارګرانو به پېغور راکاوه چې د (میرزا زوی) د شرکت بولډو خوري. ځکه پلار یې میرزا دی. سربېره پر دې چې زه د پلار دفتر ته تلم نو د هغه دفتر ملګرو به هم چپ چپ او په ترېو تندي سره راته کتل. لکه چې زه د هغوی برخه خورم او دې ټولو خبرو، پېغورونو زما کوچنی روح ځوراوه ... په هغه ورځ به چې به چې پلار دفتر ته نه ورته نو د هغه د ډوډۍ بشپړ غاپ به ماته راپاتې و او زه به خوشحاله وم. خو چې هر وار به چې ما د ها نورو میرزایانو او ملازمینو تندیو او سترګو ته کتل نو (ډوډۍ) به (زه) خوړلم. پلار رنځو غاړې او بوډا او تل به ناروغه و.

هر ژمی زما همدا حال و او زه فصلي کارګر وم. همدا چې منې به راورسېد زما د ښوونځي او ټولګې ملګري به خوشحالېدل. خو په ما باندې به د خپګان یوه زوروه څپه راتلله. ځکه چې نورو به ساعت تېرې کوله. خو زه مجبور وم چې بیا هم کارخانې ته ولاړ شم او په وریو او تیلو او د ماشینونو د کرپ او کروپ او غورهار په فضا کې په کار لګیا شم او یو څو پیسې وګټم. ماته به د ملګرو قصو هم خوند راکوه او هم به رخه راتلله او خپه کېدم به هم.

زما ملګرو به د ژمي له خوا جلال آباد او یا کندهار ته د تګ او د تاوده ژمي د تېرولو او د خپلو مېلو، کاغذپران بازیو، د سپیو د جنګولو او نورو لوبو نکلونه کول. خو زما سترګو ته به د جلال آباد او کندهار د شنو باغونو انارو او ښکلي طبیعت د منظرو د ګلانو د نرګسو او فلاکسو او نارنجو او مالټو باغونو د تصویر په منځ کې د وریو د کارخانې د دود او اوږدو برجونو او تولیو او دودکشونو سره منجن او تور او دود لړلي تصویرونه ګډېدل او ما به بیا هم د وریو د وربښلو په ځانګه کې ځان احساساوه ... او په زړه باندې به مې د غم او خپګان څپو یرغل راووړ ...

هغومره چې زه د غرمې د ډوډۍ په وخت کې د همزولو کارګرانو پېغورونو او د پلار د دفتر د ملګرو ترېو او تروشو تندیو او چپ چپ کتلو ځورولم هغومره هر منې فصلي کار ته د شاملېدو صحنې ځورولم. زما بوډا پلار به زما عریضه د کارخانې رئیس ته چې یو پنډ سړی و او ګڼې سپینې او تورې وروځې او لنډ قد او پک سر یې درلود، په عاجزۍ او یوې ګناهګارانه موسکا سره وړاندې کوله او تل به یې دا ورته ویله

غلام زاده له ښوونځي نه رخصت شوی که چیري ... او چې د کوڅې او بازارو نه یې پښنه ټوله وي او د کارخانې رئیس به خپلې چشمکې په سترګو کړې او په ترېو تندي به یې ویل

دا هلکان کار هم نه کوي او سربېره په دې کمبود هم نلرو، خو بیا هم ستاسو په لحاظ ...

او بیا به یې زیاته کړه:

شپېته روپۍ یې بس دي؟

پلار به په هماغې موسکا سره ویل

څه چې ستاسو امر وي ... او په دې توګه به زما کړاو او مصیبت پیل سو ... تر پایه (سرې جامې، د لنډو کیسو ګڼه ټولګه، ۸۵ ـ ۸۶ ـ ۸۷ مخونه ۱۳۶۳ ل کال د کابل چاپ).

د اروابناد امین افغانپور د پورتنۍ کیسې دغه کوچنۍ نمونه مو ځکه راوړله چې درنو لوستونکو ته د امین افغانپور په باب زموږ قضاوت نوکي سم برېښېدلی وي.

ښاغلی افغانپور د کیسې تخنیکي اړخ ته ډېر ځیر و او دغه لور ته یې خورا ډېره پاملرنه کوله. که څه هم ښاغلي افغانپور تر دوهمې مرحلې وړاندې هم ځینې لنډې کیسې کښلې دي. مګر په را وروسته کې یې په دغه برخه کې ډېر پرمختګونه وکړل. که څه هم د دوی د کیسو ژبنی اړخ لږ څه د تامل وړ برېښي او له ژبني اړخه ځینې کمزورۍ لري چې په پورتنۍ بولګه کې هم دغه کمزوري لیدلای سو.

**زرین انځور**

د لنډې کیسې په معاصره دوره کې زرین انځور هغه کیسه لیکوال دی چې که چیرې په دغه دوره کې د درو یا څلورو بریالیو او اوچتو لیکوالو نومونه یادیږي. نو په هغو کې به یو هم خامخا ښاغلی زرین انځور وي.

ښاغلی زرین انځور پر پښتو لنډې کیسې یو ښېل نعمت دی چې خدای پاک پر لورولی دی. ښاغلي انځور په حقه سره د پښتو لنډې کیسې په هنري کولو کې زیاته ونډه اخیستې او اخلي یې.

د معاصرې کیسه لیکنې په لړ کې ښاغلی زرین انځور د لنډې کیسې له مخکښو مؤسسینو څخه ګڼل کیږي چې هم یې په هیواد کې دننه د غوایي د اړودوړ په لومړنیو کلونو کې په تول پوره کیسې کښلې دي او هم یې په پېښور کې د مقاومت د ادبیاتو پر مهال د کیسه لیکنې په لړ کې په هنري لحاظ تر ډېرو لیکوالو وړاندې د معاصرې کیسه لیکنې، په ډګر کې کوتلي او پاخه ګامونه اخیستي دي او په اصطلاح تش شعارونه یې نه دي کښلي.

د ښاغلي انځور (تور ګلاب) نومې کیسه په معاصره دوره کې یوه له ښو کیسو څخه ګڼله کیږي

**تور ګلاب**

زیاته ګڼه ګونه وه. سینما ته ګڼ شمېر خلک روان وو. لکه چې کوم ښه فلم راغلی و. د فلم د ننداري پیل ته به لا نیمه ګړۍ پاته وه چې د سینماپه شاوخوا کې دومره شور ماشور او ګڼه ګونه جوړه شوه چې تا به ویل په کوم لوی ښار کې د کومې مېلې لومړۍ یا وروستۍ ورځ ده.

د خلکو بهیر ښه په زور کې و. د فلم د ننداري له پاره په را روانو کسانو کې زیاتره پیغلې او ځوانان وو. ګڼه ګونه له یوې شېبې نه بلې شېبې ته زیاتېدله. په دې شور ماشور کې د یوه کوچني هلک چغې له ورایه اورېدل کېدې. او داسې بې واره بې واره چې تا به ویل په کومه دښته کې ترې پلار یا ورور بې درکه سوي دي.

د "سګرټ، ګوګرد"! ... "سګرټ ګوګرد"! چیغې نورې هم زیاتېدلې او د ګلاب دا چغې دومره بې واره وې چې ټول لارویان یې ځانته متوجه کولې شول. د ګلاب ننۍ چیغې له خوښۍ ډکې وې. ځکه چې په داسې ګڼه ګونه کې د هغه مزدوري هم بده نه وه او نن خو یې سګرټ ښه په بېړه خرڅېدل.

هغه نن د سګرټو په خرڅېدو ډېر خوشحاله ښکارېده او چې کوم چا به ترې کوم دانه سګرټ اخیسته نو دومره خوښي به یې ورته څرګندوله لکه وړیا پیسې چې ورکوي. نن یې پوره درې ډبلې سګرټ خرڅ کړې شول. خو ګلاب چې به د خلکو دې ګڼې ګوڼې ته وکتل او د لارویانو خوشحالیو وته به یې پام شو نو په زړه به یې د غم یوه لویه څپه راخوره شوه او که له یوې خوا د سګرټو په خرڅېدو خوشحاله و نو له بله پلوه به یې د غم دې څپې د وجود ټول رګونه سست کړل.

ګلاب خپله مور رنځوره په کور کښې پرې ایښې وه او چې د موډ او فېشن دې پېغلو او مېرمنو ته به یې وکتل نو سمدلاسه به ورته د مور زېړه او رنځوره څېره ورمخې ته شوه او دغم تورې، تورې لړې به یې په زړه راخورې شوې. له هغې ورځې چې د ګلاب پلار مړ شوی و نو بیا یې مور ښه ورځ نه وه لیدلې. دوی د هغه له مرګه وروسته خو شپې بې کوره ګرځېدل. خو آخر ورته په ګېډه او خېټه د کوم کور مزدوري پیدا شوه. د هغه کور یو ګراج یې ورته ورکړ مور به یې د هغه کور کار کاوه او ګلاب به لګیا و د "سګرټ ګوګرد، سګرټ ګوګرد" چیغې به یې وهلې او په ورځ کې به یې کله، کله پوره لس روپۍ هم ګټلې شوې.

هغه لس کلن هلک و. رنګ یې تک تور و. خدای ﷻ خبر مور او پلار پرې څنګه د "ګلاب" نوم ایښی و. خو لکه چې د زمانو غمجنو سېلیو یې رنګ نور هم تک تور کړی و ...

د سینما تر څنګه چې ګڼه ګوڼه کمه سوه او د فلم ننداره پیل سوه نو بیا چا سګرت هم نه اخیستل. ګلاب ته یو ځل بیا مور وریاده شوه، خدای ﷻ خبر څنګه چې هر چا ته او په تېره بیا هري ښایسته او فېشني پېغلې ته وکتل نو د خپلې مور زېړ، زبېښلی او رنځور مخ په یې مخې ته ودرېد ... تر پایه (دا سرونه. دا رسمونه. د زرین انځور د لنډو کیسو لومړۍ مجموعه، ۵۷ _ ۵۸ _ ۵۹ مخونه، ۱۳۶۳ ل کال د کابل چاپ).

که څه هم دا کیسه د غوایي تر اړودوړ څو کاله وړاندې لیکل سوې ده او د ښاغلي زرین انځور له لومړنیو کیسو څخه شمېرله کیږي مګر د دوهم پړاو د مطالعې په سلسله کې د پام وړ کیسه ده چې په نوي او Modren شکل سره کښل سوې ده او موږ یې د دوهم پړاو په کتار کې دروو.

دغه کیسه د تراژیدي ادب په برخه کي له تراژیدي ډکه کیسه بلله کیږي او موږ که د معاصري کیسي پر تراژیدي اړخ ږغیږو نو ښایي چي د دغي کیسي یادونه په خورا قدر سره وکړو. په دغه کیسه کي د یوه خوار او غریب یتیم او د ده د رنځوري کونډي مور حالت په خورا ښه ډول بیان سوی دی.

ښاغلی انځور د معاصري لنډي کیسي په برخه کي له ډیرو وتلو مخکښانو څخه شمېرل کیږي چي هم یې د غوایي تر اړودوړ وروسته څه موده په کابل کي د لنډي کیسي نغری تود وساتی. هم یې په پېښور کي د جهاد او مقاومت پر مهال تر ډیرو لیکوالو په ښه او اصولي ډول کیسي وکښلي چي د (ترورمی) په نوم د لنډو کیسو ټولګه یې تر ټولو غوره بېلګه ده او هم تر هغه وروسته چي افغان غمیزي بل رنګ او شکل پیدا کړ او له یوې خوا په افغانستان کي داخلي جنګونه تاوده سول او له خپلو افغانانو څخه افغانان د اورونو په بټیو کي وایشېدل او له بله پلوه په پردیو ملکونو کي د افغان ولس ربړېدلی حالت و نو په دغو ټولو برخو کي ښاغلی انځور ډېر فعال کیسه لیکوال پاته سوی دی او دغه راز راز غمیزي یې د خوږې لنډي کیسي په شکل د افغانانو تر لاسونو ور رسولي دي چي (دلته غرونه نه دي هسک) او ځیني متفرقي کیسي یې په بېله یادونه او څېړنه ارزي.

اروانباد امین افغانپور د دوی په باب وایي

زرین انځور د خپل داستاني زمان او مکان ښه پېژندنه لري. د داستان لیکني (په تېره بیا لنډ داستان) د قواعدو تر وسه وسه رعایت کوي او له هیلو نه ډک سباوون یې په مخکي کي دی.

د پخواني نسل د هغو داستان لیکونکو په لار او لیکه نه ځي چي که څوک یې مني او که نه. دا دعوه لري چي همدا داستان دی او زه یې هم لیکوال (دا سرونه او دا رسمونه. د زرین انځور د لنډو کیسو لومړۍ ټولګه. د امین افغانپور یادښت. ب مخ. ۱۳۶۳ ل کال د کابل چاپ).

**احسان الله آرینزی**

د معاصري کیسه لیکني په برخه کي ښاغلی احسان الله آرینزی د پام وړ کیسه لیکوال دی چي هم یې د کمیت له مخي او هم یې د کیفیت له مخي ښه او ډیري کیسي کښلي دي.

ښاغلی آرینزی هغه څوک دی چي د لنډي کیسي په هنري کولو کي یې د ځینو ګوتو په شمار لیکوالو غوندي برخه اخیستې ده او په دغه ډګر کي یې د پام وړ پرمختګونه هم کړي دي. د دوی (شلېدلي تارونه) نومې د لنډو کیسو ټولګه په ۱۹۸۶ ع کي چاپ سوه چي بیا یې تر هغه وروسته په ۱۹۹۱ ع کي د (سېل) په نامه بله د لنډو کیسو ټولګه خپره کړه چي په دې باب ښاغلی محک وایي:

"احسان الله آرینزی د خپلي لومړنۍ او دوهمي مجموعې تر مېنځ دومره واټن وهلی دی چي که سړی یې په ژوره توګه وڅېړي نو د لفظي او ژبني ګډون څخه پرته به ونه پوهېږي چي دا وروستۍ مجموعه د شلېدلي تارونو د مجموعې د لیکوال ده. په وروستۍ مجموعې کي لیکوال د جنګ جګړې د ورانیو، بربادیو او په هغې کي د خلکو د خواریو، ربړونو او اروایي حالاتو انځورونه څه په سمبولیکه ژبه او څه هم په ساده ژبه وړاندي کړي دي. هغه دلته ډېر هنر ته پام ساتلی دی تر خپل تعهده پوري او یا په بله ژبه هغه خپل تعهد دوه اړخیزه کړی دی. له یوې خوا د خپل لید ډول او له بلې خوا د هنر په برابر کي تعهد چي زما له نظره په دې کار کي بریالی هم دی (سېل. د احسان الله آرینزي د کیسو ټولګه. د محک سریزه. ۳ ـ ۴ مخونه ۱۹۹۸ ع کال دوهم چاپ)".

د ښاغلي آرینزي د (پردېسي) په نامه لنډه کیسه په معاصره دوره کي له ښو کیسو څخه بللای سو

**پردېسي**

په ډیلي کي مي د استوګني یوولسمه ورځ وه چي د (آپوګر) په لوی پارک کي له وزیر سره مخامخ سوم. ښه په خوند روغبړ مو وکړ. که څه هم چي ما په ډیلي کي په دې څو ورځو کي ډېر افغانان لیدلي وو خو د وزیر په لیدو خوښ شوم. ځکه په کابل کي مي ورسره پېژندل او کله نا کله به مو بنډار کاوه.

دی هغه وزیر و. هیڅ بدلون نه و پکي راغلی. زموږ د وطن او زما د ښار او زموږ د کوڅې وزیر' کله چي دی په وطن کي و، ډیرو خلګو دا خبري ځني اورېدلي وې

دلته ژوند تدریجي مرګ دی ... دا وران وطن او دا ویجاړ وطن ... او چي یو نیم چا به ترې پوښتنه وکړه

نو څه وکړو؟'

ده به په غوڅه ورته وویل:

له دې ځای نه تېښته په کار ده ... دا هیڅ د ژوند ځای نه دی، دلته هیڅ تمدن نشته ... وزیر به تل ویل چي له دې وران ملک نه دباندي هر ځای ژوند شته، تمدن شته، خوښي شته ...

بیا به یې سوړ اسوېلی وکیښ او وبه یې ویل

خو دلته هیڅ نه شته' ... او له دې ځای نه تېښته په کار ده ...

زما په خیال درې میاشتي مخکي، وزیر له خپلي مېرمني او کمکۍ لور سره یو ځای خپل وطن پرېښود او د خپل وطن د سپړلیو خوندوري ورمې یې د ډیلي په سوزنده او بې خونده تودوخه بدلي کړې او ځان یې پردېسی کړ.

وزیر تر جوړ تازه وروسته سمدستي په خندا شو او وې ویل:

ته هم راغلې ! ! ...

او بيله دېنه چې ما ځواب ته پرېږدي وې ويل :

آخر تپول راځي ... ما خو درته ويلي وو چې له هغه ځای نه تېښته په کار ده ...

ما ورته وويل :

زه د علاج لپاره راغلی يم.

ده بيا وخندل او وې ويل :

تپول په اول کې يو څه وايي ... په هر نامه چې وي خلګ له هغه ملکه راتښتي او زياته يې کړه

هغه ډېر وروسته پاتی ملک و ... جګړې نور هم ويجاړ کړ ... هلته ژوند تدريجي مرګ دی !

تر ډيرو خبرو وروسته وزير خپله پته راکړه او تينګار يې وکړ. ماښام کورته ورشم زه په دې بلنه ډېر خوښ شوم ځکه چې د څو ورځو مسافرۍ او يوازيتوب او د روغتونونو لالهاندۍ ستومانه کړی وم ... تر پايه (سپل. د احسان الله آرينزي د لنډو کيسو ټولګه. ۸۱ _ ۸۲ _ ۸۳ مخونه. ۱۹۹۸ ع کال دوهم چاپ).

ښاغلي درنو لوستونکو د ښاغلي آرينزي د کيسې په پورتنۍ بولګه کې د دوی داستاني ځواک ليدلی وي چې په ډېر ښه ډول يې کيسه راپيل کړې ده او په دغسې خوند مخ په وړاندې پسې تللی دی.

يو وخت ښاغلي آرينزي د کميت له پلوه خورا ډيرې کيسې کښلې، مګر دا څو کلونه کيږي چې د دوی کيسې چنداني نه تر سترګو کيږي. ښايي ځيني مصروفيتونه به وي چې تخليقي کارونو ته يې نه پرېږدي. خو په هر صورت ښاغلی آرينزی د معاصرو کيسه ليکوالو په ډله کې د قدر وړ ليکوال دی.

**محمداکبر کرګر**

د غوايي تر کودتا وروسته د ښاغلي محمداکبر کرګر داستاني فعاليتونه د ځيرني وړ دي چې په دغه مرحله کې يې درې مجموعې "شېبې" په ۱۹۸۵ ع. "سينده څه سينده بهېږه" په ۱۹۸۸ ع او "د زمانې سندره" په ۱۹۹۱ کې چاپ کړي دي او تر هغه وروسته يې ځيني کيسې هم د هيواد په بېلابېلو خپرونو کې خپرې سوي دي او تر دغو ټولګو يې څو کلونه وروسته د (چې ماشومان سندره وايي) په نوم خپره کړې ده چې اروايي ښه لري او زياتره يې په هيواد کې د خپلمنځي جګړو پر موضوعاتو راڅورلي او د کورنيو جګړو يوه ښه عکاسي يې بللای سو.

ښاغلی اکبر کرګر د معاصري کيسې له پوخ عمره ليکوالو څخه ګڼل کيږي چې د دوهمي مرحلې په پيل کې يې په دغه برخه کې ځيني برياليتوبونه هم په نصيب سوي دي.

دلته به زه د دوی د يوې کيسې يوه بولګه راوړم تر څو دا راته معلومه سوې وي چې ښاغلی کرګر واقعاً د کيسې له حقدارو ليکوالو څخه دی :

**تړلي مټي**

هغه د نورو ورځو په څېر دا وار هم لوړ مازديګر د دوکان په کوچنيو پاټکو جګ شو. په دوکان کې د ټل په څېر په يوه دړه کښېناست. د دوکان له لوګو وهلي کړکۍ يې د بازار ګڼه ګونه وليده. خلک غلي او چوپ خوځېدل. د هغه په سترګو هم داسې ورتلل لکه چې له پاسه آسمان ورته ګوري. د بازار په منځ کې شور او زوږ کم شوی و. د سودا پلورلو آوازونه ورو _ ورو غلي کېدل لوړ مازديګر و. د لمر سترګه په غرغره وه. لمر خپلې وړانګې له ډېرو ليرې غرونو څخه راټولولې. هر څه خړيخون وو. دېوالونه خړ وو. آسمان هم خړ و. شين والی ورو ورو په تورتم او يا د ماښام په تروږمۍ کې راڅرګندېده. د دوبې سخته ګرمي وه. د بازار د خلکو د تنو پوري کميسونه نښتي وو. ګرمي زوروره وه. هوا هم دپ او خپه کوونکې وه. زېږ زېښنلي خلک هم کمېدل او کرار کرار د ګڼ بازار شورماشور غلی کېده.

هغه دا مهال په پخو ګامونو دوکان ته راختلی و. په سخته ګرمي کې يې نرۍ څادر په ولو اچولی و. کوړې کوړې تکو تورو وينتانو يې په ښکلا او ځليتوب کې زياتي راوسته. ډېر متين درونډ او په صبر سره د دوکان په دړه ناست و. کله به يې د دوکان په لوګو وهلو دېوالونو باندې په لاسونو رسم شوي زمري وليدل چې د بنيادمانو تصويرونه ورته مهار اچوي.

هسې به يې ورته پام شو. عادي خبره وه. دومره په زړه پورې نه وه. خو لږ شيبه به يې د ياغي او بې پروا ځلمي د فکرونو لړۍ له ځانه سره يووړه. له ځانه سره به يې لاهو کړ او بيا به يې په درنګ سات کې د دوکان د توري او لوګو وهلي کړکۍ څخه د بازار پر خلګو سترګې وګنډلې. ځيني به په کې چابک وو، خو هغه هر مازيګر دې دوکان ته راتلو او هر مازديګر به يې له همدې کړکۍ څخه د دې وګړو ننداره کوله.

خو دا وار څه بل شان و. دا وار يې د دوکان له کړکۍ څخه په ليرې افق کې د بوډۍ د تنور لمبې ليدلې او بيا به يې په هغه تور تم کې د برېښنا يوه څريکه هم تر سترګو شوه. داسې به ورسره په خود شو لکه چې د ده په مغزو کې يې هم څريکه کړې وي. يو وار به يې د سترګو. سترګو کې کېده. د اور لمبې به يې تر سترګو تېرېدلې او له همدې سره به يې مينه هم درلوده. داسې لکه چې زړه يې غوارې اور شي او د نارو اوچ او لانده سره يو ځای وسيزي. خو دا وار څه بل شان په چرتونو کې لاهو و. لکه چې د دوکان د ناستو څو کسو

ورته پام نه و او که و به. کله به یې د کړکۍ څخه بهر په زیړو زبېښلو خلکو سترګې ومښتې. د کابل د زاړه ښار خپه او د یې هوا به یې ستوني ور بند کړ او کله به یې هم په لاسونو کښل شویو د زمرو او زلمو تصویرونو ته وکتل چې د دوکان په لوګو وهلو دېوالونو کې بربنډېدل ... تر پایه (سپنده ځه، سینده بهېږه، د محمداکبر کرګر د لنډو کیسو ټولګه، ۵۷ ـ ۵۸ او ۵۹ مخونه، ۱۳۶۶ ل کال د کابل چاپ).

د ښاغلي کرګر په لنډو کیسو کې انځوریز اړخونه د ډیري پاملرنې وړ دي او موږ که د دوی لنډې کیسې ولولو، ښایي چې د دوی په ډیرو کیسو کې دغه انځوریز اړخونه ووینو لکه په پورتنۍ بېلګه کې.

کله به یې د دوکان په لوګو وهلو دېوالونو باندې په لاسونو رسم شوي زمري ولیدل چې د بنیادمانو تصویرونه ورته مهار اچوي.

که څه هم د دغې جملې تر شا یوه لویه معنا هم پرته ده. مګر په ظاهري ډول موږ ته د دوکان چاپېر ښه ترا انځوروي چې ډېر پخوانی شکل لري او شاوخوا رسمونه پکښې انځور کړه سوي دي.

همدا راز د ښاغلي کرګر په کیسو کې رواني اړخونه هم د هیرې نه دي او د دوی په زیاترو کیسو کې د کیسې د کرکټر رواني اړخ خورا ښه بیان سوی وي، په پورتنۍ بېلګه کې هم د کرکټر رواني اړخ او د ده اروایي حالت په ښه ډول انځور کړه سوي دي، چې د (ماشومان سندري وایي) ټولګې ځینې کیسې یې ښه بېلګې دي.

**اکبر بری**

که څه هم د غوایي تر کودتا وروسته په دغو تازه کلونو کې د ښاغلي اکبر بري کیسې نه دي خپرې سوې. مګر د عمر په لحاظ او د کیسو د لیکلو له نېټې څخه موږ ښاغلی بری د دغو لیکوالو په کتار کې دروو او د معاصري کیسه لیکنې په برخه کې په ښه حق ورته قایل یو. ښاغلی بری هم له پوخ عمره کیسه لیکوالو څخه ګڼل کیږي چې غالباً لومړنۍ کیسې به یې له پنځوسمو لمریز کلونو څخه راپیلیږي.

لکه چې موږ د ښاغلي زرین انځور په برخه کې دا خبره کړې وه چې که د معاصري لنډې کیسې په بریالیو درو یا څلورو لیکوالو کې هر څوک وي نو یو به یې ښاغلی انځور هم وي او همداسې خبره موږ د ښاغلي اکبر بري په برخه کې هم کولای سو. دوی واقعاً له اوسنیو نومیالیو او بریالیو کیسه لیکوالو څخه ګڼل کیږي. په تېره بیا ښاغلی بری په کیسه کښلو کې ډېر محتاط لیکوال یادیږي چې هم د موضوع په ټاکلو کې له ډېر احتیاطه کار اخلي او هم د کیسې په کښلو کې.

ښاغلی بری د لنډې کیسې په برخه کې ډېر فعال پاته سوی دی او د فعال معنا به مو دا وي چې هم یې د غوایي تر کودتا وروسته د پردیو یرغلګرو او داخلي وطن پلورو په باب کیسې کښلي، هم یې د جهاد او مقاومت د کیسو په برخه کې خپل نوم ځلولی، هم یې تر هغه وروسته د کورنیو جګړو په باب ډېر شمېر کیسې کښلي او هم یې د اوسنیو ناخوالو په اړه خپل قلم ډېر تېز ساتلی دی.

لکه ښاغلي افغانپور چې د زرین انځور په حق کې دا خبره کوله چې دوی د لنډو کیسو د قواعدو تر وسه وسه رعایت کوي، نو همدغه خبره موږ د ښاغلي بري په باب هم کولای سو. ښاغلی بری د لنډې کیسې قواعدو او اصولو ته ډېر ځیر دی او په دغه برخه کې یې ځانته یو جلا مقام هم ګټلی دی.

د ښاغلي بري (بدکاره) نومې لنډه کیسه د دوهم پړاو په سر کې له لومړنیو ښو کیسو څخه ګڼله کیږي

**بدکاره**

کریم جان د غلام سخي د دوکان مخې ته پر وړه څوکۍ ناست و، د چایو ډکه پیاله په لاس نرم نرم ورسره ږغېده، چې مخامخ ښځې یې پام ځان ته ور واړاوه، ښځه له کینې لاس نه پرتې کوڅې راوتلې وه، پیکه شنه بوغره (چادري) یې پر سر، نرۍ جګه ښځه وه.هماغلته وړاندې پاخه سړک ته پر ور وتلې لاره ودرېده. تلولۍ غوندي یې شاوخوا وکتل چې پر ده یې سترګې ولګېدې، خدازده ولې لږ پرې راتاو شانتې شوه، څو شېبې یې نېغ نېغ ور وکتل. دې کار د کریم جان پر تندي د حیرانتیا ګونځې جوړې کړې، څو ګډوډ فکرونه سر ته ورغلل. لا سر ته د ورغلو فکرونو په سره سمولو لګیا و چې ښځې بیرته مخ ترې واړاوه. وړاندې د بازار په منځ کې د تېر شوي پاخه سړک پر لوري وخوځېده. خو څو ګامه پس بیرته ودرېده، بیا یې ده ته تر شا ور وکتل.

بیا بیرته یو څو ګامه وړاندې لاړه، بیا بیرته ودرېده. ده ته یې تر شا ور وکتل او چې کریم جان یې بیا هم هماغسې خوا ته ور کتونکی ومونډ، دا هم را تاو شوه. دغسې ورو ورو او زړه نا زړه پرې را رهي شوه. د کریم جان زړه دربا پیل کړه، وارخطایي یو دوه ګرندي غورپه له چایو وکړل. یو ګونګ شانته ګومان ور پیدا شو. ښځې هماغسې ده ته کتل. وار په وار دوکان ته رانژدې کېده، چې ور

ورسېده. پرې ور تاو شوه. د ده مخې ته غلام سخي ته مخامخ ودرېده. کريم جان وچ حلق. ښځه له نژدې. له نظره تېره کړه. دلته له نژدې دومره جګه ورته ونه ايسېده. خو نرۍ او ډنګره اوس هم وه. بوغره يې ښايسته ډېره زړه وه. ځو ځايه يې شلېدلي وو. چې په ښلابېلو تارونو بدرنګه ګنډل سوې وه. نوري جامې يې هم خواري خو پاکي وې. د بېلابېلو شيانو پوښتني يې له غلام سخي ځخه وکړې او چې هر وار به د هغه پام د شيانو په پلټلو پسې پر بله شو. دې به بيا کريم جان ته په ځنګ ور وکتل. کريم جان هم شرمندوکې موسکا پر شونډو ځو ځله سترګي ورسره وجنګولې او هر وار يې خواږه خوندور شوقونه ورکې حس کړل.

ښځې اخر شی هم و نه پېرل. بيرته رهي شوه او چې له لږ وړاندي ځايه يې بيا هم ده ته تر شا ور وکتل. نو د کريم جان ګومان هم په يقين بدل شو. زياتي نو دلته کښېناستو آرام نه ورکاوه، ژر يې تشه پياله پر خپل ځای کښېښوده غلام سخي ته يې وويل

زه دستي بيرته راځم.

او پاځېد. ښځه د پاخه سړک پر خوا روانه وه. دی هم پسې رهي شو. ښځه د سړک پر غاړه ښي لاس ته تاو شوه. دی هم بازار ته له ور رسېدو سره ښي لاس ته پسې تاو شو. خو د خلکو په ګڼه ګوڼه کي يې ښځه ونه ليدلای شوه. وارخطا د ګوتو پر سرو ودرېد. غاړه يې د هغې د موندلو په تمه اوږده کړه. چې بيا يې هم ونه ليده. لا يې ګام پسې چابک کړ، تلولي رهي شو. له ښه مرغه يې ځو ګامه پس بيرته سترګي پرې ولګېدې.

د يوه پلورنځي مخې ته ولاړه وه. ځان يې د هغې د لويو ښيښو يې کړکيو شا ته په ننداره اخته کړی و. کريم جان خوشحاله وموسل. په زړه کي يې وويل

شاباس د نر لوري، ماسکه ويل رانه ورکه سوې. خو ته دلته راته ماتل وې ... او پرې ور رهي شو. چې شېبې پس هغې هم وليد، ننداره يې پرېښوده بيرته رهي شوه. کريم جان ځان ور ورساوه ځو ګامه دغسې چوپه خوله ځنګ په ځنګ ورسره لاړ، چې لږ سره يوازي غونډي شول. هماغسې په تلو تلو کې يې ورته وويل

سلام . چيرته داسي له خيره روانه يې؟

ښځې بې له دې نه چې ور وګوري، وويل

هېچرته نه، کور ته ځم.

پسې وې پوښتل

او ته؟

کريم جان لنډ وخندل.

زه؟ ... نه پوهېږم. هر ځای چې ته وايې.

دې غلي په ځنګ ور وکتل. څه يې ونه ويل. خو کريم جان وړاندي لاړ.

ځنګه ما هم درسره بيايې؟

ښځي ځان ناګومانه واچاوه.

چيرته؟

ستا کور ته کنه؟

ښځې بيا په ځنګ ور وکتل، مانا داره يې وويل

هلته به نو څه وکو؟

او چې کريم جان په خندا وويل

هيڅ يو سات به سره کينو.

دې هم لنډ وخندل. وې پوښتل

پيسې لرې؟

هو کنه.

ځومره؟

کريم جان ويارلي وويل

دغومره خو شته چې ستا چاره پې وشي ... تر پايه (د سپوږمی سترګه، د اکبر بري د لنډو کيسو ټولګه ــ ۳۵ ــ ۳۶ ــ ۳۷ ــ ۳۸ مخونه، ۱۳۸۳ ل کال چاپ).

د (بد کاره) په نوم کيسه په ۱۳۵٦ ل کال کي کښل سوې ده، خو د کيسي له شکل او د نويوالي له مخې يې موږ د دوهم پړاو په لومړنيو کيسو کي شمېرو.

په کيسه کي د يوې بېوزلي او غريبي کونډې ژوند او کړه وړه خورا په ابتکاري ډول سره انځور کړه سوي دي او د هغې دربدره حالت په کيسه کي يوه کاميابه تراژيدي رامنځته کړې ده.

په کيسه کي د کريم جان اروايي حالت هم ښه ترسيم سوی دی او يو ډول وارخطا ځوان معلومېږي چې هر څه په ډاګه نه سي کولای او شرمندوکی طبيعت لري.

(بدکاره) د ښاغلي بري له لومړنيو کيسو ځخه شمېرله کيږي، مګر د دوی بريالیتوب لا له هماغه پيله معلومېږي خو تر دې وروسته ښاغلي بري تر (بدکاره) نوري ډيري ښې کيسې کښلي دي، په تېره بيا د کيسي د پيل له مخي ښاغلی بری ډېر مشهور دی چې کيسې ته يو خورا ښه پيل ور اچوي.

د ښاغلي اکبر بري درې د لنډو کيسو ټولګي خپرې سوي دي چې د (سوداګر)، (نکل) او (د سپوږمی

سترگه) په نوموړو ګومول سوي دي او د پښتو لنډي کیسې په برخه کي یوه پر ځای او ښه اضافه بلل کیږي.

**بریالی باجوړی:**

د پښتو لنډي کیسې پر هسک ښاغلی بریالی باجوړی ځانته ځانګړی ځای لري، او تر ډېره ځایه یې په دغه ډګر کي خپل نوم ځلولی دی. ښاغلی باجوړی هم په اصطلاح د انځور، کرګر، بري او ... همزولی لیکوال دی او تقریباً لنډي کیسې یې په یوه دوره کي راپیل کړي دي.

د معاصري لنډي کیسې په مطالعه کي به زما په خیال د باجوړي کیسې له پامه ونه غورځول سي او لکه د ځینو نورو لیکوالو غوندي دوی پر یوه مناسبه موقع په کیسه لیکنه پیل کړی دی او تر ډېره ځایه یې ښه کیسې هم کښلي دي.

د ښاغلي باجوړي ځیني کیسې په متفرق ډول د هیواد په خپرونو کي خپرې سوي دي او په ۱۳۶۵ ل کال کي یې د (ګیلې) په نامه د لنډو کیسو ټولګه هم چاپ سوې ده.

اروابناد افغانپور د دوی په باب کاږي:

"دغه مجموعه به د پښتو معاصرو کیسو په لیکه کي خپل ځانګړی او وړ ځای ولري او هغه تشه به ډکه کړي چي په دې برخه کي موجوده وه او ده" (ګیلې، د بریالي باجوړي د کیسو مجموعه، د امین افغانپور سریزه، ب مخ. ۱۳۶۵ ل کال د کابل چاپ).

که څه هم ښاغلی باجوړی زیار باسي چي کیسې یې له تخنیکي او اصولي پلوه په تول برابري وي مګر په (ګیلې) نومې مجموعه کي یې ځیني داسي کیسې سته چي تخنیکي او منطقي کمزوري لري، مګر بیا هم د معاصري کیسه لیکني په برخه کي د دوی کار د ستاینې وړ دی او د دوهمي مرحلې له لومړنیو لیکوالو څخه یې بللای سو (البته د زمان په لحاظ).

د ښاغلي باجوړي (د سکرو کان) په نوم کیسه د یوه غریب او مزدور ځوان او د ده د اسکېرلي او بېوزلي مورکۍ ژوند په خورا ښه ډول انځوروي.

**د سکرو کان**

د زلېخا ترور په سترګه وار نه و. له سهار نه راهیسي یې سترګه شپېه په شپېه رپېدله او له هر رپ سره به یې چي په سترګه لاس راښکه نو له ځان سره به یې ورو شان وویل: په ښو مي نیولې، بهرام زوی به مي راځي.

زلېخا ترور د خدای ﷻ په دې لویه او ارته دنیا کي د خپلو لمسیانو سره د همدغه یو زوی تر سیوري لاندي ژوند کاوه او بله څه اسره یې نه وه. همدغه یو زوی ته یې کوندتون کړی و او د هغه په لویېدو کي یې خپله ځواني خاوري کړې وه. د سر په وېښتانو کې تور تار نه و پاتي او د سترګو نظر خو یې سم نه لګېده.

خو اوس د هغې د سختۍ شپې وتلې وې. زوی یې زلمی او په متو قوي و. د ښځي خاوند او د دوو بچو پلار و. هغه اوس د سکرو په کان کي کار کاوه او کله ناکله به د خپلو بچو او مور لیدو ته راته.

هسي خو د زلېخا ترور زیاته هیله وه چي په زوی باندي نور تعلیم هم وکړي او له هغه نه غټ سړی جوړ شي خو د قسمت کارونه وو چي پلار یې مړ شه نو تعلیم ترې نیمګړی پاتي شو او په روزي ګټلو پسې بهډي را ووهلې.

زلېخا ترور خو ډېر کوشش وکړ چي د زوی لپاره یې کوم مناسب کار پیدا شي. په همدې هیله یې د ډېرو دروازې ووهلې، ډېرو ته یې سوال او زاري وکړې خو څه ترې جوړ نه شول او اخر دا چي سر یې د سکرو کان ته ووت.

دا یې دوم کال و چي کور ته نه و راغلی او زلېخا ترور خو ځکه وارخطا وه چي ګوندي بیا د تېر کال ټوقه ونه شي او زوی ته یې څوک رخصتي ور نه کاندي. د زوی د دوه کلونو جدایي بیخي لېوني کړې وه او تل به لاس تر زني په چرتونو کي ناسته وه.

نن هم چي د ماپښین د لمانځه سلام یې وګرځاوه نو لاسونه یې پورته کړل او د خپل زوی د روغتیا او سلامتیا د غوښتلو لپاره په زاري سر شوه.

هغې لا دوعا نه وه خلاصه کړې چي دروازه وټکېده، د دروازې له آوازه سره سمه له جای نمازه سپکه راپاڅېده په ډېري توندي دروازې ته ووته، خو لمسی یې له دې نه مخکي سوې وه او چي دروازه یې خلاصوله نو غږ شو:

د بهرام خط راغلی.

د زلېخا ترور له خوښۍ زړه نه ودرزېده. دروازه یې زر خلاصه کړه د لیک راوړونکی یې پر تندي ښکل کړ او وې ویل:

په عمر دي برکت شه خدای دي درسره ښه وکړي. زویه ... تر پایه (ګیلې، د بریالي باجوړي د لنډو کیسو ټولګه، ۲۵ ـ ۲۶ ـ ۲۷ مخونه، ۱۳۶۵ ل کال د کابل چاپ.

که څه هم د ښاغلي باجوړي ځیني کیسې د تامل وړ برېښي او لکه چي وړاندي هم موږ یادونه وکړه چي ځیني کمزوري لري او په "ګیلې" نومې مجموعه کي یې ژبنۍ نیمګړتیاوي هم تر سترګو کیږي. مګر د دوی اوسنۍ

کیسې د ډېرې ستاینې وړ دي او په اوسنیو خپرونو کې چې د دوی داسې مانه لنډه کیسه خپریږي د دوی له لومړنیو کیسو سره په هنري لحاظ ډېر تفاوت لري او په دغه برخه کې یې ډېرې بریاوې او پرمختګونه په نصیب سوي دي.

**شریفه شریف**

که څه هم د آغلې شریفه شریف کیسې د کومې ټولګې په ډول نه دي خپرې سوې مګر د هیواد په خپرونو کې په متفرق ډول نشر سوي دي او د معاصرې کیسې یوه تشه یې خامخا ور ډکه کړې ده.

زما په خیال به د دې لنډه کیسه لومړی ځل په ۱۳۵۶ ل کال په "مېرمن" مجله کې خپره سوې وي.

آغلې شریفه شریف د لنډې کیسې په باب په اکاډیمیک ډول ډېره مطالعه لري او د دې همدا ذوق دا څرګندوي چې د (لنډې کیسې تیوري) نومی کتاب یې په پښتو ژباړلی دی.

د آغلې شریفه شریف د کیسې له خوړلنی او ځنیو هنري او داستاني ځانګړتیاوو له مخې موږ اړ یو چې د دوهمې مرحلې د لومړنیو لیکوالو په سلسله کې د دې یادونه هم وکړو. د آغلې شریف د (هیلو بهیر) نومې لنډه کیسه ډېرې هنري او داستاني ځانګړنې لري او تراژیدي یې د پام وړ ده. په دغه کیسه کې د یوې غریبې ښځې ژوند په ډېر تراژیدي انداز بیان سوی دی. دلته به زه دغه کیسه په بشپړ ډول راوړم څو دا دعو مو پخه وي چې موږ هم ډېره ښه او یا ډېرې ښې ښځینه کیسه لیکوالې لرو.

### د هیلو کاروان

څه کوې فکر دې چیرته دی؟ بوټونه دې راته چټل کړل، خپله یې پاک که. دې مرداري لمنې سره به شل متره د خیرې نه ډکه.

د سرویس په فضا کې دا خبرې د هغې ښځې د خولې نه داسې په بېره او غضب وتلې چې ما ویل بیا کوم غل ګیر شوی. دېخوا آخوا ته مې وکتل.

خوا ته مې ګورم یوه بوډۍ ښځه ناسته ده، پښتنې جامې یې په ځان، لوی پېټی یې په غېږ کې ټینګ نیولی. د شرم او خوږ نښې یې په مخ لیدل کیږي. شونډې یې رپیږي.

د قهر او غصې لړلو سترګو سره هغې ته ګوري چې شونډې لا ښوري او په تریو تندي ښېرا ورته کوي.

کله ما ته ګوري. کله خپلې لمنې ته چې زما د کالو سره نژدې ده. په وېره وېره داسې چې کنځلو ته په تمه ده ... غږ یې ډېر ورو اورم چې زګېروي ته ورته دی.

جار ' لوري چټله مې کړې. سترګې یې په غمجنه بریښنا ځلیږي او سپېړې یې ښکاره وي. مخ یې د خوږ نه تک تور معلومیږي، هډوکې یې وتلي، کالي یې خیرن دي. لاسونه یې د خیرې او چاودني لاندې پټ دي. ګوتې یې کلکې او ماتې ښکاري، پښې یې لوڅې دي، د پښو ګوتې یې هم ټوټې ټوټې دي. شونډې یې وچې دي خو مهربانه موسکا یې خلاصوي.

داسې ژوره ساه راوباسي چې ته به وایې د لړمانه نه یې راوځي. پېټی یې ټینګ نیولی ته به وایې یوازینی اولاد یې په غېږ کې ورته پروت دی. کلک او مات نوکانو ته یې ګورم بیا مې خپلو نوکانو ته پام کیږي، د سره او بریښنده رنګ نه یې د وینې بوی ځي. وچې او سپېړې شونډې یې وینم، بیا مې خپلو شونډو ته پام کیږي، د ګرېوانه څیرې نه یې هغې ورځې مې سترګو ته دریږي چې ټولې اندېښنې به مې د خیاط دکان کې وې او په هماغومره تلوسه او وسواس چې دا خپلې راتلونکې ته لري ما به خپل کمیس ته فکر کاوه او سپارښتنې ته مې چې د کمیس ګرېوان باید څومره لوڅ وي او لمن یې څومره لنډه.

همدې ټوپیرونو ځورولم چې زګېروي شانته خبرې یې آن غوږو ته مې راغلې، دا ډېر عمر شو چې په ګېډه مې بدخوږ دی، تمامه ورځ همداسې سوزي.

ډاکټر ویلي معده دې ژوبله ده، تاسې خو به خود پوهېږئ پوه خلک یاستئ. ګېډه چې دومره تشه وي خامخا به ژوبله شي، لوري، خدای که مې دا درې شپې مړۍ خولې ته ور وړې وي شونډې یې ښوري او زه دومره پوهېږم چې غوږ ته شوې خبرې یې پس له ډېرې مودې نه پرانیزي خو نه پوهېږم چې څه وایي.

او زه هغه ملک او ناوړې پولې ته فکر کوم چې زه او دا یې بېل کړي او لیري ساتلي یو. دا خواره مریضه ده. شونډې یې له لوږې رپیږي او زه ځم چې ملګرو سره (پارک) کې بولاني وخورم ځکه د کور ډوډۍ یو نواخته سوې ده. زړه یې راته وهلی. خدای ﷻ خبر زما د شونډو غوړ او بریښنا به څومره شونډې وچې کړې وي. زما مړښت به څومره نوري ګېډې ژوبلې کړې وي. دا خواره کرۍ ورځ د یوې مړۍ دپاره لوڅې پښې ګرزي. یوه مړۍ به لاس ته ورشي خو نه یې پښې د اغزو لاندې ښکاري او نه یې لاسونه او زه په رښتیا د زنګنو څراغونو بریښنا او د تیاره ژوند رنګینو رنده کړې یم او د دې د ژوند په مخ یې راته پرده ځرولې.

❁❁❁

د نگران غضبناک آواز د خپلو خیالونو نه ویښه کړم. ژر که پیسې راکه. نه لرم زویه. نگران هماغسې چې خپله په کلو کلو رټل سوی او خوار شمېرل شوی دی بوډۍ ته په حقارت گوري.

ژر کوه پیسې راکه، پیسې دي.

بوډۍ د خپل ټکري د گوښې نه یوه غوټه خلاصوي.

دا ده زویه یوه شانزده پولۍ لرم وایې خله.

د نگران چغه د بوډۍ وچ باڼخوگان لړزوي.

خیرات راکوې، چې نه یې لرې بیا څنگه معتبره ناسته یې، بې تربیې پاڅه چې دا نوري کښیني.

بوډۍ په خلاص تندي ورته گوري. زویه ستړې یم پښو نه مې گوره کړی ورځ مې لار وهلې. د لاسه یې کشوي، پاڅه دا څوکۍ ستا د یوې شانزده پولۍ دپاره نه ده جوړه. بوډۍ د موټر غولي ته لوېږي. پښتې یې د غېږې نه لړي غورځي، اوره موټر کې تر پښو لاندې تیېږي. ولاړ خلکو کې څوک خپله لمن ټکوهي، څوک بوټان پاکوي. او بوډۍ چې ته به وایې د اولاد په مړې باندې ناسته ده ورته کلکه ناسته ده.

شونډې یې هماغسې رپېږي. تندی یې هماغسې خلاص دی. خو زه یې د سترگو د مړاوو کتو شاته یو بهیر وینم د نااهمندۍ . تر شا دهیلو څپې. خدای ﷻ خبر چې دومره اوره یې د څو میاشتو دپاره کړي وو او د څو نورو وچو شونډو ولړه پرې ماتېده او د څومره کړاو او زړه چاودونې څخه لاس ته راغلي وو.

بوډۍ پوهیږي، هو بوډۍ. خبره ده او کلاره ناسته ده. اوره خپل لمن کې ټولوي. خو ډېري داسې بوډۍ به ورټلې شي، ډېري وچې شونډې به هماغسې وچې خاورو لاندې شي.

ډېري گېډې به ژوبلې شي، خلک به له لوږې مړه شي. خو یو شی به هیڅکله له منځه لاړ نه شي.

هو ! د دوی هستونکې قدرت به په ځای ولاړ وي چې د ورانوونکو ورسته بنا ورانه کړي، د بوډۍ د هیلو ځواني څپې به ډېر غورځنگونه مست او د امید سیندونه به یې ډېري شاړې خړوبې کړي.

هو ! موري ! ستا د هیلو بهیر نه تم کېږي. (پښتنې لیکوالې او شاعرانې، لومړی ټوک د کبرامظهري ملورو ـ د ۱۵۲ مخ څخه تر ۱۵۵ پورې. ۱۳٦٦ ل کال د کابل چاپ).

د آغلي شریفه شریف په پورتنۍ کیسه کې د یوې غریبې او فقیرې بوډۍ ژوند او د دې اروایي حالت په ډېر ښه ډول انځور سوی دی او د دې ناپایه او تلپاتې زغم داسې ذکر سوی دی چې له ورایه چا ته د دغې غریبې او زغم او حوصله ورښیي او د نجلۍ او د موټر له نگران له سپکو سپورو او ښکنځلو څخه بیا هم کوچنۍ خپل زغم له لاسه نه ورکوي او په تریو تندي نه ورته گوري. آن د ډیرو ورځو په کړاو سره راټول کړي اوره چې د نگران له لاسه د موټر په غولي کې له خاورو سره خاگاه کیږي بیا هم کوچنۍ په موسکه څېره نگران ته گوري او د (زویه) خطاب ورته کوي. که څه هم په کیسه کې وروستۍ جملې د نصیحت شکل لري او زما خپله په کیسه کې له دغسې اضافي خبرو څخه چندانې ښه نه راځي. مگر بیا هم آغلي شریف د د دوهم پړاو د لومړنیو لیکوالو په کتار کې خپل ځای لري او یادونه یې زما په خیال اړینه ده.

موږ وړاندې هم یادونه وکړه چې په دغو کلونو کې ځینو نورو لیکوالو هم کیسې کښلې دي مگر موږ دغه څو کسان د بولگې په ډول راوړل چې په دغه وختونو کې یې تر نورو ډیرو لیکوالو ښې کیسې کښلې او ځینې یې په دغه ډله کې د معاصري کیسې سرلاري بلل کیږي.

**ب ـ د جهاد او مقاومت لنډې کیسې**

د غوایي اړودوړ او د روسانو مستقیم یرغل که له یوې خوا افغانانو ته ډول ډول بدبختۍ، غمونه، کړاوونه، مرگونه، زخمونه او پردیسۍ راوړلې، نو له بله پلوه یې د افغانانو نړۍ لید پراخ کړ او د افکارو ساحه یې تر پخوا زیاته سوه.

په دغه خونړۍ دوره کې پر نورو اړخونو سربېره ادبیاتو هم نوی رنگ واخیست او تقریباً د شکل له مخې یې له پخوا سره تغیر وکړ. پر دې سربېره چې ادبیاتو یو ډول حماسي رنگ خپل کړ، یو ښکلی او بدرنگه بدلون هم پکښې راغلی. ښکلی یې دا معنا لري چې د ادبیاتو په برخه کې ډېر موضوعات په خورا ابتکاري ډول ور داخل سول او بدرنگ اړخ به یې دا وي چې ځینې داسې آثار په دغه دوره کې تخلیق سول چې ببله شعاره او کلیشې بل څه نه سو ورته ویلای.

د جهاد او مقاومت په ادبیاتو کې تر هر صنف زیات شعر ډېره وده وکړه او په دغه دوره کې هم د شکل له مخې او هم د کمیت له مخې ډېر اشعار وویل سول چې ځینې یې تشې شعاري خبرې وې، مگر ډېر داسې اشعار هم رامنځته

سول چي د جهاد او مقاومت د دورې د شعر په مطالعه کي ډېر څه پر ويل کېداى سي.

د افغان ولس د وسله وال جهاد په څنګ کي ادبي هلي ځلي د قلمي او فرهنګي جهاد د سنګرونو يوه اساسي برخه ده. د جهادي ادبياتو مسير، د افغانستان په معاصرو ادبياتو کي يو نوى، ځلند او پياوړى څپرکى دى. دا هغه څپرکى دى چي له تورو ګولى پکښي جوړېداى سي او له قلم څخه توره او ټوپک.

موږ ويلاى سو چي که د روس يرغل او د دغه پوځي وحشي يرغل په وړاندي د افغانانو مقدس جهاد او مقاومت نه واى، نو له يوې خوا خو به نه په نړۍ کي د کمونيزم وحشت له منځه تللى واى، نه به په ټوله نړۍ کي د افکارو دومره بدلون رامنځته سوى واى. نه به د روسانو په منګولو کي ښکېل ولسونه داسي په بېړه د هغوى له منګولو خلاص سوي واى، نو له بلي خوا به نه زموږ په معاصر شعر کي د تنګ او جنګ په ډګر کي يو داسي نوى څپرکى ځلېدلى واى. (د افغانستان اوسني ادبيات (د سيمينار د مقالو ټولګه) د زرين انځور مقاله، ۱۹۶ _ ۱۹۷ مخونه ۱۳۶۹ ل کال د پېښور چاپ).

ربښتيا هم د جهاد او مقاومت پر مهال پښتو شعر ښه وده وکړه او تر ټولو جالبه يې دا ده چي په پښتو شعر کي ډېر نوي موضوعات ځاى کړه سول چي د معاصر شعر په مطالعه کي دغه دوره بالکل د زياتي څېړني وړ ده او ډېره کاميابه دوره يې بللاى سو. د شعر تر څنګ د ادبياتو د نورو ژانرونو سربېره پښتو لنډي کيسي ته هم څه نا څه کار وسو، مګر نه د شعر په پرتله او نه هغونه چي ښايېدل. په دغه دوره کي د ځينو ليکوالو له لوري ځيني لنډي کيسې وکښل سوې، مګر په دغه لړ کي د څو ګوتو په شمار ليکوالو کيسې په يادونه ارزي چي هنري او داستاني ځانګړني لري، مګر ډېري داسي کيسې هم سته چي ښه شعاره بل څه نه سو ورته ويلاى.

ښاغلى آصف صميم په دې باب کاږي

له موضوعي پلوه خو زموږ د جهادي کيسه ييز ادب بنسټ تقريباً سره شريک دى او شريک هم په کار ده چي وي. ځکه سرې بلا چي زموږ پر ټولني کوم ناورين راوستى، د هغې ټولنيز او سياسي اثرات سره يو شان دي.نو ځکه زموږ د کيسه ګيو پلاټونه (plots) يا خاکې هم د هجرت د ستونزو د شهيد د مور، د شهيد د کونډې، د شهيد د يتيمانو، د مجاهد د قهرمانۍ، ننګ مېړاني، د دښمن رسوا ماتې او د غمونو د زغم پر چورليز چورلي، مګر د هجرت، جهاد، شهاد او په سوونو بې وسي او تش لاسي، پراخه او پرېمانه خاکو او پلاټونو بيا هم زموږ ليکوال د کومي شهکار کيسه ييزي مجموعې په رامنځته کولو کي بريالي نه کړاى سو او که وي هم، د ګوتو په شمېر به وي. يعني زموږ په ليکوالو کي ډېرو لږو له معياري پلوه د کيسه ګۍ د حق ادا کولو وسه لرلې ده.

ځيني نور يې بيا ليکوالي او هغه هم د کيسې ليکوالي، خپلو خاصو سياسي او رسمي مواقفو او مناصبو پوري تړلې ګڼي، همدا وجه ده چي پر دې احساس ولاړه ليکوالي (؟) له کيفي پلوه ښايي ډېر عمر ونه کړي. (ياد سوى اثر، ۳۰۴ _ ۳۰۵ مخونه د آصف صميم مقاله).

موږ ښايي تر ډېره ځايه د ښاغلي صميم صاحب خبره ورسره ومنو، که څه هم نوکى ترخه به هم راباندي تمامه سي. مګر لکه ښاغلي صميم صاحب چي اشاره ورته کړې وه په ربښتيا هم د دغي دورې داسي موضوعات ول چي نورو خلکو ښايي يوازي د خپلي موضوع لپاره دغه خونړۍ دوران له خدايه په زاريو غوښتي، مګر څنګه چي ښايېدل، په مجموعي ډول داسي شهکارونه نه سول رامنځته، څونه چي توقع کېدله.

د مقاومت په کيسو کي ځيني د لنډو کيسو ټولګي هم چاپ سوې چي د يو څو نومونه په دې ډول دي:

- ځاله او توپان (۱۹۸۰ ع)، جونګړه او مانۍ (۱۹۹۱ ع) د محمدنسيم شفيق ستانيزي.
- داسي هم وو (۱۹۸۵ ع)، سره غالۍ (۱۹۸۹ ع) د محمدصديق پسرلي.
- په وينو سور کميس، د عابد يوه ليکلې کيسه ده چي د ۱۳۵۸ کال په حوت کي چاپ سوې ده، خو د ښاغلي صميم صاحب په وينا چي رفيع صاحب ورته يوه کيسه ډوله مقاله وايي (وګورئ د افغانستان اوسني ادبيات، د سيمينار د مقالو ټولګه د ښاغلي آصف صميم مقاله، ۳۰۳ مخ).
- تيارې لارې رڼې کړښې (۱۹۸۸ ع)، دا ورځې دا يادونه (۱۹۹۰ ع) د شهرت ننګيال.
- سبا به بيا کډې بارېږي، د عصمت قانع.
- د سره سنګر قصې (۱۹۸۸ ع) د محمدابراهيم تکړ ځاځي.
- تلپاتي يادونه (۱۹۸۹ ع) د محمداکبر اکبر.
- ترورمۍ (۱۹۹۰ع) د زرين انځور.

- د سبا غازي ( ۱۹۹۰ع) د ولي محمد ولي.
- د ارمانونو ځولۍ (۱۹۹۰ع) د عوض الدين صديقي.
- د تيارو په تل کې (۱۹۹۱ع) د محمدزبير شفيقي.
- وروستۍ سلګۍ (۱۹۹۱ع) د اورنګزيب ارشاد.
- ساړه بادونه (۱۳۷۱ ل) د اسدالله غضنفر.

دغه راز په دغو وختونو کې د ښاغلي اېمل پسرلي "ځلورمه لار" نومې د کيسو مجموعه هم چاپ سوې ده.

همداډول په دغه دوره کې د يادو سوو ليکوالو پر ټولګو کې سربېره آغلې صفيه صديقي، نجيبه وردګ، پيرمحمدکاروان، محمد روحاني رويا وردګ، استاد سعدالدين شپون، محمداکبر بري، حبيب الله رفيع او ځيني نور هم د يادوني وړ ليکوال دي چې خپل ملي مسووليت يې تر سره کړی دی او په خپلو کيسو يې د مقاومت او جهاد په دوره کې پر پښتو ادبياتو يوه ښه اضافه کړې ده.

زه خپله نه کيسه ليکوال يم او نه دا صلاحيت لرم چې په لاس کې تله واخلم او د دغي دورې کيسې پکښې وتلم او ښه او بدې يې څني راوباسم، مګر بيا هم د ذوق له مخې دونه ويلای سم چې په دغه دوره کې هم د کميت له مخې او هم د کيفيت له مخې ښاغلي زرين انځور او اسدالله غضنفر او بيا څه وخت وروسته ښاغلي عصمت قانع داسې کيسې کښلي دي چې ډېر بحث پر کېدای سي او په اصطلاح که ښاغلی صميم صاحب د دغې دورې په کيسه ييز شهکار پسې ګرځي، نو د دغو درو کسانو کيسې ښايي د دغې دورې شهکار وګڼل سي.

البته په دغه دوره کې ښاغلی استاد محمدصديق پسرلی هغه ليکوال دی چې ډېري کيسې يې کښلي او د (سپېدې) کيسه ييزه برخه يې ډېر کلونه رنګينه ساتلې وه. همدا ډول ښاغلی اکبر بری هم په دغه دوره کې ځيني کيسې کښلي دي چې هغه بيا ډېر کلونه وروسته خپرې سوي او که څوک غواړي چې د دغې دورې پر کيسو وړغيږي نو فکر کوم چې د ښاغلي بري يادونه به خامخا کوي.

دلته به زه د بېلګې په ډول د ځينو ليکوالو د کيسو نمونې راوړم چې په دغه دوران کې يې کيسې کښلي دي (البته د هغو ليکوالو تر بولګو تېرېږم چې وړاندې مو يې يادونه کړې ده، لکه ښاغلی انځور او ښاغلی بری).

**محمدصديق پسرلی:**

که څه هم لازمه وه چې د استاد پسرلي يادونه مو د لنډې کيسې په لومړۍ مرحله کې کړې وای، ځکه چې د وخت په لحاظ ښاغلی پسرلی له ډېر پخوا څخه په کيسه ليکنه پيل کړی دی او ځيني کيسې يې په ځلويښتمو لمريزو کلونو کې کښلي دي، مګر د جهاد او مقاومت په دوره کې ښاغلي پسرلي په زيات شمېر لنډې کيسې کښلي دي او په دغه دوره کې پوره بحث پر کېدای سي.

د مقاومت په دوره کې د ښاغلي استاد پسرلي پر دوو ټولګو سربېره ډېري کيسې په متفرق ډول په خپرونو کې نشر سوي دي، په تېره بيا په (سپېدې) نومې مجله کې يې په زيات شمېر لنډې کيسې خپرې سوې.

ښاغلي استاد پسرلي په خپلو کيسو کې په هيواد کې او له هيواده دباندې د خپلو هيوادوالو ستونزو او کړاوونو ته ډېر ښه انعکاس ورکړی دی او هغه بدبختۍ، غمونه او مشکلات چې پر افغان ولس تېر سوي او يا تېرېدل. هغه يې په کيسه ييز ډول ډېر ښه انځور کړي دي.

د ښاغلي استاد پسرلي (سره غالۍ) نومې کيسه په هيواد کې د روسانو او د دوی د ملګرو د ظلمونو او تېريو ښه انځورګري کوي.

**سره غالۍ**

"آيينه قز" چې بيا خپله ډوډۍ تناره ته ووهله، د اور له تاوه يې مخ واړاوه او په ګوته يې د تندي خولې وڅنډلې. "يخشي ګل" ترور ته يې وويل:

ترورې! ته دې خپلې ډوډۍ جوړوه، تنور لا ښه سور دی او زما کار تمامېږي چې دا ځل ډوډۍ راباسم ستا ډوډۍ به ورته ووهم.

يخشي ګل چې د تناره خوا ته ناسته وه ورته وې ويل
په ځواني دي برکت شه زويه! دا دی پلنې به يې کړم.

د اوزبکو د دستور له مخې ځلورو پنځو کورونو په ګډه د کلي په منځ کښې ولاړ تنور وهلی و، په ګډه به يې تودواوه او په وار سره به يې ډوډۍ ورته وهله.

ولاړ تناره ته ډوډۍ په ولاړه وهلې کېږي، آيينه قز ځوارلس کلنه پنځلس کلنه پېغله وه. هغومره چې خدای پاک له ښې ونې او ښو اندامونو سره ښه کړه وړه ورکړي وو هغومره هم تکړه، زړه سواندې او رينې نجلۍ وه، په خوی خصلت د درستو کليوالو تر پام ښه وه، د ډېرو ډوډۍ به دې تناره ته وهلې، له کاره يې خوند اخيسته، خصوصاً د زړو او کمزوريو ښځو لاس به ورباندي سپک و.

اوزبکي دوډۍ، ښې خمیره او ډبلې دوډۍ وي، د پاستو غوندي په ملټ کښې نه پخیږي، چي بیا آیینه قز د یخشي ګل دوډۍ تناره تـه ووهلې او پـه مـخ یـې د خپـل ګلـدار سندوف اوږد لستوني راتېر کړ، یخشي ګل ورته وویل :

زویه غالی دي کوم ځای ته ورسوله؟

دې وویل : غالی نوره تمامه ده، صرف څلور ګوتې قدر پاته ده چي که خدای ﷻ کول په درو څلورو ورځو کښې به ترې خلاصه شم.

یخشي ګل وویل :

زه دا ډیرې ورځې نـه یـم وزګـاره سـوې چي کـار دي وګورم، ښه دی اوس نو د کوتل سر ته ختلې یې، غوایی دي نور پوست کړی دی، صرف لکۍ یې پاته ده.

آیینه قز وویل :

د مور ناروغي او د کور کار فرصت نه راکوي، که نـه لـه وخته به خلاصه وه.

یخشي ګل وخندل او ویې ویل :

د کور کار یوې خواته، د مور خدمت دي بلې خوا تـه د زړه کار ته نه پرېږدي، ځکه ما داسي فکر کاوه چي اوس بـه دي لا تـر نیمـایي نـه وي اړولې، خـو خـدای ﷻ دي لـه بـدو سترګو ساته.

آیینـه قـز د تنـاره اور ولړلـو او دوډیـو تـه یـې څـه اوبـه وشیندلې، ویې ویل :

پیل پایه او پتنوس ګلې غالی مي اوبدلي وې، خو دا ځل مې هـوس کـړی ؤ چي چنارګلې غالی واوبم، تـه هـم را ناروغه سوې، نه پوهېږم چي څرنګه به راغلي وي.

یخشي ګل وویل :

د لنـدو ختـو لـږ اوبـه دارو دي، د ژړښت دې کـور وران سي سري په پلچه پروت وي، په مورې هم اوس وخت تېر شوی دی، لـه تـوخې سره مـو سـاه وځي، ډېر مي زړه غوښتـل چي درشم خو څه به درته وایم !

آیینه قز وویل :

ما هم ښېره وکړه، باید ستا مشوره مي اخیستې وی.

هغې وویل :

تاته خدای ﷻ په لږ عمر ډېر ښه فکر در کړی دی، بـاور لرم چي اوس هم تر مورې ستا پوهه ښه ور رسیږي، خو دومره درته وایم چي د غالی اوبدل تمام شي، پرې کـول او بیـاتي کول یې پخپلې مور مه کوه، د هغې لاس ښـه نـه دی، هسـې سرزورې ښځه ده، هسـي نـه چي خوارۍ دي ابتـه کړي، زه بـه درشم.

(د ښاغلي پسرلي په کیسه کي آیینه قز او یخشي ګل خپلـو خبـرو تـه پـه همداسـي ډول ادامـه ورکـوي او پـه دغـه کیسـه کي د دوی دوو تـر منځ مکالمـه پـه ډېر ښـه ډول راوړل سوې ده. تر ځینو نـورو خبـرو وروسـته د کیسـې اصلي برخـه پـه دې ډول راوړل کیږي ) :

آیینه قز بیا سر تناره تـه ور ټیټ کړ، دوډۍ ورتـه پخې ښکاره شوې، راویې ایستلې خوله یې وخندله، په داسي حال کښـې چي دواړو خپلـې دوډۍ پخپلـو ورینـو زوویـو کښـې نغښتې، آیینه قز یوه خوا بلـه خـوا وکتـل، غـوږ یـې ونیـوه او پـه وارخطایی یې وویل :

ترورې د ټپنکونو ژغ نه ده؟

یخشي ګل وویل :

په ټپنکونو یې اور پوري شه، زه خو یې نه اورم، څه مې به رانه غواړې؟

آیینه قز وویل :

ماته خو داسي معلومیږي.

یخشـي ګـل چي شاوخوا وکتـل د کلي نـوري ښځـي او ماشومان یې متوجه ولیدل، یوه ښځـه پـر بـام ولاړه وه، هغـه یې وپوښتله، هغې هم ورته وویل :

د ټپنکونو ژغ مخ په زیاتېدو دی او وار په وار را نژدې کیږي.

دا اوومـه میاشت وه چي روسي قـوه پـر دې خوا نـه وه راغلې، وضعه عادي وه او مجاهدین هم لرې تللي وو، ځکه چي د یرغل مخه بدله شوې وه. په کلي کي یـا واړه پاتـه وو یا زاړه، د کلي تلاشي او لوټل آسان کـار و، هوښیـارو ښځـو ګېڼې لا پخوا ښخې کړې وې، خو پاتـه مال او تر هغـه هم مهمه د ناموس مسئله وه چي نـه یـې پټـول ممکـن وو نـه یې ساتل.

د ټپنکونو ژغ په ښېړه رانژدې کېده او واهمـه پـه درست کلي لکه توره باراني وریځ را خورېدله. یخشي ګـل او آیینـه قز د دوډیو پنډې کورونو تـه ورسولې. د تناره تـاو ښځایـه خوت او خوله یې تـا بـه ویـل چي لـه ډیري وېرې وازه پاتـه شوې وه. د ټپنکونو ژغ تر کلي راوګرځېد. کانه هم پـه دې پوه شول چي کلی محاصره شو. ماشومانو د مېندو لمنې نیولې وې او مېندو ستانه ور تنګول. څه شیبه دزې شـوې او سرې مرمی پـه هـوا کښـې سره تېرېدې، لنډ وریسـې سره پوځیـان پـه کلي کښـې پلې شـول، بوډاګـان ور ووتـل چي ګوندي د لښکر مخه له بې دفـاع کلي څخه واړوي، خو چي یوه دوه یې په کنداغونو ووهل او پـرمخ ولوېدل، نور ځای

پر ځای شنه شهید ودرېدل، تلاشي شروع سوه، کورونه یې لټ پر لټ واړول، سندوخونه مات شول او بوخڅې وتوښېل شوې. د برچو په څوکه د خونو تل او د دېوالونو ډډې سورې شوې خو نه یې وسله وموندله، نه یې مجاهد ولید، په لوټ تالان یې لاس پورې کړ چې د وایي څه په لاس ورتلل د پلار مال یې و ... تر پایه" (سره غالۍ، د محمدصدیق پسرلي د لنډو کیسو ټولګه د ۴۶ مخ څخه تر ۵۳ مخ پورې، ۱۳۶۸ ل کال د پېښور چاپ).

په دغه کیسه کې د روسانو وحشت او حیوانیت په ښه انداز کې بیان سوی دی چې څنګه یې له عامو افغانانو سره وضعه درلوده او په کورونو کې یې د تلاښۍ پر وخت څه کول، په دې کیسه کې د هغو بېوزلو ښځو او سپین ږیرو حالت ډېر ښه انځور سوی دی چې د روسانو په وړاندې یې څنګه حالت درلودی او څه یې کول.

ښاغلی محمدصدیق پسرلی په حقه سره د جهاد او مقاومت د ادبیاتو یو سرلاری ګڼل کیږي او دغه درونډ مسوولیت یې هم د شعر له پلوه او هم د کیسې له اړخه تر سره کړی دی.

"سره غالۍ" او "داسې هم وو" د لنډو کیسو او طنزونو ټولګي یې د جهاد د دورې د ادبیاتو ښه استازیتوب کولای سي.

د ښاغلي پسرلي کیسې د افغانستان د جهادي ادب د یوې ارزښتناکي داستاني پانګې په توګه نه یوازې دا چې په اوسنیو حساسو شېبو کې زیاتې ضروري دي، بلکې د سبا نسلونو ته به هم د جهاد د بېلابېلو برخو، حالاتو او سربښندونو ډېرې رښتینې داستاني نمونې ور ورسوي.

په دغو کیسو کې په اوسنیو حساسو تاریخي حالاتو کې د جهاد د تاریخي کارنامو او د پردیو یرغلګرو او د هغو د لاسپوڅو د ناکوبو د هنري داستاني ثبت تر څنګ د افغانستان د خلکو د رواني او اجتماعي اړخونو انعکاس هم په پراخه توګه را تر سترګو کیږي. (سره غالۍ، د محمدصدیق پسرلي د لنډو کیسو ټولګه، د آزاد افغانستان د لیکوالو ټولني (وفا) یادښت، ۲ مخ، ۱۳۶۸ ل کال د پېښور چاپ).

رښتیا هم د ښاغلي پسرلي صاحب د هغه وخت کیسې یو ډول ثبت او ریکارډ بلل کیږي چې د نن او سبا لوستونکي ته د روسانو د یرغل، د داخلي کمونستانو ظلم، د خوارو افغانانو دربدرۍ او رنځونه په ښه ډول مخې ته ږدي او له هغه وخته یې په هنري ډول اشنا کوي.

**اسدالله غضنفر:**

ښاغلی اسدالله غضنفر د پښتو لنډې کیسې په هسک کې هغه ځلېدونکی ستوری دی، چې ډېر نور ستوري یې تر خپل شپول لاندې راوستلي دي، یعني په پښتو لنډه کیسه کې ډېر کسان د دوی پیروي کوي او د دوی د پراخې مطالعې، تجربو او مشاهدو له وجې ځینو پوهانو دی د پښتو لنډې کیسې متخصص بللی دی.

ښاغلی غضنفر د اوسنۍ لنډې کیسې د ګوتو په شمار لیکوالو کې د سر په کتار کې راځي او د دوی ځینې لنډې کیسې هغه ځای لري چې تر اوسه بلې کیسې هغه ځای نه دی اشغال کړی.

ښاغلی غضنفر په نړیواله کیسه لیکنه کې زیاته مطالعه لري او د دوی ځینې کیسې د دې جوګه دي چې له نورو ژبو سره د سیالۍ لپاره وړاندې سي.

د جهاد او مقاومت د ادبیاتو پر مهال ښاغلي غضنفر داسې لنډې کیسې کښلې چې په دغه دوره کې تر هر چا ډېر حساب پر کېدای سي.

ښاغلی انځور د دوی په باب کاږي:

د ځوان پیاوړي کیسه لیکونکي اسدالله غضنفر په قلم د مقاومت په ساحه کې تر ټولو په زیات شمیر (او زما په نظر د مقاومت په بهیر کې تر ټولو لوړې او ښکلې) لنډې کیسې لیکل شویدي (سپېدې مجله، د دریم کال دوهمه ګڼه ۱۳۷۱ ل کال، د زرین انځور مقاله، ۱۸۳ مخ).

د ښاغلي غضنفر د مقاومت د کلونو د لنډو کیسو ښه بېلګه د دوی (ساړه بادونه) نومې مجموعه ده چې ښایي د دغې دورې په مطالعه کې پر دغو کیسو څېړکې ـ څېړکې لیکنې او رسالې وکښل سي.

د ښاغلي غضنفر (نهه بجې) نومې لنډه کیسه د دغې برخې د کیسو ښه استازیتوب کولای سي او په دغه ساحه کې ډېره لوړه او ښکلې هنري کیسه بلل کیږي.

**نهه بجې**

زه د ده له نیولو مانښام خبر سولم، تمامه شپه مې په اندېښنه کې تېره کړه او سحر د وخته د اولسوالۍ مرکز ته ورغلم. د روسانو لیدل ډېره ګرانه خبره ده نو ځکه د شناخته ازبکستاني د لیدلو په تمه د پوستې مخې ته د ویالې په غاړه کېناستم.

لس ـ لس نیمې بجې به وې چې په نظر راغی ژر ور ولاړ شوم او په حال مې خبر کړ هغه پوستې ته دننه کړم او یوه روسي منصبدار ته یې وروستم.

ده منصبدار ته زما شکایت واوراوه خو هغه صرف سر وخوځاوه، څو شېبې وروسته ازبکستاني ووت او دوه روسي عسکر راغلل، عسکرو تر مرونډ ونیولم، یوې کوټې ته یې ننویستم او ور یې راپسې پوري کړ. تمامه ورځ په کوټه کښې یوازې پروت وم. لوږه تنده مې نه محسوسوله خو یخني ډېره زیاته وه.

د شپې په نهه بجې یې له کوټې رابهرکړم او په یوه توره خونه کښې یې د هغه منصبدار مخې ته ودرولم چې سحر مې لیدلی و. منصبدار د ترجمان په مرسته له ما پوښتني شروع کړې، د هغه پوښتني عجیبه غوندې وې، راته ویل یې چې د کوم ځای یې؟ لوست لیک کولی شې کنه؟ څو کلن یې؟ څه شي دي ډېر خوښیږي؟ له څه دي بد راځي؟ څومره جایداد لرې؟ پس له مرګه به څه کیږي؟ او له مرګه ولې وېرېږې؟ د پلار څووم اولاد یې؟ څه کار کوې؟ ولې بې معلمی بل کار نه کوې؟ د کوم مضمون او کوم صنف معلم یې؟! ...

ما د هغه ټولو پوښتنو ته ځوابونه ورکړل. بیا یې راته اشاره وکړه چې پر کرسۍ کښېنه. زه په کرسۍ کېناستم. څو لحظې وروسته دوو تنو عسکرو زما ورور راووست. ورور مې ډېر وارخطا معلومېده چې په ما یې سترګې ولګېدې ژړا ورغله.

منصبدار په قهر شو، مېز یې په سوک وواهه او په روسي ژبه یې څه وویل. ترجمان مې ورور ته وویل چې مه ژاړه، نن شپه څه درته نه وایي، صرف څو پوښتني کوي. دوی له بېرې هم داسې پوښتني وکړې لکه چې له ما یې کړې وې. په آخر کښې یې ورته وویل:

ښه اوس نو هغه هلک راوښیه چې پرون ماښام یې کله شینکوف وتښتاوه او ستا د دوکان مخې ته تېر شو؟ ورور مې ژړغونی شو او ځواب یې ورکړ چې نه یې پېژنم.

دوی ما ته مخ راواړاوه راته یې وویل:

ورور دې هغه هلک چې تېر ماښام یې ټوپک وتښتاوه لیدلی دی مګر نه یې راښیي، نن شپه تر سهار نهو بجو پوري وخت لرئ، ته باید ورور قانع کړې چې سړی راوښیي، کنه، ستاسو دواړو د اعدام حکم صادر شو! په نهو بجو باید اعدام شئ!

زه او هغه یې دا ځل یو ځای کړو. ځولنې یې راواچولې، کوټه نمناکه او ډېره سړه وه. د وېرې او یخنۍ په وجه زما ټول بدن پورېدو او د غاښونو کړچا مې دومره ډېره وه چې عسکر راغی د لاس په ځراغ یې کوټه روښنه کړه،

او چې کله مطمئن شو نو پوزخند یې وواهه او بېرته ووت.

ورور ته مې وویل چې په څه یې نیولی یې او څوک درنه غواړي؟ هغه سلګۍ وهلې او یوه ـ یوه خبره یې تر خولې وتله

پرون مې د مازدیګر او ماښام تر منځ یو سړی ولید چې ټوپک ورسره دی او منډې وهي. ما پدې وخت کښې د دوکان ور پورې کاوه خو د پوستې له خوا ډېرې ډزې کېدلې او څو دقیقې د دوکان مخې ته ودرېدم. زه لا ولاړ وم چې روسان راغلل، زه یې ونیولم او پوستې ته یې راوستلم، تېره شپه یې ډېر ووهلم چې سړی راوښیه خو ما څوک ور ښوولی وای؟ ... تر پایه" (ساړه بادونه د اسدالله غضنفر د لنډو کیسو ټولګه، د ۲۲ مخ څخه تر ۲۵ مخ پوري، د ۱۳۷۱ ل کال د پېښور چاپ).

په دغه کیسه کې د روسانو بې منطقي او راز راز ظلمونه بیان سوي دي چې څنګه یې له مظلومو افغانانو سره تېرې کول او څه ډول ناروا وې یې ورسره کولې.

د دوی پر (ساړه بادونه) مجموعې په سریزه کې کښل سوي دي چې دغه کیسې د کمونستانو او د روس د ښکېلاک په وړاندې د افغانستان د مقاوم ملت د مبارزو او جګړو، د دغو مبارزو په تودو شېبو کښې د رالویو شویو نسلونو او کرکټرونو، د هجرت د چاپېریال د ښېلایېلو اړخونو او دا ډول د ځینو نورو پېښو په اړه موضوعات په داستاني ځولۍ کې رانغاړل شوي دي. په دغو کیسو کښې د جهادي کرکټرونو رواني اړخونو ته دقیقه پاملرنه شوې ده او دا هغه هڅې دي چې زموږ د مقاومت په ادبیاتو کښې یا هیڅ پاملرنه نه ورته کیږي او یا ډېر لږ په پام کې ساتل کیږي.

دغه راز په سریزه کې ویل سوي چې (اسدالله غضنفر د افغانستان د جهاد او مقاومت د ادبیاتو یوه اشنا څېره ده. سره له دې چې د افغانستان د مقاومت په ادبیاتو کې د شعر په پرتله د داستاني ادبیاتو اړخ د کمیت له پلوه کمزوری و، خو په هغو کسانو کې چې زموږ د مقاومت د ادب دداستاني اړخ د غنا له پاره یې بنسټیزې هلې ځلې کړې دي په دغو کسانو کې د اسدالله غضنفر نوم په لومړنیو کسانو کې راځي (یاد سوی اثر، سریزه، ۴ ـ ۵ مخونه).

سربېره پر دې چې ښاغلی غضنفر د مقاومت د لنډو کیسو یو مخکښ او سرغنه لیکوال پاته سوی دی تر هغه را

وروسته یې په اوسنیو وختو کې پښتو لنډي کیسې ته یو داسې نه هېرېدونکې خدمت کړی دی چې د تل لپاره به یې یادونه کیږي چې هغه د (داستانونه) په نوم د لنډو کیسو دوه میاشتنۍ مجله ده چې له دغې لارې یې ډېر لیکوال د لنډي کیسې لیکلو ته هڅولي دي او د دغې مجلې له لارې یې ډیرو کسانو ته په اصولي ډول د لنډي کیسې لیکل ور زده کړي دي او پښتانه لوستونکي یې له لنډي کیسې سره اشنا کړي دي. دا په پښتو کې یو ډېر ابتکاري ګام و چې ښاغلي غضنفر په ډېر معقول ډول پورته کړ او ددغه درانه کار تر هوده په ښه بریالي ډول ووتی.

زما په ګومان پښتانه به د لنډي کیسې په یو دغسې بریالي لیکوال ناز کوي او په فخر به وایي چې موږ په پښتو کې دغسې تکړه کیسه لیکوال لرو.

**عصمت قانع**

که څه هم د جهاد او مقاومت پر مهال د ښاغلي عصمت قانع ډیرې کیسې نه دي خپرې سوي مګر د کیفیت په لحاظ ښاغلي قانع داسې کیسې کښلي دي چې د لنډو کیسو په لومړني کتار کې راځي.

ښاغلی قانع نه یوازې دا چې د مقاومت د مهال ښه لیکوال بلل کیږي بلکې په اوسني پړاو کې د پښتو له ګوتو په شمار لیکوالو د سر په کتار کې دریږي او د کیسه لیکنې په برخه کې خدای ﷻ یو بېل استعداد ورکړی. زما په خیال پر خوارو پښتنو خدای ﷻ ډېر مهربانه دی چې د قانع غوندې تکړه کیسه لیکوال یې ور په برخه کړی دی.

ښاغلی قانع په خپلو کیسو کې هغه ناویلې خبرې کاندي چې په ویلو یې د نورو ډیرو کسانو خوله سوځي او له ویرې یې آن یادونه لا هم نه سي کولای، مګر ښاغلی قانع په ډېر جرئت دا څنځیرونه ماتوي او د یوه ښکلي یاغي په توګه دغه خبرې په داسې زړه ورتیا کوي چې د وهم خیال یې کورټ په سر کې نه ورګرځي.

ښاغلی قانع د لنډي کیسې د اوسني پړاو له هغو څو کیسه لیکوالو له جملې څخه په لومړي صف کې راځي چې هم د لنډي کیسې د قواعدو او اصولو له مخې او هم د موضوع له مخې په تول پوره کیسې کاږي.

د ښاغلي قانع کیسې نهایت ډېر لوستونکي لري او همدغه وجه ده چې د دوی (ځیر راواستوئ خیر یوسئ) نومې مجموعه تر چاپ لږ وخت وروسته کورټ ورکه سوه او ډېر ژر د دوهم چاپ اړتیا ورته پیدا سوه.

د ښاغلي قانع (ورکې لارې) نومې کیسه د وران وطن د هغو کنډوالو او بدبختیو یادونه کوي چې د پردیو یرغلګرو له لاسه پر دغه غریب هیواد راغلي دي:

**ورکې لارې**

کم اصل سړی به خپل جومات او هدیره هېروي، مسافري عیب نه ده خو د نورو خویونه او رنګونه راخپلول د سیال سړي کار نه دی.

ما به د جومات په مخ کې همېشه همداسې خبرې اورېدلې. دا خبرې به زموږ د کلي سپین ږیرو کولې. زموږ د کلي د جومات لاره نېغه د هدیرې خوا ته تللې وه. د نورو کلو خلکو به زموږ کلي له همدې امله ستایلو چې جومات او هدیره ښه پالي د جومات او هدیرې قدر کوي.

زموږ د کلي هدیره ډېره پخوانۍ هدیره وه، د انګریزانو د وخت ډېر شهیدان په کښې ښخ شوي وو. خلکو به د تبو، مرضونو او آفتونو لپاره خوردې ترې وړې او ما بیا له ډیرې مودې وروسته خپله هدیره ولیدله.

کله چې زما د ادې ژامې وریږدېدلې نو په څګېروي کې یې وویل:

بچیه ما خپلې هدیرې ته ورسوه. د ادې وصیت زموږ د لېمو پر آسمان باندې غورېدلې وریځې را واورولې خو د ادې د لېمو وریځې د ورکو لارو د ورکو منزلو په لوري وخوځېدې او کله چې ادې د ژوندانه ټول غمونه ټول دردونه او ټول کړاوونه د تل لپاره شاته پرېښودل.

دا څو کاله کیږي چې د سترګو اوربنت په موږ کې یوه عادي خبره ګرځېدلې ده او زموږ په ټولو خلکو، ټولو لویانو، کمکیانو، ځلمو او پېغلو کې د لېمو له چینو څخه تروې او مالګینې اوبه راځاځي، د ګرېوان پر لاره د نامعلوم سرنوشت پر لوري درومي.

خدازده دا رانه څاڅکي به د زمان څومره ځولی له ځان سره نغاړي، تر څو به څاڅي او د څڅوبې انتها به یې تر کومه منزله رسي؟

موږ چې جنازه خاورو ته وسپارله نو خلکو زموږ د غم لپاره همدا تعزیتي کلمات ادا کول:

خدای دې پر ورحمیږي، د بخت ښځه وه، خپله هدیره د خپل پلار و نیکه هدیره یې په نصیب شوه. ګوره چې موږ به څه شو، ګور او کفن به پیدا کړو کنه؟ د بختور سړي به خپل وطن وي او خپل به یې ګور وي. کور به یې هم په خپل وطن کې وي او ګور به یې هم په خپل وطن کې وي.

د آخرت په ورځ به په خپل وطن کي را پورته کېږي.

څومره بختوره ښځه وه په ځنکندن کي يې هم خپله خاوره او خپله هديره په ياد وه دا د اصيلو خلکو کار دی.

او بيا دوه درې کاله نور تېر شول. موږ د خپلي خاورې او خپل اختيار د حاصلولو لپاره له خپلي خاورې شړل شوي وو او زموږ پر لېمو باندي باراني وريځو د خپل گور او خپل کور په بېلتون کي بارانونه اورول خو زموږ په کور او کلي کي هم د اولس سترگي نه وې وچي شوې. خلکو به ويلو چي دا خاوره د وليانو ده خدای به يې وساتي.

خو د ساتلو لپاره يې ککرۍ په گوليو ويشتل کېدلې. هديرې په بمونو او حجرې په توپونو او بيا چي ما يو بل ځوانيمرگ خپلي هديرې ته ورساوه نو هديره په بېرو بېرو بوټو ځوځانو او گونگانو پوښل شوې وه.

نوي قبرونه او نوي مزارونه ډېر شوي وو. پر شناختو باندي سپين سره او ډول ډول زړوکي ځوړند وو.

د نويو قبرونو سرونو ته پر ډبرو باندي داسي کلمې ليکل شوې وې:

انارگل د چارگل زوی، عمر ۲۵ کاله د روسانو په گولۍ شهيد شو.

زيرک د جومک زوی، عمر ۲۰ کاله، له دښمن سره په يوه نښته کي شهيد شو.

شمال خان د گل جان زوی، عمر ۳۰ کاله د دښمن په گوليو وويشتل شو.

ميرويس د ملک زمري زوی عمر ۲۷ کاله په ۱۲ ـ ۲ ـ ۱۳۶۰ تاريخ له روسانو سره په يوه نښته کي شهيد شو.

زموږ د کلي هديره ډېره غټه شوې وه خو د کلي حجرې او جوماتونه خالي خالي برېښېدل. کلی کنډوالې شوی و خو هديره ښه اباده شوې وه. ما د خپل کلي په اباده او ودانه هديره کي د ډيرو قبرونو لوحې ولوستلې.

ځما ډېر همزولي د ژوندانه له جادې څخه د مرگي په ابدي لاره تللي وو.

ماته شاړې کوڅې او وداني هديرې رامخ ته کېدلې او زه د ماضي په ورکو لارو کي ورک شوی وم.

زموږ د کلي د کږو کوڅو غرمې به څومره له شوره ډکې وې، کله چي به شپنو رمې په کوڅو راسر کړې د ورويء سېرلانو او مېږو رمبهار د غرغڅو غرنجهار او د شپنو د های و هوی چيغې په همدغو غرمو کې د کلي تر يخو سيورو لاندي زموږ لوبې د لوگرو د لړونو تېره کېدل د پټکونو ډکېدل او له گودرونو د اوبو چلېدل. ما چي به سوچ کولو په ننني معاصر فلمي جهان کي داسي يوه فلمي صحنه هم نه وه. خو اوس هر څه او هر څه د عدم او نېستۍ په لوري روان وو. د تورو تنورونو خولې پټې وې، د کلي په کوڅو کي د رمو او شپنو اثار ورک شوي وو. کښتونه تور دښتونه وو. د ژوندانه ټولې نښې د ورکو لارو په ورکو منزلو کې پټې شوې وې.

زه يو ځل بيا د هديرې خواته ولاړم. له ملنگ نه مې لاره وپوښتله. هغه ډېر ليرې ځای راوښود. راته ويې ويل چي پر هماغه لاره به سرک ته وخېژې او بيا دوه درې کاله تېر شول او زه د يو بل ځوانيمرگ له جنازې سره د کلي هديرې ته راغلم. هديره دا ځل په يوه ښار ناپرسان بدله شوې وه.

پيل او پای يې نه معلومېده. د کلي کومه لويه لاره چي د هديرې خواته تللې وه هغه په قبرونو ډکه شوې وه ...

تر پايه (ځيره راواستوئ خير يوسئ. د عصمت قانع د لنډو کيسو ټولگه. د ۱۱۱ مخ څخه تر ۱۱۵ مخ پوري. ۱۳۷۷ ل کال د پېښور چاپ).

که څه هم نوموړې کيسه په دې لنډو وروستيو کلونو کي کښل سوې ده مگر د جهاد او مقاومت د کلونو په ادبياتو کي يې شمېرلای سو او د هغه وخت يوه ښه انځورگري يې بللای سو.

د ښاغلي قانع د کيسو يوه بله ځانگړنه دا ده چي د دوی په تقريباً هره کيسه کي د طنز مالگه گډه سوې ده او دغې ځانگړني يې د کيسو خوند ور دوه برابره کړی دی.

د ښاغلي قانع د کيسو بل خصوصيت دا دی چي ډېر کليوال مسائل يې په ډېر ښه کيسه ييز انداز کي په کيسه کي انځور کړي دي او څوک له ورايه د پښتنو پر خړو او سپېرو کلو او د دې کلو پر سپېرو خلکو گرځوي.

**يادونه**

د جهاد او مقاومت د کلونو کيسې خورا ډيرې دي او موږ دغه څو ښاغلي د نمونې په توگه ياد کړل چي پر دغه مهال يې تر ډيرو ليکوالو ښې او هنري کيسې کښلي دي او په دغه وخت کي د ښاغلي پيرمحمد کاروان او ښاغلي اېمل پسرلي لنډې کيسې هم د خاصي پاملرني وړ دي.

**ج ـ اوسنی پړاو**

د لنډې کيسې اوسنی پړاو هغه ځپرکی دی چي بيخي ډېر تحقيق او تحليل ته اړتيا لري او په کُلي ډول له دغو

مخکنيو پړاوونو سره فرق لري. د لنډي کيسې اوسنی پړاو د لنډي کيسې په مطالعه کي يوه بېله برخه ده چي هم د کيفيت له مخي او هم د کميت په لحاظ ډېر کار پکښي کيږي. د پښتو لنډي کيسې په درست تاريخ کي هيڅ وخت کيسې ته دونه پاملرنه نه ده سوې لکه اوس چي ورته کيږي. په اوسني پړاو کي ډيرو ځوانو ليکوالو هڅي راپيل کړي دي او په زيات شمېر سره يې کيسې کښلي دي.

که څه هم په دغه پړاو کي ډيري کيسې د تامل وړ برېښي مګر بيا هم تر بل هر وخت زيات په دغه مرحله کي پښتو کيسې ته ډېر کار کيږي او پښتو کيسې د ادبياتو تر هر بل فورم ډېر لوستونکي پيدا کړي دي. زما د معلوماتو له مخي په اوسنۍ مرحله کي د مخکنيو پړاوونو په نسبت اوس ډيري کيسې کښل سوي دي او په اوسني پړاو کي تر پخوا ډيري کيسه ييزي ټولګي چاپ سوي دي.

په اوسني پړاو کي پر ځينو پخو او سرلارو ليکوالو سربېره لکه استاد شپون، زرين انځور، اسدالله غضنفر، اکبر بری، عصت قانع او يو شمېر نورو ځيني نور ځوان کيسه ليکوال هم را ميدان ته سوي دي چي کيسې يې واقعاً په يادونه ارزي او په ټول برابري کيسې کاږي.

که زه د ذوق له مخي ووايم نو زما خو په اوسنيو ځوانو ليکوالو کي د ښاغلي اېمل پسرلي، اجمل پسرلي، نصيراحمد احمدي او ځينو نورو کيسې خوښيږي.

څنګه چي موږ اوس د اوسني پړاو د کيسه ليکوالو په باب پرېکړه نه سو کولای، ځکه چي ښايي له اوسني حالت څخه تغير وکړي او يا که د ځينو ليکوالو يادونه نه کوو ښايي چي څه وخت وروسته هغه د دغه پړاو سرلاري وګڼل سي، نو پرېکړه به مو نيمګړې بڼه پيدا کړي، نو په همدې توسن د اوسني پړاو کار هغه وخت ته پرېږدو څو چي د لنډي کيسې يوه بله دوره او يا بله مرحله منځته راسي او دغه پړاو پای ومومي، نو هله بيا ښايي چي په دغه باب څه وواېو. خو اوس د دغه دليل په خاطر د دغه پړاو تر مطالعې تېرېږو.


**ماخذونه**

١. زلمی هيوادمل، د پښتو ادبياتو تاريخ (لرغوني او منځنۍ دورې)، ٢٧٥ مخ، ١٣٧٩ ل کال د پېښور چاپ.
٢. ګ . ف ګيرس، پښتو هنري نثر، د سرمحقق معتمد شينواري ژباړه، ٢٠ مخ ١٣٦٥ ل کال د کابل چاپ.
٣. ياد سوی اثر ٢١ _ ٢٢ مخونه.
۴. عبدالقديم پتيال، په پښتو کي نظم ته ډېره اړتيا ده که نثر ته؟ (ښکلا مجله) د ١٣٨٢ ل کال د دوهم کال لومړۍ ګڼه.
۵. محمدنبي صلاحي، ادبي تيوري، ١٦٨ مخ، ١٣٦٨ ل کال د کابل چاپ.
٦. زرين انځور، په افغانستان کي د پښتو هنري نثر او ... (سپېدې مجله) د ١٣٧١ ل کال د دريم کال دوهمه ګڼه _ ١٧۴ مخ.
٧. عبدالقديم پتيال، علامه حبيبي د پښتو هنري نثر يو مخکښ ليکوال (ښکلا مجله) د ١٣٨٢ ل کال پنځمه ګڼه، ٢٧ مخ.
٨. زرين انځور، د استاد ياد (د مقالو ټولګه) ١٨۴ او ١٨۵ مخونه، ١٣٦٣ ل کال د کابل چاپ.
٩. عبدالرؤف بېنوا، اوسني ليکوال، لومړی ټوک، ٢٣٢ او ٢٣٣ مخونه، ١٣۴٠ ل کال د کابل چاپ.
١٠. زرين انځور، په افغانستان کي د پښتو هنري نثر ... (سپېدې مجله) د ١٣٧١ ل کال د دريم کال دوهمه ګڼه _١٧۴ مخ.
١١. ګ . ف . ګيرس : پښتو هنري نثر، مترجم سرمحقق معتمد شينوار، ۴۵ _ ۴٦ مخونه، ١٣٦۵ ل کال د کابل چاپ.
١٢. ياد سوی اثر، ۵۵ _ ۵٦ مخونه.
١٣. عبدالرؤف بېنوا، اوسني ليکوال، لومړی ټوک ١٩٣، ١٩۴ او ١٩۵ مخونه. ١٣۴٠ ل کال د کابل چاپ.
١۴. ياد سوی اثر ١٨٣ _ ١٨۴ مخونه.
١۵. ياد سوی اثر ١٨١ _ ١٨٢ مخونه.
١٦. ياد سوی اثر ١٨۵ _ ١٨٦ مخونه.
١٧. ياد سوی اثر ١٨٢ مخ.
١٨. زرين انځور په افغانستان کي پښتو هنري نثر او ... (سپېدې مجله) د ١٣٧١ ل کال د دريم کال دوهمه ګڼه، ١٧٦ مخ.
١٩. سعدالدين شپون د بنګي غاړه، د لنډو کيسو ټولګه، ۵۵ _ ۵٦ مخونه. ١٣٧٧ ل کال د پېښور چاپ.
٢٠. ياد سوی اثر، د سريزې الف مخ.
٢١. غوث خيبري، هغه وژړل، تاريخي لنډي افسانې، ١٠ _ ١١ مخونه، ١٣۴۴ ل کال د کابل چاپ.
٢٢. اېمل پسرلی د شهيد موسی شفيق د کيسو انځورونه (ښکلا مجله)، د ١٣٨٢ ل کال دريمه ګڼه، ۵٠ مخ.




۲۳. عبدالرؤف بېنوا، اوسني ليکوال دوهم ټوک ۷۷۷، ۷۷۸، ۷۷۹ مخونه. ۱۳۴۱ ل کال د کابل چاپ.
۲۴. زرين انځور، په افغانستان کي پښتو هنري نثر او ... (سپېدې مجله) د ۱۳۷۱ ل کال د دريم کال دوهمه ګڼه، ۱۷۷ مخ.
۲۵. احسان الله هېر، رنځور، د لنډو کيسو ټولګه، ۱۵۷ مخ، د استاد الفت تقريظ او نظر، ۱۳۴۶ ل کال د کابل چاپ.
۲۶. ياد سوی اثر، د استاد بېنوا نظريه، ۱۶۰ مخ.
۲۷. ياد سوی اثر ۱۶۵ _ ۱۶۶ او ۱۶۷ مخونه.
۲۸. ياد سوی اثر، ۹۷ _ ۹۸ او ۹۹ مخونه.
۲۹. څېړنمل محمددين ژواک، پرونۍ هنداره، د افسانو ټولګه، د امين افغانپور سريزه، ب مخ، ۱۳۵۷ ل کال د کابل چاپ.
۳۰. يادی سوی اثر، ۸۰ _ ۸۱ _ ۸۲ او ۸۳ مخونه.
۳۱. زرين انځور په افغانستان کي پښتو هنري نثر او ... (سپېدې مجله)، د ۱۳۷۱ ل کال د دريم کال دوهمه ګڼه ۱۷۸ مخ.
۳۲. ګ . ف . ګيرس پښتو هنري نثر، د سرمحقق معتمد شينواري ژباړه ۱۱۲ _ ۱۱۳ مخونه، ۱۳۶۵ ل کال د کابل چاپ.
۳۳. زرين انځور . د افغانستان اوسني ادبيات (د سيمينار د مقالو ټولګه) ۱۹۰ _ ۱۹۱ مخونه، ۱۳۶۹ ل کال د پېښور چاپ.
۳۴. زرين انځور په افغانستان کي پښتو هنر نثر او ... (سپېدې مجله) د ۱۳۷۱ ل کال د دريم کال دوهمه ګڼه، ۱۸۱ _ ۱۸۲ مخونه.
۳۵. سرې جامې، د لنډو کيسو ګډه ټولګه، د امين افغانپور کيسه، ۸۵ _ ۸۶ _ ۸۷ مخونه، د ۱۳۶۳ ل کال د کابل چاپ.
۳۶. زرين انځور دا سرونه دا رسمونه (د لنډو کيسو ټولګه)، ۵۷ _ ۵۸ _ ۵۹ مخونه، ۱۳۶۳ ل کال د کابل چاپ.
۳۷. ياد سوی اثر، د امين افغانپور يادښت، ب مخ.
۳۸. احسان الله آرينزی، سېل (د لنډو کيسو ټولګه)، د محک سريزه ۳ _ ۴ مخونه، د ۱۹۹۸ ع کال دوهم چاپ.
۳۹. ياد سوی اثر، ۸۱ _ ۸۲ _ ۸۳ مخونه.
۴۰. محمداکبر کرګر . سينده څه سينده بهېږه! (د لنډو کيسو ټولګه)، ۵۷ _ ۵۸ _ ۵۹ مخونه، ۱۳۶۶ ل کال د کابل چاپ.
۴۱. اکبر بری، د سپوږمۍ سترګه (د لنډو کيسو ټولګه)، ۳۵، ۳۶، ۳۷ او ۳۸ مخونه، ۱۳۸۳ ل کال، د بېنوا فرهنګي ټولني له خپرونو څخه، کندهار.
۴۲. بريالی باجوړی، ګيلې (د لنډو کيسو ټولګه) د امين افغانپور سريزه، ب مخ، ۱۳۶۵ ل کال د کابل چاپ.
۴۳. ياد سوی اثر، ۲۵، ۲۶، ۲۷ مخونه.
۴۴. کبرا مظهري ملورو، پښتني ليکوالي او شاعراني (تذکره) د شريفه شريف لنډه کيسه، ۱۵۲، ۱۵۳، ۱۵۴، ۱۵۵ مخونه، ۱۳۶۶ کال د کابل چاپ.
۴۵. زرين انځور د افغانستان اوسني ادبيات (د سيمينار د مقالو ټولګه) ۱۹۶ _ ۱۹۷ مخونه ۱۳۶۹ ل کال د پېښور چاپ.
۴۶. محمدآصف صميم : د افغانستان اوسني ادبيات (د سيمينار د مقالو ټولګه) ۳۰۴ _ ۳۰۵ مخونه، ۱۳۶۹ ل کال د پېښور چاپ.
۴۷. ياد سوی ليکوال، ياد سوی اثر ۳۰۳ مخ.
۴۸. محمدصديق پسرلی، سره غالۍ (د لنډو کيسو ټولګه)، له ۴۶ مخ څخه تر ۵۳ مخه پوري ۱۳۶۸ ل کال د پېښور چاپ.
۴۹. ياد سوی اثر، د آزاد افغانستان د ليکوالو ټولني (وفا) يادښت ۲ مخ.
۵۰. زرين انځور په افغانستان کي پښتو هنري نثر ... (سپېدې مجله) د ۱۳۷۱ ل کال د دريم کال دوهمه ګڼه، ۱۸۳ مخ.
۵۱. اسدالله غضنفر ساړه بادونه (د لنډو کيسو ټولګه) ۲۲، ۲۳، ۲۴ او ۲۵ مخونه، ۱۳۷۱ ل کال د پېښور چاپ.
۵۲. ياد سوی اثر ، سريزه ۴ _ ۵ مخونه.
۵۳. عصمت قانع ځيره راواستوئ خير يوسئ (د لنډو کيسو ټولګه) له ۱۱۱ مخ څخه تر ۱۱۵ مخ پوري. ۱۳۷۷ ل کال د پېښور چاپ.



ارواښاد استاد قیام الدین خادم

# سېلاب

اوه، دا څومره تیاره ده! څومره توره وریځ ده په دې ټکنده غرمه کښې دومره تیاره!- ته به وایې چې د تروږمۍ ماښام دی!!!

د نمر خاته او نمر پرېواته له خوا توري توري غونډېږي، غونډې وریځې!- اوه څومره په سرعت حرکت کوي، - رښا هیڅ نشته!!!

اوهو، غرهار، ډزهار، سرې به وایې چې ګونډي کوم لوی ښار بمبار کیږي!- اوه، برښناګاني، داسي ښکاري لکه د اور متروکې! یا لکه آتشي ښیښې چې په کوم ځای ورول کیږي!

سخت حال دی، بده ورځ ده، اوضاع ډېره خرابه ده، د دې وریځې د شان سره باران، ږلۍ، تندر، او سېلاب لازم برېښي!!!

دغه دی سېلاب راځي، دغه یې مخه ده، ټول به یو سي، آه، په دوی کښې به ماشومان وي، ښځې به وي، ښکلي ښکلي نازنینان به وي، د ارمانونو او آرزوګانو ډک زړونه به وي - ټول به یو سي، آه، برباد به شي!!!

هلځ، ویښ یې کړئ، ور ږغ کړئ، چې څه چاره وکړي، دومره غفلت!- دا غرمه او دا دروند خوب!!- آه، دا ټول ویده دي!- ټول ویده دي!!!

فرض کړو چې چومره غرېږي، هغومره نه ورېږي، توره وېرول کوي او سپینه ورول کوي، څومره چې وایي هغومره نه خیژي، مګر بیا هم په لوړو غرونو خو باران کیږي، واوري ورېږي! او د دې نتیجه سېلاب وي. هر کله چې وي دا سېلاب به راشي او ټول به یو سي!!!

دا چې (د سېلاب مخه چا نیولې ده، سیندونه چا بند کړي، بل ځای هم نشته او نه د تښتې لار - چې څه وي هغه به وي.) بې همتي ده!

سېلاب خو د کلکو ګټانو او تړو سره لګیږي مګر ډډه ترې کوئ!-

د انسان عزم، همت او اراده د زمانې د سېلاب مخه لا هم ګرزوي، پاتې لا د باران سېلاب او آسمان تل د همتناکو د ارادې په موافق حرکت کوي!!!

# Kandahár

Bi-Monthly Magazine of Kandahar
Information, Culture and Tourism Department

## افغانستان

دا زموږ افغانستان
دا زموږ افغانستان
را تېر دی له هر څه نه راته ښکاري لکه ځان

دا زموږ افغانستان
دا زموږ افغانستان
یادګار دی د بریو هره تېره د دې ځای
دښمن ترې تښتېدلی په مات زړه او په وای وای
شاهد یې پر مېړانه هم دا مځکه هم اسمان

دا زموږ افغانستان
دا زموږ افغانستان
غورځنګ کړي په رګونو کې موستا د میني وینه
را پاته دا میراث دی له پلرونو نه دیرینه
په لار کې به یې یو مخ خپل سرونه کړو قربان

دا زموږ افغانستان
دا زموږ افغانستان
توتیا یې خړې لوټې، سپېره کاڼي یې مرجان دي
اغزي د دې ګرونو یې ښه تر ریحان دي
خړوب به په سرو وینو کړو د خپل وطن بوستان

دا زموږ افغانستان
دا زموږ افغانستان
باج اخلي له اسمانه دا د هسکو غرونو پیر
مری یې په یاد نه لري د هیڅ فاتح څنځیر
راوړی خونخوارانو دی پرې څو ځله توپان

دا زموږ افغانستان
دا زموږ افغانستان

عبدالمجید بابی